

د سلواغي ٢٦ په افغانستان کې د روسانو د ماتې او په بلجيم کې
د افغانانو د تفاهم، مرستې او پيوستون ټولنې د جوړېدو په وياړ

# خوشحال خان

## او يو څو نور

## فرهنګيالي خټک

ليکوال

سرمحقق عبدالله بختانی خدمتګار

۱۳۸۰ ل کال

# خوشحال خان

## او یو څو نور




# فرهنګيالي خټک

لیکوال

سرمحقق عبدالله بختانی خدمتګار

۱۳۸۰ل کال

# ډالۍ

دتاریخي هېواد ستر عالم، لوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبي درانه نامه ته چې پر ۱۳۱۷ل کال یې (دخوشحال خټک مرغلرې) خپرې کړې او زه دهغه کتاب په ذریعه دلومړي ځل لپاره دخوشحال خان له اشعارو سره اشنا شوم.

ع. ب. خدمتګار

# دخپرندویې ټولنې یادښت

په (بلجیم کې دافغانانو دتفاهم مرستې او پیوستون ټولنه) د ۱۳۷۹ل کال دسلواغې پر ۲۶مه نېټه ( په افغانستان کې دشوروي پوځونو دماتې او دافغانانو دبري پر ورځ ) په بلجیم کې دمېشتو افغان لیکوالو، شاعرانو، فرهنګیانو او فرهنګپالو په هڅه او هاند جوړه شوې، غواړي چې د رنځېدلي او کړېدلي افغان ملت د ډول ډول دردونو او کړاوونو د درملونې او افغاني فرهنګ د بډاينې لپاره ترخپله وسه هڅه او هاند وکړي ټولنه ډېره خوشحاله ده چې دخپلو فرهنګي خپرنیزو هڅو په پیل کې دهېواد د پیاوړي لیکوال سرمحقق عبدالله بختاني خدمتګار دا مهم اثر(خوشال او څو نور فرهنګیالي خټک ) خپروي.

په دې اثر کې نه یوازې د افغان ملت دیو ستر لارښود، شاعر مفکر او عالم حضرت خوشال بابا رحمت الله علیه دفکر و خیال، کار او مبارزې په باب ګټور او هر اړخیز معلومات راټول شوي، بلکې د بابا دکورنۍ او د خټکو دقبیلې د نورو شاعرانو او لیکوالو په باب هم خورا ګټور معلومات وړاندې شوي دي.

د افغانانو دتفاهم،مرستې او پیوستون ټولنې تردې مخکې هم دخپلو خیریه کارونو په ترځ کې په بېلابېلو وختونو کې تر هېواد بهر او دننه افغان مهاجرینو سره مرستې کړي دي.

دټولنې بل رغنده کار دادی چې پر وخت یې نړیوالې ټولنې او د بشر دحقوقو بېلابېلو سازمانونو ته د افغان ولس غږ

رسولی او د افغاني ټولنې ربنتینی انځور یې ورتـه وړانـدې کـړی دی.

په بلجیم کې د افغانانو دتفاهم، مرستې اوپیوستون ټولنـه اوس غواړي دخپلو فرهنګي هڅو په ترڅ کې دعلمي، ادبي، تـاریخي او نورو ګټورو کتابونو دخپراوي لـړۍ پیـل کـړي، چـې دا کتـاب دهمدې لړۍ لومړنی کتاب دی. ټولنـه لـه ښاغلـي امـین بـاوري څخه ډېره مننه څرګندوي چې ددې کتـاب د چـاپ لـګښت یـې برابر کړ، همدارنګه ښاغلـي لیکـوال سـرمحقق عبـدالله بختـاني خدمتګار ته د کتاب دچاپ له امله مبارکي وایي.

په درناوي

په بلجیم کې د افغانانو دتفاهم،مرستې اوپیوستون ټولنه

# فهرست


| شمیره | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ۱ـ | د مؤلف څو خبرې | ۱ |
| ۲ـ | د خوشحال خان خټک بیوګرافي او ببلیوګرافي | ٤ |
| ۳ـ | خوشحال خټک | ۳۲ |
| ٤ـ | د خوشحال او اقبال د اشعارو مشترکې خواوې | ۳۷ |
| ۵ـ | د خوشحال د ۳۸٦م تلین د سیمینار لنډ راپور | ٦۱ |
| ٦ـ | د خوشحال طب نامه | ۱۱۰ |
| ۷ـ | د خوشحال خټک طب | ۱۱٤ |
| ۸ـ | د خوشحال خټک د فضل نامې یوه نوې زړه قلمي نسخه | ۱۷۳ |
| ۹ـ | د ډاکټر عارف عثمان د خوشحال پېژندنې څېړنو ته یوه کتنه | ۲۱۰ |
| ۱۰ـ | صد پند سودمند خوشحال حکیم | ۲٦٦ |
| ۱۱ـ | د خوشحال خټک او د هغه د کورنۍ پر ادبي میراث علمي څېړنه | ۲۲۱ |
| ۱۲ـ | د خوشحال خان سبک او پر پښتو ادب د دې سبک اغېزې | ۲۳۱ |
| ۱۳ـ | د خوشحال رباعیات | ۲۳۵ |

| شمیره | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ۱٤ | د محفل یاد (شعر) | ۲۳۷ |
| ۱۵ | حمزه شینواري ته! (شعر) | ۲٤۰ |
| ۱٦ | اجمل ختټک ته! (شعر) | ۲٤۱ |
| ۱۷ | فقیر جمیل بیګ | ۲٤۲ |
| ۱۸ | هجري | ۲٤۸ |
| ۱۹ | اشرف خان هجري | ۲۵۳ |
| ۲۰ | عبدالقادر خان ختټک | ۲۵۸ |
| ۲۱ | صدر خوشحال | ۲٦۳ |
| ۲۲ | سکندر خان ختټک | ۲٦۷ |
| ۲۳ | افضل خان ختټک | ۲۷۳ |
| ۲٤ | کاظم خان شیدا | ۲۷۹ |
| ۲۵ | کاظم ختټک | ۲۸٤ |
| ۲٦ | کامګار ختټک | ۲۸۵ |
| ۲۷ | اسدالله ختټک | ۲۸۸ |
| ۲۸ | اکبر ختټک | ۲۸۹ |
| ۲۹ | سعادت خان ختټک | ۲۹۰ |
| ۳۰ | میاجناب کاکاخیل | ۲۹۲ |
| ۳۱ | میاعبدالله کاکاخیل | ۲۹٦ |

| شمېره | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ۳۲ | میا حمدالله فقیرخیل | ۳۰۲ |
| ۳۳ | د میا حمدالله فقیرخیل پردیوان پیژند ګلوي | ۳۰۷ |
| ۳۴ | میا تجمل شاه فقیرخیل | ۳۱٤ |
| ۳۵ | غلام محمد خټک | ۳۲۳ |
| ۳٦ | میا آزاد ګل کاکاخیل | ۳۲۷ |
| ۳۷ | میا حسیب ګل کاکاخیل | ۳۳۰ |
| ۳۸ | علامه امیرعلي | ۳۳۳ |
| ۳۹ | شهبازخان خټک | ۳۳۷ |
| ٤۰ | محمدزمان خټک | ۳۳۹ |
| ٤۱ | حکیم عبدالخالق خلیق | ۳٤۳ |
| ٤۲ | محمدنوازخان خټک | ۳۵٤ |
| ٤۳ | محمدشاه خیال کاکاخیل | ۳٦۲ |
| ٤٤ | سرفرازخان عقاب خټک | ۳٦٦ |
| ٤۵ | ژوند او فن | ۳۷٦ |
| ٤٦ | ګلونه تکلونه | ۳۸۳ |
| ٤۷ | ګل تکل اجمل غزل | ۳۸٦ |
| ٤۸ | رنګین غونډې عذاب | ٤۲۷ |
| ٤۹ | افغاني ملي روحیه | ٤٤۵ |

# دمؤلف څوخبرې

د ۱۳۷۶هش د سرطان په لومړۍ ورځ د پښتونخوا په خاوره کښې د ادبي څېړنيز سيمينار غړی وم ، له دې سيمينار ه چه کابل ته تلم ، نو په تلو تلو کښې دخوشحال خان اونورو ختکو فاضلانو د فرهنګي خدمتونو په باره کښې مې فکر کاوه . بيا په کابل کښې مې په خپلو زړو کاغذونو ګوتې ووهلې . دا واخله دلته کښې ده او دا واخله هلته .
په مني کښې چه ننګرهار ته راغلم ، هلته مې ډېرې زړې پاڼې واړولې راواړولې او په دې توګه دکابل کار نور هم بشپړ شو .

په دې کتاب کښې د خوشحال خان ختک او د يو شمېر نورو ختکو ليکوالو او شاعرانو په باره کښې زما د مختلفو وختونو څېړنې راټولې شوې دي .
د رنګينۍ او تنوع په هيله د غو ذکر شويو اساسي مطالبو

سره مې موضوع پورې مربوط نظمونه هم يوځای کړل.

د دغو مطالبو تر ټولو پخوانۍ هغه ليکنه ده چه زما د «پښتانه د علامه اقبال په نظر کښې» له کتابه اخيستل شوې چه په ۱۳۳٤ هجري شمسي کښې ليکل شوی دی.

په دې مجموعه کښې زما ټولې ليکنې نه دي راغلي، ځکه چه د هغو مسودې يا چاپي نسخې ترلاسه نه شوې، لکه: زما په شاعرۍ د خوشحال ختک اثر، د مرحوم محمد شاه خيال کاکاخيل په باره کښې مقاله.

او سباييي چه ځينې نورې راټوله هېرې شوې هم وي.

ددې کتاب بيلې بيلې ليکنې زما دژوندانه په بېلو بېلو وختونو او دځانله هدفونو په اساس شوې دي.

ځينې يې ليکنې د سيميناروانو مقالې دي، ځينې دشاعرانو تذکرې او ځينې پر کتابونو تبصرې. دهغو دچاپ مدارک مې ښو دلي او نورې کوټې مې پکښې نه دي ......لي، ځکه چې که کوټې پکښې ووهم نو نورڅه به ترې جوړشي او ددې له پاره نه وخت لرم، نه توان او نه راسره نوې ماخذونه موجود دي، لو «کم ما کرم شما» زما د دې ناڅيزه کار نه دا هم ښکاره کېدلای شي چه په دې موضوع کښې زمونږ د ګران هېواد زما غوندې ديو نادان او ناتوان سړي کار دغومره

او دغسې دی. نور د تواناوو دانایانو څخه ضرور تر دې زیات او اوچت دی او همدارنګه په نورو ادبي موضوعاتو نه فکر کوم چه په دغه وخت کښې چه زموږ د پښتو ادبي علمي ، ادبي څېړنېز کار لږ څه شکېدلی غوندې ده او د ډېر زیات چاپي آثار له منځه تللي دي او د نویو څېړنو او تألیفاتو شرایط ډېر محدود دي ، د دغسې آثارو ورانده کول به هم بې ارزښته نه وي .

په پای کښې په بلزټه دانشمندانو او پښتو تولنې نه مننه کوم چې د دې کتاب د چاپ او خپراوي مالي لګښت یې ومانه او سید محی الدین هاشمي څخه چې کتاب یې خطاطي کړ د زړه له کومې مننه کوم او د فرهنګي خدمت په ډګر کښې ورته د ډېرو خدمتونو او بریالیتوبونو هیله کوم ، په همدې هیله !

سرمحقق عبدالله خدمتګار بختانی

# دخوشحال خان خټک لنډه بیوګرافي او بیبلیوګرافي

## دژوند پېښې :

خوشحال خان خټک د شهباز خان زوی، د یحیٰ خان لمسی او د ملک اکوړی کړوسی دی. ملک اکوړي د جلال الدین اکبر(۹۶۳هق-۱۰۱٤هق ) په زمانه کښې اقتدار مونده لی و. اکبر پاچا ملک اکوړي ته د خیرآباد نه تر نوښاره پورې علاقه په جاګیر کښې ورکړې وه. دغه روپو د محصول (مالیه مواشي) او بادشاهي لارې د ساتنې او حق العبور د تحصیل واک یې هم ده ته ورکړی و. دغـه

جاگیر او وظایف او امتیازات خوشحال خان خټک ته د پلار او نیکه څخه پاتې وو.

خوشحال خان په ۱۰۲۲ هـ ق کښې زېږېدلی دی. د شهباز خان په ژوند کښې د خټکو-یوسفزو په دوو جنګونو کښې (۱۰۳۵ هـ ق او ۱۰۵۰ هـ ق) خوشحال خان هم د خټکو په لښکرو کښې شامل و.

په وروستۍ جګړه کښې د خوشحال خان پښه زخمي او پلار یې زخمي او بیا مړ شو.

خوشحال خان د هغه پر ځای د خانۍ پر مسند کښېناست او د پښې له رغېدو نه وروسته یې له یوسفزو سره بل جنګ وکړ.

د شاه جهان بادشاه فرمان ورته ورسېد او رسمًا د پلار مقام ورکړی شو. په ۱۰۵۱ هـ ق کښې د پنجابیانو په مقابل کښې د حکومت په طرفدارۍ وجنګېد او په ۱۰۵۵ هـ ق کښې یې د بلخ او بدخشان په جګړو کښې په شاهي لښکرو کښې ګډون درلود.

په ۱۰۶۳ هـ ق - ۱۰۶۴ هـ ق کښې یې له بنګښو سره جنګونه وکړل.

شاه جهان د خپلو سیاسي ګټو لپاره خوشحال خان ته

په دېر دروند نظر کتل . په ۱۰۶۸ هرق کال کښې د
شاه جهان د ناروغۍ له امله د هغه زوی اورنګ زېب
د هغه پر ځای کښېناست او پاچا شو.

د پلار پر ځای نشینۍ د اورنګ زېب او د هغه دورونو
«شجاع» او «داراشکوه» اختلاف و، نو ځکه د هغوی
ترمینځ جنګونه وشول.

په دې جنګونو خوشحال خان په پښتونخوا کښې د
اورنګ زېب مرسته وکړه.

په ۱۰۷۰ هرق کښې خوشحال خان په تیرا کښې د حکومت
د دښمنانو سرکوبي وکړه او بیا د حکومت په ګټه له
یوسفزو سره په جنګ جګړو ولګېد او د نوي حکومت
(د اورنګ زېب د اقتدار) دوقار دقایملو له پاره یې
سېنه زیار و یوست.

په ۱۰۷٤ هرق د کابل صوبه دار سید امیرخان خوافي
د خپلو خاصو هدفونو په اساس په یو میرزایي چل د پادشا
نه په مجمل دول د تشدد او د ځینو کسانو د ګرفتارۍ
امر او اختیارات واخیستل.

د هغه لاندې خوشحال خان بندي او مرکز ته واستول
شو. دوه نیم کاله قید و، بیا نظر بند و. په ۱۰۷۹ هرق کښې

آزاد شو او وطن ته راغی . په ۱۰۸۳ هـ ق کښې محمدامین د کابل صوبه دار و (محمدامین د خوشحال خان د بند په موده کښې د هغه د خلاصون کوښښ کړی و) په دې وخت کښې یوه عجیبه پېښه وشوه . په کونړ کښې سرکاري سپاهیانو د یوې ساپۍ ښځې بې عزتي کړې وه، چې د هغه په اثر هغه سپاهي د خلکو له خوا ځای په ځای ووژل شو.

د ننګرهار خلک: ساپي، مومند، خوګیاڼي، شینواري، اپریدي او نور یا ربړلي او یا ځبړلي وو او د ایمل خان مومند په مشرۍ یې لښکر جوړ کړی و.

د دوی د ماتولو له پاره محمدامین صوبه دار د پېښور په لوی لښکر روان کړی و، چې خوشحال خان هم پکښې و. په (لنډی خانه) کښې د واړو لښکرو سره مخامخ شوې، شاهي لښکر مات او دوه ځایه شو.

یوه ډله چې محمدامین ورسره و، پېښور ته ولاړه او بله ډله چې خوشحال خان پکښې و، د تاترې په لار واپس شوه . پښتنو له هرې خوا په دوی حمله وکړه او مات یې کړه.

د محمدامین پر ځای مهابت خان د کابل صوبه دار شو. هغه له حکومت سره د خوشحال خان نږدې والی او

ملګر نیا غوښتله ، مګر خوشحال خان ردوله ، ځکه چه له بندي کېدونه وروسته دده په زړه کښې دحکومت د مخالفت زړی شين شوی و. د خوشحال خان يو زوی بهرام خان چه وليد چه يې د پلار زړه د حکومت نه شين کړی نو د پلار د ولۍ مقام او حقوقو ته يې ونه کتل ، پلار يې پرېښود، ابن الوقت شو او حکومت ته يې ځان نژدې کړ.

حکومت هغه په ضيږ کښې و نيو او هغه له پلار سره جنګونه شروع کړل . خوشحال خان څو ځلې بهرام ته ماتې ورکړې او د ژوند تر پایه پورې له حکومت سره وجنګېد او سر يې ورته ټيټ نه کړ. په ۱۱۰۰ هـ ق کښې خوشحال خان وفات شو.

د پلار په مقابل کښې د بهرام خان د دريدو په وخت د خوشحال خان نور زامن د پلار تر شا ولاړ وو او د هغه ملاتړ يې کاوه . مګر د هغه تر مړينې وروسته په دې کورنۍ کښې د نفاق او شقاق بد مرغۍ ځای ونيو چې له دغه انشعابه يې سرچينه اخستې وه.

## شعر او شاعري :

مونږ وينو چه د خوشحال خان خټک ټول عمر په جنګونو او جګړو تېر شوی دی. سربېره پر دې دی د پښتو ستر شاعر

او لیکوال هم و . د دغو یو لو جنګونو او پیښو حالات یې
په خپلو شعرونو کښې انځور کړي دي او سربېره په رزمي
او حماسي برخو عشقي ، اخلاقي ، مذهبي او تصوفي شعرونه
هم لري او په مختلفو موضوعاتو کښې په پښتو نثر تالیفات هم.
نو ځکه دی د توري او قلم خاوند ګڼل شوی دی .

که نورو حماسه ویونکو شاعرانو د خپلو زمانو د
واکمنانو ، مشرانو او یا د اولسي قهرمانانو د ستاینو په ترڅ کښې
خپل حماسي آثار لیکلي دي او یا فولکلوري حماسي داستانونه یې
منظم او منظوم کړي دي ، نو خوشحال خان یوازې په خپل ځان
مرد میدان ، د جنګونو او جګړو قهرمان و چې د خپلې توري
شرنګ یې هم د خپلو شعرونو په آهنګ کښې شرنګولی دی .

دی یوازې د پښتو ادب او شاعرۍ افسانه ویونکی فردوسي
نه ، بلکه د خپل زړه ور او جنګیالي طبیعت په بناء د خپل حماسي
ژوند واقعي قهرمان او د خپلو قهرمانیو د داستانونو رستم هم و .

خوشحال خټک د پښتو ستر شاعر او ښه لیکوال و . په
فارسي ژبه یې هم شعرونه ویلي دي . د پښتو شعرونو په پای
کښې خپل نوم (خوشحال) یادوي او په فارسي شعرونو کښې
کله (خوشحال) ، کله (کوهي) او کله (روهي) تخلص کوي . د
خپل ژوندانه په ترڅ کښې یې زیات آثار (وایې چې د سلو نه

زیات آثار) لیکلي دي چه خورا غوره برخه یې زمونږ ترو وخته پورې رارسیدلې ده، په دې توګه:

## ۱- داشعارو دیوان:

دا دخوشحال خان خټک داشعارو کلیات دي چه د هغه په غزلو، قصیدو، رباعیاتو او.... شامل دي او تراوسه په دې ډول چاپ شوي دي:

- په ۱۸۷۰م کښې د ډاکټر بیلیو له خوا، دنظام بخش داروغه په اهتمام په پېښور کښې.
- په ۱۹۲۹م کښې د مولانا عبد المجید افغاني په مقدمه دحاجي عبد الرحمن له خوا په هوتي مردان کښې.
- په ۱۳۱۷ هجري شمسي کال کښې دپوهاند عبدالحی حبیبي په مقدمه او زیار، په کندهار کښې (دخوشحال مرغلرې) په نامه.
- په ۱۹۵۲م کال کښې د ښاغلي دوست محمد کامل په مقدمه او زیار، په پېښور کښې (د خوشحال خټک کلیات) په نامه.
- په ۱۹٦٤م کال د ښاغلي سید رسول رسا په مقدمه او زیار، په پېښور کښې د «ارمغان خوشحال» په نامه
- په ۱۳۵۸ هـ ش کال دافغانستان دعلومو اکاډمۍ له خوا (دخوشحال کلیات - لومړی ټوک) په نامه.

- د خوشحال خټک د دیوان منتخبات په پېښور کښې د پښتو اکاډمۍ له خوا چاپ شوی دی.

د خوشحال خان خټک د دیوان قلمي نسخې هم زیاتې دي او د نړۍ په مشهورو کتابخانو کښې شته.

د افغانستان د علومو اکاډمۍ د پښتو ټولنې په کتابخانه کښې هم درې قلمي نسخې موجودې دي، چه یوه نسخه یې د خوشحال خان د ژوند انه په زمانه کښې د هغه له وفات نه یو کال د مخه په ۱۰۹۹ هـق کال کښې لیکل شوې ده او بناپې د ده له نظره هم تېره شوې وي او یا د ده په لیک وي.

## ۲- فضل نامه :

منظوم فقهي اثر دی. په ۱۹۵۲م کال د ښاغلي محمد عبدالشکور په مقدمه او زیار په پېښور کښې چاپ شوی دی. قلمي نسخه یې د پېښور په موزیم کښې ده او د ښاغلي محمد عبدالشکور د لیکنې له مخه پخپله د خوشحال خان په قلم لیکل شوې ده.

د یورتنې اثر د تالیف نېټه د ۱۰۸۹ هـق د روژې د میاشتې ۲۵ مه ده. د فضل نامې یوه قلمي نسخه په کابل کښې د عبدالله شاه دانسره ده. دغه نسخه خد مکار (د مضمون لیکونکی) کتلې ده او د پېښور تر نسخې زیات مواد لري.

## ۳- طب نامه:

دا په طب باندې د خوشحال خټک منظومه رساله ده، چه دوه قلمي نسخې يې د پښتو ټولنې په کتابخانه کښې شته او د هغو له مخه د پوهاند رښتين په مقدمه او زيار په ۱۳۴۵ هش کښې چاپ شوې ده.

په دې اثر باندې څېړندوى خدمتګار پوره کار کړى چه د هغه علمي کار د نتيجې يوه برخه (د خوشحال خټک طب) تر عنوان لاندې په ۱۳۴۹ هش کال د خوشحال خټک په دوهم بين المللي سيمينار کښې اوروول شوې او په ۱۳۵۲ هش کال کې د کابل مجلې په اتمه ګڼه کښې چاپ شوې ده.

بيا ورباندې نور کار هم شوى دى او د دې نسخې اکاډيميک متن چاپ ته تيار دى.

## ٤- بازنامه:

د بازونو د ساتلو او د هغو د ناروغيو د دارو درملو په باره کښې د خوشحال خټک يو منظوم اثر دى چه دوه قلمي نسخې يې په پښتو ټولنه کښې شته او د هغو له مخه په ۱۳۳۲ هش کښې د پوهاند رښتين په زيار او د هېواد د مشهور خطاط ښاغلي عزيز الدين وکيلي پوپلزى په ښکلي خط چاپ شوې ده.

## ۵- دستارنامه:

د مشرتوب په باره کښې د خوشحال خان ختک منثور اثر دی. په ۱۹۵۲م کال په پېښور کښې او په ۱۳۴۵هش کال په کابل کښې چاپ شوې دی.

یوه قلمي نسخه یې د پېښور په موزیم کښې شته چې په ۱۱۱۹ه ق کښې د مولانا عبدالحلیم په قلم لیکل شوې ده.

## ۶- سوات نامه:

په "ارمغان خوشحال او" تاریخ مرصع" کښې چاپ شوې ده او د پوهاند عبدالحی حبیبي له سریزې او حرکندونو سره په جلا توگه په ۱۳۵۸هش کال هم چاپ شوې ده.

## ۷- فراقنامه:

یوه منظومه رساله ده چې تراوسه نه ده چاپ شوې، قلمي نسخه یې په پېښور کښې شته.

## ۸- فرخنامه:

د توري او قلم په باره کښې ده او لا چاپ شوې نه ده.

## ۹- هدایه:

په نثر کښې د عربي فقهي د مشهور درسي کتاب پښتو ترجمه ده.

## ۱۰- عنایه:

دا هم یو فقهي اثر دی.

## ۱۱- د خوشحال خټک رباعیات :

دخدمتګار په مشرۍ د پښتو ټولني د مسلکي غړو د یوهیئت په ذریعه دکلیاتو د شپږو چاپي او قلمي نسخو په پرتله د پښتو ټولني دادبیاتو دڅانګی له خوا په ۱۳٤۹هش کال په کابل کښې چاپ شوی دی .

- د پادري هیوز په کلید افغانی (د ۱۸۷۲م چاپ لاهور) کښې د ۳۳۹ مخ نه تر ۳٦۰ مخ پورې (انتخاب دیوان خوشحال خټک) ترعنوان لاندې د نوموړي کتاب دیوې څانګه برخې په توګه د خوشحال خټک ۲۲ پارچې شعرونه او د همدغه کتاب د "چمن بې نظیر" په برخه کښې دهغه دوه شعرونه چاپ شوي دي.

داکتاب د وروستي ځل لپاره په ۱۳۵٦هش کال د ښېرندوی خدمتګار بختاني په مقدمه ، تعلیقاتو اولغتنامې سره په کابل کښې چاپ شوی دی.

- همدارنګه د خوشحال خان غوره نظمونه د انګریزي ترجمې سره په ۱۹٦۳م دهاول اوکیرو له خوا ترتیب او دمولاناعبدالقادر له مقدمې سره چاپ شوي دي . ترڅې د مخه د خوشحال دنظمونو ترجمه دبیدولف له خوا هم چاپ شوی دی.

- د خوشحال غوره نظمونه وخت په وخت دختیځ پوهانو له خوا په خارجي ژبو ترجمه او چاپ شوي دی .

د خوشحال خټک د انتخابي نظمونو انګریزي ترجمې په دې

ډول چاپ شوی دی:

- سی - ای - بیډولف له خوا، لنډن - ۱۸۹۰م.

- مورګین ستمرن له خوا - لنډن - ۱۹۳۲م.

- سر اولف کیرو او ایولی وهال له خوا، لنډن، ۱۹۶۳م.

- میکنزی له خوا، لنډن، ۱۹۶۵م.

سربېره پر دې په (پخوانی) شوروي اتحاد کښې هم دخوشحال خان خټک دژوندانه او آثارو په باره کښې علمي څېړنې ترسره شوی او دعلومو دکاندیدی رسالې پرې لیکل شوې دي.

مثلاً: - دورن اورسیز په دې کار کښې مهمه برخه لري.

- استاد م گ اسلانوف په اولسمه پېړۍ کښې دافغانانو دملی مبارزو د څېړلو په ترڅ کښې د خوشحال خټک په فعالیتونو بحث کړی دی او شعرونه یې په روسي ژبه ترجمه کړي دي.
د استاد اسلانوف د کار یوه برخه ښاغلي محمد اکبر معتمد په پښتو اړولې ده او د (روښانیانو ملي نهضت) په نامه رساله په ۱۳۵۳ هش کښې چاپ شوې ده.

- دعلومو د وکتور نیکولای دور یانکوف دخوشحال خټک په آثارو ډېرې څېړنې کړی دی او په خوشحال باندې دعلومو دکاندیدات درسالو دلیکلو په وخت یې دزیاتو شاگردانو لارښودنه کړې ده.

- د وکتور ک ، ف کیرس په خپلو تالیفاتو: (په افغانستان کښې د پښتو هنري نثر - د ۱۹۵۹ م چاپ) او (د افغانستان ادبیات - ۱۹۶۳م چاپ) کښې د خوشحال خټک آثار څېړلي دي، او شعرونه يې ترجمه کړي دي او چاپ کړي يې دي،

- د ازبکستان محقق دوکتور عارف عثمانوف د خوشحال خټک د اشعارو او آثارو د څېړنې تخصص لري او په دې لړ کښې يې زيات شمېر په زړه پورې تحقيقي مقالې ليکلې او په پښتو، روسي او ازبکي ژبو يې په کابل، مسکو او تاشکند کښې چاپ کړې دي. د دوکتور عثمانوف يو مهم کار دا دی چې د خوشحال خټک د پند او عبرت څلوېښت رباعي گانې يې په دري، ازبکي، ترکمني او بلوچي ژبو اړولې دي، او په ۱۳۵۸ هش کال (د خوشحال خټک څلوېښت پندونه) په نامه د ښوونې او روزنې د مطبعې له خوا چاپ شوې دي،

- د ازبکستان په مرکز تاشکند کښې په ۱۹۷۴ م کال د (افغان شاعر لري) يعني (افغاني شاعران) په نامه په ازبکي ژبه د افغاني شاعرانو د سوانحو او شعرونو منظومه مجموعه چاپ شوې ده . په هغې کښې تر ټولو د مخه د خوشحال خټک پېژندنه او د غوره غزلونو او رباعياتو ترجمه راغلې ده .

لکه چه گورو خوشحال خان په داسې وخت کې له موره

زړښ بدلې دی چه د بایزید روښان له وفات نه (۴۲) کاله تېر شوي دي ، مګر د روښانیانو په ذریعه د افغانانو د ملي آزادۍ د حاصلولو او مبارزې لار د ګورګاني حکومت په مقابل کښې دوام لري .

په دې وخت کښې په روښانیانو کښې یو لړ منلي شاعران تېر شوي ، لا ژوندي دي چې پښتو ادب ته یې د قدر وړ آثار وړاندې کړي دي لکه : بایزید روښان ، ارزاني ، میرزا ، دولت الله لواڼی ، واصل او نور .

د اخوند درویزه او د هغه د ډلې آثار هم د زیاتو خوربې و په حال کښې دي .

د روښانیانو آثار دیني ، تصوفي ، فلسفي او د عرفاني عشق محتوی لري او د درویزه د ډلې آثار دیني مضمون لري او په خوا کښې یې روښان او روښانیانو پسې بد رد هم وایي .

د دې دواړو ادبي جریانونو په لړ کښې په پښتو کښې د غزل قصیدې او رباعیاتو ویل او مسجع نثر لیکل عام شوي دي او ساده نثر لیکلو ته د لیکوالو توجه کم څېدلې ده .

په ادبي محیط کښې خوشحال خان د یوه منډه کوي او د روښاني ادب د عرفاني عشق مضمون په ریالستیک عشق بدلوي او ورسره د ملیت او آزادۍ غوښتلو حماسي مضمون ته هم ترقي

ورکوي او د کیفیت د دغه ترقۍ او انکشاف په خوا کښې د کمیت له مخې ډېر زیات کار کوي.

نو ځکه هم دده په کورنۍ کښې د قدر وړ زیات شاعران او لیکوال را ووځي، لکه د ده زامن:

عبد القادرخان، اشرف خان هجري، سکندرخان، صدرخان او دده لمسی افضل خان او د هغه زوی کاظم خان شیدا او داسې نور.

اوهم د هغه وخت په پښتني محیط کښې د روښاني او د روښنه ای ادبیاتو په خوا کښې خپل اثر پرې باسي او ورو ورو په پښتو ادب کښې خورا تکړه او غښتلي شاعران پیدا کېږي او د پښتو ادب په کروندکښې ښایسته ګلونه زرغونوي. د یادري هیوز په قول: «اوایي چه خوشحال خټک ۵۶ زامن درلودل چه د هغو له جملې څخه ۳۲ تنه یې شاعران وو».

خوشحال خان خټک په خپله په یوه رباعی کښې خپل زامن تر (۶۰) زیات ښودلي دي او وایي یې دي چه نیمایي یې ژوندي او نیمایي یې مړه دي:

به شمار مې زوی تر شپېتو زیات دی
نیمکی مړه دی نیمکی حیات دي
چه راځر ګند شول په کاروبار کښې
تردي ژوندیو یهتر اموات دی

د خوشحال خان او د هغه دکور نځ او ادبي مکتب تاثيرات په راوروسته زمانو کښې هم دوام کوي او اوس لا هم دپښتو حماسي مضمون ترې بې نيازه نه دی. بوازې په پښتو څه چه د خوشحال خان شاعرۍ دګاونډيو اولسونو د نورو ژبو په شاعرانو هم اثر کړی دی او دهغو حماسي مضمون يې قوي کړی دی. د مثال په توګه د لاهور ډاکټراقبال (۱۳۸۹هق کښې زېږېدلی) په شعر کښې د خوشحال خټک د ادبي سمبولونو او حماسي روحيې زيات انعکاس موندلی شوی. (۱)

(۱) د دغې موضوع د زياتې څېړنې لپاره د دغو آثارو ته مراجعه کولای شئ:

- ميرعبدالصمد، خوشحال اور اقبال (اردو) پېښور.
- څېړندوی عبدالله بختانی خدمتګار، دخوشحال او اقبال دشعر مشترکې خواوې، ننګيالی پښتون، د ۱۳۴۵هش چاپ - کابل.
- څېړندوی خدمتګار، پښتانه دعلامه اقبال په نظر کښې، کابل د ۱۳۵۳هش چاپ.

دتورې او قلم ددغه ستر قهرمان دژوندانه او آثارو په باره کښې زيات کار شوی دی. دګرانو لوستونکو

د مراجعې له پاره سربېره پرهغو مقدموچه د ښاغلو
ليکوالو له خوا دده پر چاپي آثارو ليکل شوي دي ، ځيني
نور تحقيقي آثار په لاندې توګه ښيو :

۱- ننګيالي پښتون ، کابل ، پښتو ټولنه ، د ۱۳٤٥ هـ ش
کال چاپ . د خوشحال خټک په باره کښي دبين المللي سيمينار مقالې

۲- توريالي پښتون ، کابل ، پښتو ټولنه ،
د ۱۳۵۰ هـ ش چاپ . د خوشحال خان په باره کښې د ۱۳٤۹ هـ ش
د بين المللي سيمينار مقالې .

۳- د توري او قلم خاوند ، د ښاغلي محمد نواز خټک
ټولونه ، د ۱۹٤۹ م کال چاپ ، پېښور .

٤- خوشحال خټک څه و اې؟ د استاد عبدالروف
بېنوا ليکنه ، کابل د ۱۳۳۹ هـ ش چاپ .

۵- ملي قهرمان ، د مرحوم استاد ګل پاچا الفت ليکنه ،
کابل ، د ۱۳۳۹ هـ ش چاپ

٦- خوشحال خټک کيست؟ (دری) د ميرمن معصومه
عصمتی ليکنه ، کابل د ۱۳۳٤ هـ ش چاپ

۷- خوشحال خټک (اردو) د دوست محمد کامل ليکنه
پېښور ، د ۱۹۵۲ م چاپ

۸- خوشحال اور اقبال (اردو) د مير عبدالصمدخان

تالیف ، پېښور .

۹- د خوشحال خټک طب ، د څېړندوی عبدالله بختاني خدمتګار څېړنه ، کابل مجله ، د ۱۳۵۲ هـ ش ، اتمه ګڼه .

۱۰- دپا دري هیوز کلید افغاني د ۱۳۵٦ هـ ش ، د کابل چاپ ، تعلیقات ، د خوشحال خان خټک برخه ، ۳۱- ۴۱ مخونه د څېړندوی عبدالله خدمتګار بختاني لیکنه .

۱۱- د خوشحال یو شعر ، د امیر حمزه شینواري لیکنه د پېښور چاپ .

۱۲- خوشحال خټک د مطبوعاتو په هنداره کښې ، لومړی ټوک ، محمد ابراهیم ستوده او احمد ضیاء مدرسي لیکنه ، د کابل پوهنتون د کتابتون له خوا د ۱۳۵۸ هـ ش کال چاپ .

( پکتیا مجله ، د ۱۳۵۸ هـ ش ۷- ۱۰ مه ګڼه )



# خوشحال خان خټک

علامه اقبال څرنګه چه د خپل عصر د پښتنو
بادشاهانو سره مکالمې او صحبتونه لري او د تېرو
بادشاهانو له روحانيت سره غږېږي او د هغوی نه
روايت او حکايت کوي او ټولو سره د پښتنو شان او دوی
قوت او عظمت بيانوي او د دوی د موجوده پرېشانۍ
د پاره ژاړي، همدغه راز د پښتنو د ډېر فترت د زمانې
له يوه ډېر پوه ليډر، سياسي او شاعر اعنی خوشحال خان
خټک له افکارو سره هم ډېر تماس کړی دی.

خوشحال خان خټک په داسې يو عصر کښې ژوند
تېر کړی دی چه په هغه وخت کښې د مغلو له لاسه
په پښتنو باندې چېره مېچنی ګرځېدلې او بيا خوشحال خان

پخپله نفسیاتي گناه، د هغه ادبار او ذلت علل او عوامل پخپله د پښتنو په نفس کښې تشخیصول او دوی ته یې د خودۍ درسونه ورکول. علامه اقبال په خپل عصر کښې هم په پښتنو باندې عین هماغه حالت لیده، نوځکه دوی ته یې د خوشحال خان په ژبه دیوالی دعوت ورکاوه او د استعمار سره یې له دوی نه مجادله غوښتله اوس لاهم د خوشحال او اقبال ارمانونه ترسره شوي نه دي؛ او د هغوی روحانیت د پښتنو نفسي استعداد څخه ننګ، غیرت او خودي غواړي.

د پردیو استعماریو نو څخه د نفرت سکاره کولو په باب کښې علامه اقبال د خوشحال خان خټک د افکارو داسې ترجماني کوی.

(۱) قبائل هوں وحدت کی ملت میں گم
کہ هو نام افغانیوں کا بلند

(۲) محبت مجھی ان جوانوں سے ہے
ستارو یہ جو ڈالتی ہیں کمند

(۳) مغل سے کسی طرح کمتر نہیں
کہستان کا یہ بچہ ارجمند

④ کہوں تجھ سے اے ہمنشین دل کی بات
وہ مدفن ہے خوشحال خان کا پسند

⑤ اڑا کر نہ لائے جہاں باد کوہ
مغل شہسواروں کی گرد سمند

ترجمہ :

۱ چه قبیلې په ملي وحدت کښې ورکې شي، هاله به د پښتنو نوم لوړ شي.

۲ زه له هغو زلمو سره مینه لرم چې ستورې په کمند کښې نیسي.

۳ د غورنو د غه زلمي (پښتانه) په هیڅ فن کښې تر مغلو پاته نه دی.

۴-۵ - زه به تاته د زړه خبره وکړم چه د خوشحال خان هغه قبر خوښ دی چه هلته د غرو بادونه د مغلو د سپرو د اسونو ګرد زونه نه شي وړلای.

دا هغه خبرې ته اشاره ده چې خوشحال خان په (۱۱۰۰ه) کال کښې، د وفات د وروستیو سلګو سره د اسې وصیت کړی و :

«ما هلته بنخ کړئ چه د مغلو سیوری مې پر خاوره ونه شي او د مغلو د سپرو د پښو ګرد مې پر هدیره ونه لوېږي!»

خوشحال خان خټک په بل ځای کښې د پښتنو د افکارو د مسموم کېدو نه ژړلي دي او د دوی د بدبختیو علت العلل او د موجوده نفسیاتي تېتوالي موجب یې داسې څرګند کړی دی:

پښتانه په عقل وپوهه څه ناکس دي
کوټه سپي د قصابانو د جوس دي

بادشاهي یې د مغل په زړه بایله
د مغل د منصبونو په هوس دي

اوښ له بار سره په کور کښې ګورځي
په ولجه د اوښ د غاړې د جرس دي

علامه اقبال د دغه مطلب داسې ترجمه کوي:

خوش سرود آن شاعر افغان‌شناس
آنکه بیند باز گوید بی‌هراس

آن حکیم ملت افغانیان
آن طبیب علت افغانیان

راز قومی دید و بیباکانه گفت
حرف حق با شوخی رندانه گفت:
«اشتری باید اگر افغان حر
با یراق و ساز و با انبار در
همت دونش از آن انبار در
می‌شو خوشنود با زنگ شتر»

ooo

د دغو اشعارو نه معلومېږي چه علامه اقبال د پښتون شاعر او لیډر خوشحال خان خټک په افکارو او اشعارو کښې ډېره عمیقه مطالعه کړې ده.

د "بال جبرئیل" په حاشیه کښې یې لیکلي دي:

«خوشحال خان خټک د پښتو ژبې مشهور وطندوست شاعر دی چه افغانستان یې د مغلو نه آزاد کړ او په سرحد کښې یې د پښتنو قبائیلو یوه ډله جوړه کړه. د آپریدو قوم تر آخره پورې ور سره ودرېد. د ده د سلو نظمونو انګرېزي ترجمه په ۱۸۶۲ع کال د لندن نه شائع شوه»

(پښتانه د علامه اقبال په نظر کښې
کابل - پښتو ټولنه - ۱۳۳۵ شمسي)

# د خوشحال او اقبال
## د اشعارو ځینې مشترکې خواوې

دا رنګینې معنا چېرې دي خوشحاله
چې را درومي لکه ګل په بیاض ستا
(خوشحال)

برگ گل رنگین ز مضمون من است
مصرع من قطرهٔ خون من است
(اقبال)

هنر او ادبیات په تېره بیا شعر د خپل عصر د ژوند انه هینداره وي . ښه شاعر هغه دی چې د غه هینداره ښه او صافه جوړه کړي ، څو چې د قام د ژوند انه د وینته هو مره نازکې نکتې پکښې څرګندې شي .

دا هله کېدی شي چې شاعر له قومه راووځي او په قوم

کښې ننوځي. د قوم د اعمالو، آمالو او افکارو نه خبروي او قوم ببرته ورباندې خبر کړي.

د اولس په ژبه پوه وي او د زړه نه یې خیر وي، کلتور، عنعنات، دود او دستور یې ورمعلوم وي او په هغو نادودو پوه وي چه په قوم کښې یې او یا قوم یې په ځان کوي. ملی روایات، حماسې، متلونه او اصطلاحات وپېژني.

د قوم په رنځ او دزماني په نبض وپوهېږي او د اولس د دردونو تشخیص وکړی شي.

همدا خبرې دي چه دیو ملی شاعر له پاره د الهام اساسي منبع پیدا کوي.

خوشحال خان خټک او ډاکټر محمد اقبال د شرق هغه لوی اوستر شاعران دي چه په شعوري دول په ملي تاریخ، کولتور او مفاخرو ویاړي، د خپل او لس رنځ تاکي او بیا ورسره په مېړانه مبارزه کوي.

خوشحال او اقبال دواړه د مسلمانانو په جامعه کښې راپاځېدلي دي او د هغو د پاخولو او ویښولو سندرې یې ویلې دي.

د غه اولسونه نوی ژوند غواړي چه هغه یا د اسرافیل په شپېلۍ او یا د خوشحال او اقبال غوندې شاعرانو په نغمو او ویښو رونو لاس ته راځي.

خوشحال په داسې وخت کښې سر اوچت وي چه قوم يې د مغلو د استعمار تر خنه ساعتونه تېروي او اقبال د انګرېزانو د اقتدار او استعمار په عصر کښې غږ پورته کوي.

خوشحال خان د خپل قوم د نجات له پاره، د شرق د سياسي ادبياتو په تاريخ کښې د لومړي ځل له پاره د مليت (نشنليزم) نغمې غږوي او اقبال د شرق د آزادۍ له پاره د شرقي ملت روح ژوندی کوي.

څرنګه چه د خوشحال او اقبال د اولسونو ژوند او تاريخ تقريبًا د مشابهو شرايطو لاندې واقع شوی دی، نو د دواړو په نغمو او آهنګونو کښې مشابه سر او تال تر غوږه کېږي.

اقبال تقريبًا په هماغه محيط کښې واقع دی چې هلته د خوشحال ادبي مکتب په زور او شور تېر شوی دی، او مرور د ده د شعر يوه منبع د خوشحال د تفکر اغېزه ګڼل شو.

اقبال که په پښتو ژبه نه پوهېده، نو د پښتونوالي نه خبر و او د پښتنو تاريخ او ادب نه پوره واقف و. د هغه په اردو او فارسي شعر و نو کښې د پښتونولۍ جلوې موجودې دي.

د اقبال د «بال جبرئيل» نومي کتاب په حاشيه کښې ليکلي دي:

«خوشحال خان خټک د پښتو ژبې مشهور وطندوست شاعر

چه افغانستان ېې د مغلونه آزاد کړ او په سرحد کښې یې د پښتنو قبائیلو یوه ډله جوړه کړه . د آفریدو قوم تر آخره پورې ورسره و درېد . د ده د شلو نظمونو انګرېزي ترجمه په ۱۸۶۲ع کال کښې د لندن نه شایع شوه .»

د دې نه معلومېږي چه علامه اقبال ضرور د خوشحال په اشعارو کښې یا د انګرېزۍ او اردو له لارې او یا په بله طریقه مطالعه لرې.

## د شاعر ایډیالوژي:

خوشحال چه په ټوله معنا یو شاعر و په راز راز موضوعاتو کښې یې شعر ویلی دی، حتیٰ په طب کښې هم. مګر په عمومي ډول ده د شعر خصوصیت دده ملي ایډیالوژي ګڼلی شو، چه هغه د پښتنو آزادي، آبادي، پوهېدل، یوکېدل او لوړېدل دي:

رخنه کړ د ملک پرې مه ږده په خپل ملک کښې
په حکمت په زړه زور په لښکر و نه
خوبه تورو، په توبریو په نېزو شي
صد چندان شي په تدبیر په هنر ونه

په دې شعر کښې ده حکمت، هنر او زړه ته هم اتکاء کړې ده او د (اخر الحیل السیف) په کلیه یې هم عمل کړی دی

مګر کله چې يې په عملي صحنه کښې د ا تجربه حاصله کړې ده چه زور يو ازې په زور يو ازې په زور ماتېږي، بيا يې نو ويلي دي:

بې د تيغ له آبه نوري او به نشته
چه جنګجوی سره ساړه کا تېړونه

څو وانخلي له غليمه انتقام
مرد نه خوب کا نه خوارډه کا نه آرام

يا بنيولی مخ مکې ته
يا مغلوب سر د رزم

پښتانه چه نورڅه فکر کا ناپوه دي
بې له توري خلاصی نشته په بل کار

په شرق کښې د انګرېزي استعمار په مقابل کښې علامه اقبال لوی مبارز دی او د ده د شعر اساسي ايډيالوژي له استعمار سره مبارزه ده، دی د شرق ټول قومونه دې انقلابي مبارزې ته رابولي:

آدميت زار ناليد از فرنګ زندګی هنګامه برچيد از فرنګ
پس چه بايد کرد ای اقوام شرق!؟ باز روشن می شود ايام شرق
در ضمير ش انقلاب آمد پديد شب ګذشت وآفتاب آمد پديد

بيا وايي:
نقش نو اندر جهان بايد نهاد از کفن دزدان چه اميد کشاد؟

بیا وایي :

*اهل حق را زندگی از قوت است قوت هر ملت از جمعیت است*

په دې شان دین دي طاقت په مقابل کښې مبارزه د دواړو سترو شاعرانو په شعرونو کښې څپې وهي او راز راز پیرایې یې موندلي دي . موږ په همدې پیرایو کښې د دواړو شاعرانو مقایسه وړاندې کوو :

## لوړهمت :

دیو اسیر قوم افراد څو چې د خپلو تیتو اغراضو نه تیر نه شي ، د طمعې او توقع زنځیرونه ونه شلوي او د دنیا آنې او فانې شخصي او نفسي ګټو ته شا نه کړي ، تر هغه پورې د اسارت کړۍ ماتولی نه شي او له نیکمرغۍ سره نه مخامخ کیږي ؛

خوشحال خټک وایي :

طمع بیلا ده اسیر بنده کا | سبه سنه سري وي دا یې ګنده کا
ما دې بر لیدلي چه طمع نلري | په بادشاهانو پورې خنده کا

د منت دارو که مرم ښکار مې نه دي
که علاج لره مې راشي مسیحا هم

بخت دی که طالع ده که د ا حیله فقیري ده
خدای مې شړۍ توره برابره د اطلس که

علامه اقبال څه وايي:

من فقیر بی نیازم مشربم این است و بس
مومیایی خواستن نتوان، شکستن میتوان

زخم کرم نمی خورم، لطف شهان نمی کشم
در نگرای هوس فریب همت این گدای را

نه شیخ شهر، نه شاعر، نه خرقه پوش اقبال
فقیر راه نشین است و دل قوی دارد

د پیسو مینې د بر خلک له کاره ایستلي دي او د خوارځواکو کنبې یې اچولي دي. خوشحال او اقبال د شرقي شاعرۍ له عنعنې سره سم د پیسو مینه د تولو خطاگانو سرګینې.

خوشحال وايي:

هغه زر تر کاڼي لو بتې لا بد تر دي
چې یې و منډي په حُکمه نه خرڅیږي
چې او به په ځای ایساری شي خوساشي
صفايي یې هم په داده چه بهیږي

اقبال وايي:

اگر کردی نگه بر پارهٔ سنگ ز فیض آرزوی تو گهر شد
به زر خود را مسنج ای بندهٔ زر که زر از گوشهٔ چشم تو زر شد

خوشحال وايي :

د درویش برخه خوشي غم د هغوی د ی
چه په شمار د زرو ناست وی چون وچندکا

اقبال وايي :

مرد درویش کا سرمایہ ہے آزادی و مرگ — ہے کسی اور کی خاطر یہ نصاب زر و سیم

یعنی: « د درویش سړي سرمایه آزادي او مرګ دی او پرته له دې د نورو په زره کښې د سرو او سپینو نصاب دی »

خوشحال وايي :

د سلیمان غوندې یې پاس په زړګي کښېږ د ه
نه قارون غوندې یې ږ ده دزړه دننه

اقبال وايي :

ضمیر پاک و نگاه بلند و مستی و شوق
نہ مال و دولت قارون نہ فکر افلاطون

## لوړ خیال :

کله چه یو قوم د ذلت کندې ته ولوېږي، نو د هغه روحیات هم ټیټېږي ، په ادب او روایاتو کښې یې هم غلامانه ذهنیت وده کوي ، هرڅوک وايي چه نه غریب سړی یم نمایه غټو خبروڅه دي ؟ او هر ناصح او هوښیار (!) نورو ته نصیحت کوي « چه نه کار ـ هلته څه کار » مګر ملي شاعران

غواړي چه قوم د غفلت له خوبه رابيد ار او د ذلت له خاورو نه يې راپورته کړي . د وى بيا قوم خودئ او خود دارئ ته رابولي . د قوم سترګى بيناکوي او زړو نه يې بيداروي ، قوم ته د لوړوالي درس ورکوي او د رفعت او لوړتيا سندرې ورته وايي . ملي شاعر يواځې د خيال په وزرنه ، بلکه د همت ، خودئ او خود دارئ په وزر لوړ الوزي او په دې ذريعه قوم ته لوړ هدف او لوړه آرزو ښيي . کېداى شي چه د آرزو د لوړوالي سره په شعر کښې د خيال لوړوالى هم ملګرى شي او په دې صورت ډېر لوړ او عالي ادبيات ايجاد شي . وګورئ چه خوشحال څه وايي ؟

| | |
|---|---|
| که لويئ وته مې ګورې | ماه وخور زما پرچم د ى |
| آسمانونه مې خيمې دي | پرې د ستورو زينت تم دى |
| لا مې لوړ باغونه نور يي | کمکى باغ مې د ا رم دى |

اقبال څه وايي :

بلند بال چنانم که بر سپهر برين
هزار بار مرا نوريان کمين کردند

بڑھے ہے چرخ نيلی فام سے منزل مسلماں کی
ستارے جس کی گرد راه ہوں وه کارواں تو ہے

خوشحال وايي:

په اسمان باندې پښې کړم د همت په پر و بال
چه فلک سره سر با سي

په همت کښې هغه زه بېم
وايي لار د ختو نشته و آسمان ته
نه به لار در ته پيدا کړم په هنر

اقبال وايي :

در دشت جنون من جبريل زبون صيدى
يزدان به کمند آور اى همت مردانه

عروج آدم خاکى کے منتظر ہے تمام
يه کہکشان ، يه ستارے ، يه نيلگون افلاک

د دغو لويو شاعرانو په اشعارو کښې د دې مضمون ډېرې لوړې نمونې شته ، د لته د ټولو توجه دې ته اړوم چه د بنيادم د مادي ژوند پرمختګ او د سائينس او تخنيک عروج او ارتقاء خو د مادي تحول او سياسي انقلابونو په لمنه کښې کېږي ، مګر د بشر معنوي او ادبي صلاحيت ، په هر وخت او هر ځاى کښې مادي حرکت ته نوى رنګ او آهنګ بخښي او د اديب او شاعر لوړ خيال هر وړو د سائينس د پوهاند او فيلسوف په ثور فکر اضېزه کوي .

يعنې شاعر او اديب په خپل هنر آسمان ته د ختلو لار پيدا کوي او د کهکشان ، ستورو او آسمانونو له انتظاره بنيادم خبروي

او د حکیم او فیلسوف زړه دغه دعوت مني او د همت د سپوتنیک په زینه د شاعر هنرعملي کوي او په دغه صورت د خاورین بنیادم کرامت ثابتوي.

دا ښه معنا لري چه د خوشحال او اقبال غوندې دلوړو شاعرانو اولسونه دخوارۍ له خاورو نه پورته کېږي او هرچاته حیران حیران ګوري. دا معما یوازې د اولسونو همت حلولی شي.

## ژور فکر:

د شاعر کار د ژوندانه له لوړو ژورو سره دی او هم دی دی چه خپل اولس د نیستۍ له ژورونه وباسي او د هستۍ آسمان ته یې هسکوي. نو ځکه دی ټل په لوړو ژورو پرېشانه او سرګردانه ګرځي، کله دلوړ خیال په وزر آسمان ته ختږي او په دې مستۍ کښې په ستورو ناز کوي او کله بیا د اندېښنې په سیند کښې لاهو کېږي او دیو خوا خوږي ماڼو په څېر د قوم ماته کشتۍ له ګردابه وباسي. په دې سبب د شاعر دلوړ الوت منزل آسمان او د هغه د ژورې اندېښنې سمبول سیند او دریاب دی. وګورئ چه خوشحال څه ویلي دي:

که غوټې پسې وهې په لاس به در شي
ځاوې داچه په دریاب کښې ګوهرښته
د مقصود ګوهر په لوی دریاب کښې پروت دی
غواصان پسې غوټې وهي په مرسته

د عاشق خاطر او خیال لکه در یاب دی
چه څپه یې کله لوړه کله مسته

اقبال وایلي دي :

میارا بزم بر ساحل که آنجا نوای زندگانی نرم خیز است
به دریا غلط و با موجش درآویز حیات جاودان اندر ستیز است

## مېړانه او مجاهده :

خوشحال او اقبال دواړه د مېړانې او مجاهدې د ډگر قهرمانان دي. مبارز، قهرمان او مجاهد مېړونه د دواړو خوښېږي.

څو چې یو قوم کښې د مېړانې او مجاهدې روح پیدا نه شي، هغه قوم د ښه ژوند ښه ورځ په سترگو لیدلی نه شي. د دواړو شاعرانو په نغمو کښې د قوم دغه روحیه بیداریږي او د دواړو د مجاهد مېړه په لټه کښې چیغې وهلې دي. هغه مجاهد چه په آزادۍ او خپلواکۍ مین دی او په دې لاره کښې د مرگ او بند پروا نه لري، د هیڅ شي نه چار بوي او د دنیا مال، دولت، رتبه او منصب یې له لارې اړولی نه شي.

خوشحال وایي :

مردي دې هیڅ ده چه په زړه شېر نه یې | غه خو وشو که زړه ور ډېر نه یې
ترسرچه تېرشي وېره هیڅ نه وي | وېره دې هو مره ده چه ترسر تېر نه یې

اقبال وايي :

دل بیباک را ضرغام رنگ است　　دل ترسنده را آهو پلنگ است
اگر بیمی نداری بحر صحرا است　　وگر ترسی به هر موجش نهنگ است

خوشحال وايي :

چه څرګند ه سر بازي کاندي د توره
زه خوشحال خټک ترهسې هنرجار شم

اقبال وايي :

من آن علم و فراست با پر کاهی نمیگیرم　　که از تیغ و سپر بیگانه سازد مرد غازی را

په پورتنيو اولسونو کښې د محيط سره موافقت، د زمانې سره جوړښت، موقع شناسي او مجلس آرايي لوی هنرونه ګڼلی شي او ډېر هوښيار خلک په دغه لار ځي.

مګر د اولس شاعران د اوضاعو تغير او انقلاب غواړي. هغوی د ناصحانو په دې نصيحتونو پورې ملنډې وهي او په خپله مبارزه د قوم تقدير اړوي. هغوی د زمانې سره نه جوړيږي، بلکه زمانه په خپله طبعه جوړوي.

خوشحال وايي :

توکلت على الله ايو ه و يـنـا د ه
د خوشحال له زمانې سره ساز نشته

اقبال وايي :

حدیث بی خبران است تو با زمانه بساز　　زمانه با تو نسازد، تو با زمانه ستیز

خوشحال وايي :

دآسمان په بري ختېږي ، لور په لور توري لښکرې
زړه مې نه خوځي له ځايه غرخوځېږي کړنه

اقبال وايي :

به خود خزیده ومحکم چو کوهساران زی چو خس مزی که هوا تیز وشعله بیباک است

دعزم او ارادې خاوندان او آزادطبعه شاعران هيڅکله چيا
دخوشحالۍ يا خپګان ، دوستۍ او دښمنۍ ، ګټې او تاوان لپاره
خپل قضاوت نه بدلوي ، حق نه پټوي او جاه او مقام ته سر نه
ټيټوي . دوی هيڅکله خره ته اس او اس ته خټو نه وايي او
ځان بې تميزه نه ښيي ، بلکې د محيط په بې تميزۍ پورې خاندي
شرقي ادبي عنعنه داسې ډېر مثالونه لري .

سعدی وايي :

خر قاضی اگر به مکه رود چون بیاید هنوز خر باشد

رحمان بابا وايي :

د مکې په بزرګۍ کښې څه شک نشته
ولې خر به حاجي نشي په طواف

خوشحال وايي :

که د خره زين د سرو او ره سره زر کړې
خر به آس نشي په دا زيب و زينت

اقبال وايي :

غلامم جز رضای تو نه جویم　　جز آن راهی که فرمودی نپویم
ولیکن گر به این نادان بگویي　　خری را اسپ تازی گو! نگویم

## دآزادۍ مينه :

خوشحال او اقبال يوازې دا نه چه پخپله د طبعي آزادي لري، بلکه دوی خپل قوم او اولس هم د آزادۍ خوانه رابولي او د هغوی په طبيعت کښې دآزادۍ روحيه پالي. دواړه آزادي غواړي، آزادي لټوي او په آزادو مېړونو پسې ګرځي!

خوشحال وايي :

آزادي تر پادشاهيه لا تېرې کا
چې د بل د حکم لاندې شي زندان شي

که بادشاهي په زندان کا غم يې نه وي
د آزادو آزادي وي له الستـه

له آزادۍ نه بهتر هيڅ نشتـه
چه څوک په کور کښې خپله د ننده کا

چه سرې شړومبې يې خښنم په وخت داوري
پادشاهي داورنګ زيب زما غمرکه

اقبال وايي :

مرد حر محکم ز حکم لا تخف　　ما به ميدان سر به جيب او سر به کف

مرد حر از لااله روشن ضمیر     می نگردد بندهٔ سلطان ومیر

مرد حر چون اشتران باری برد
مرد حر باری برد خاری خورد

هغه ز لمیان چه په وسله مین نه وي او یوازې ځان سینګاروي هغه د قوم ، وطن پېرد نه خوري ، بلکه پخپله د قوم او وطن له پاره یو بې درمانه رنځ وي .

دوی چه د هول او سینګار اسیران دی او ځان جوړوی، نو قوم به څنګه آزاد او وطن به څنګه جوړ کړي؟

یو هیالي شاعران له دغسې ناځوانانو نه مخ اړوي او ور ته به کرکه ګوري.

خوشحال وایي:

چه مین په وسله نه وي
مرد دې نه وایي خپل ځان ته
لاس دې سره کا، سترګې تورې
ځان دې و جوړوی ځوان ته

اقبال وایي :

این مسلمان زادهٔ روشن دماغ     ظلمت آباد ضمیرش بی چراغ
در جوانی نرم و نازک چون حریر     آرزو در سینهٔ او زود میر

این غلام ، این غلام ، این غلام
حریت اندیشهٔ اورا حرام

## له ریاء کارئ سره مبارزه:

په هر قوم او وطن کې په هر وخت او هرځای کښې د هر صحیح مسلک او لوړې ایډیالوژۍ په مقابل کښې او د تنویر، ارتقاء، تجدد او اجتماعي انقلاب په مخالفت یو شمیر خلک درېږي. دا کسان اساساً دارتجاع کوونکو ملاتړي، دعلم، عمل او حرکت مخه بندوي، او به خړوي او ماهیان پکښې نیسي. په ساده ټولنو کی دا ریاکار خلک د شیخ، ملا او صوفي په لباس کښې راوځي. په خېل سپین لباس سپېڅلي خلک غولوي او د ملنګ په جامه د پلنګ رول لوبوي.

واقعي مذهبي لارښوونکي دغسې نه وي، بلکې د دغو ریاکارانو اکثر کارونه د دین او مذهب له اساساتو نه هم مخالف وي او د دنیا له دود او دستور نه هم.

روشنفکره قومي شاعران تل له داسې خلکو نه زړه چاودي وي او د دوی له خوا تکفیر او توهین شوي دي. ځکه چې له ارتجاعي عناصرو سره د دوی ارتباط ډېر قوی وي، نو د شاعر غریب خبره زر اثر نه کوي، یوازې د دغسې ریاکارانو حقیقي څېره څرګندوي.

رحمان بابا چې یو مذهبي عالم او صوفي شاعر دی د دې

خلکو په باره کې وايي:

دين يې دام دی د دنيا په لارکښې ايښی
پرې را اړوي وحشيان د مخلوقات

حافظ شيرازی وايي:

واعظان کاين جلوه بر محراب ومنبر ميکنند
چون به خلوت ميروند آن کار ديگر ميکنند

د خوشحال او اقبال په اشعاروکښې هم د دغسې خلکو رياکارانه کارونو ډېر غندنه شوې ده.

خوشحال وايي:

چې پرون يې فاسقانو سره جنګ و
نن هغه تر فاسقانو لاخه نورشو

که شيخان که زاهدان، که عالمان دي
د عمل سره جوړ نه دی قال الله دوارو

د اجاهل شيخان، شيخان نه دي شيطان دي
چې فساد يې پيدا کېږي له تهليله

زاهدان، شيخان د هرلوري نه ډېر دي
د خوشحال خټک بکار دي عارفان

زه خو شرابي يم شيخ څه راسره جنګ کړي
برخې ازلي دي کشکي ما د ځان په رنګ کړي
زه خو د زړه درد غواړم په هر يوه مذهب کښې
تازه ده ستا خبره چې نقلونه رنګارنګ کړي

* * *

اقبال وايي :

دین حق از کافری رسوا تر است — زانکه ملا مؤمن کافر گر است
از شگر فیهای آن قرآن فروش — دیده ام روح الامین را در خروش
کم نگاه و کور ذوق و هرزه گرد — ملت از قال و اقولش فرد فرد

* * *

به بند صوفی و ملا اسیری — حیات از حکمت قرآن نگیری
به آیاتش ترا کاری جز این نیست — که از یاسین او آسان بمیری

* * *

## عام شکايت :

کله چې شاعر د يو قوم ترقي او آزادي غواړي، نو يوازې له افتخار نه د که حماسه ورته نه وايي او يوازې د تېر و مېړونو د افتخار او وياړ و نو په کيسو يې نه اوده کوي، بلکه خپلو نواقصو ته يې هم توجه اړوي ، تنقيد کوي، اعتراض کوي ، پېغور ورکوي او د زړه له درده

معنادار ه سبکې سپورې هم ورته وايي.

دا د دې له پاره کوي چه قام له سپکوالي نه وباسي او د سرېتوب لوړ مقام ته يې ورسوي. خوشحال او اقبال به ډېر جوړښت، صراحت او صداقت قام خپلو نیمګړتیاوو ته ملتفت کړی دی او د حاذق حکیم په شان يې خپل رنځ ورته په ډاګه ویلی دی؛

خوشحال وايي:

ځینې چلوې دعوې لرم په زړه کښې
خو افسوس چې پښتانه واړه بې ننګ دي

او اقبال وايي:

نصیبی نیست از سوز درونم مرز وبوم را
زدم اکسیر را برخاک صحرا، باطل افتاده ست

خوشحال د پښتنو له بې اتفاقۍ نه ډېر سخت شکایت لري؛

هر چار د پښتانه تر مغل ښه دی
اتفاق ورځنې نشته ډېر ارمان

* * *

که هرڅوک ساز و مه نساز پېږي
پښتانه دي د کږ و کاږو د بوال

* * *

اقبال په پښتنو باندې عیناً همدغسې ژاړي:

لیک از بی مرکزی آشفته روز　بی نظام و نا تمام و نیم سوز

آن یکی اندر سجود آن در قیام　کاروبارش چون نماز بی امام

* * *

سره له دې هم خوشحال خان دخپل قوم فطري استعداد

نه هیله من دی او چور نا امیده نه دی.

که توفیق د اتفاق پښتانه مومي

زوړ خوشحال به دوباره شي په داځوان

* * *

تر مغلو پښتانه په توره ښه دي

که په پوهه پښتانه وای ځه هوښیار

او اقبال هم په شرق کښې دیو داسې میړنتوب انتظار

لري، چې هغه زندانونه ورانوي او دغلامانو زنځیرونه شلوي:

میرسد روزی که زنجیر غلامان بشکند　دیده ام از روزن دیوار زندان شما

حلقه گرد من زنید ای پیکران آب و گل　آتشی در سینه دارم از نیاکان شما

## باز او شاهین د دواړو شاعرانو سمبول دی:

شاعران، په تېره بیا دشرق شاعران، پخپلو شعرونو کښې

ځینې کلمات او لغات دسمبول په ډول راوړي، کله چې د استبداد

په تیاروکښې په شاعر دنیا لکه زندان شي او ده ته دغه حالت

د صحیح تصویر ولوحق حاصل نه وي ، د زړه د درد په ویلو یې ژبه سوزي یا غوڅېږي او د هغه په نه ویلو یې هډوکي سوزي او زړه چوي . د دغه خطرناک شخصي او نفسي حالت نه د نجات له پاره په شعر کښې د دغسې سحر او یا حکمت نه کار اخلي چې هم د زړه درد ووایي او هم یې ونه وایي.
نو د اسې چل کوي چې له کلماتو نه بل راز کار اخلي او د اشارو، کنایو او استعارو لمنه نیسي . نو د ځان یا د خپل اولس زنداني ژوند «قفس» ځان یا خپل قوم «بلبل» استبدادي قوتونه «صیاد» یا باغوان او د خپل زړه ارمان «ګل» بولي ، د غــو تـه ادب پېژندونکي سمبول وایي .
کوم سمبول چې د یو شاعر په اشعارو کښې عام شو ، د هغه هرنیت چه وي ، هغه د پر ځله د معاصرو او راتلونکو نسلونو د شاعرانو په شعر ونو کښې هم ځای نیسي او د ادبي منعني یو جزء ګرځي .
خوشحال او اقبال هم د شرق د شاعرۍ د ادبي منعنې د سمبولونو نه تل کار اخیستی دی او هم ځانله خاص سمبولونه لري چه د دواړو سمبولونه سره یو یا ورته دي .
څرنګه چه په وروستي عصر کښې د لرغونو شاعرانو عنعنو ي سمبولونه (ګل ، بلبل ، بورا ، شمع ، پتنګ ، ساقي ، شراب ....)

بېخي زاړه او بې خونده شوي دي ، نو خوشحال او اقبال د دآزادعه د روحيې ، يا د روحيې دآزادۍ په اړه د خپلو ادبي او تبليغي مسلكونو سره سم ځانته مشخص سمبولونه هم ټاكلي دي ، چه هغه «باز» او «شاهين» دی.

دا سمبول د شجاعت او لوړهمتۍ او جرأت د روحيې لپاره ډېر مؤثر دی.

«باز» د خوشحال خان او «شاهين» د اقبال د شاعرۍ سمبول دی ، كه څه هم كله كله خوشحال د خپل فكر «شاهين» او اقبال د خپل نظر «باز» هم الوزولی دی.

موږ ويلی شو چه څومره د باز او شاهين مفهوم يو تر بله سره ورته دي هغومره د دواړو شاعرانو په شاعرانه نظر او ادبي تفكر كښې هم نژدېوالی موجود دی.

## د خوشحال باز :

باز د خوشحال خان ډېر خوښ و او د خپلې جنګيالي او زړور طبيعت له مخې يې ښكار هم خوښېده . د ده يو مستقل اثر «بازنامه» نومېږي ، چه د بازانو د ساتنې ، پالنې او ښكار په باره كښې دی . د دې كتاب په مقدمه كښې وايي :

طبيعت مې په مثال د باتور باز دی
كه يې ګورې د هر څه و ښكار ته ساز دی

په دې موضوع کښې ځانله نور مستقل نظمونه هم لري چه ډېر کسر يې داسې دی :

نه تمامه بازنامه نه دا ډېرش بيته
که يې ياد کړې د خوشحال ختک يادګاري

سربېره پر دې خوشحال په خپلو عشقي ، اجتماعي او حماسي شعرونو کښې باز ديو سمبول په صورت راوړی دی ، چه ځينې نمونې يې دادي :

که نيولې ز ر که باز پرېږدي له چنګه
زه به هم له لاسه پرېږدم شوخ وشنګه

* * *

درست عالم دې په خوشحال باندې غوغا کا
باز پرواز کا د کارغانو له غلغله

* * *

پر د قاز شته پر د باز لکه پر هسې پرواز

* * *

د بنو خوګې يې نېغې ځي ترزړونو
چې تېره ، تېره کانه کا لکه باز

* * *

ښايسته د بڼ تاووس ورلړ بويه
داواړه ښکار ونه کا باز زما

په شوکت لکه شهباز شه     په همت لکه عنقـــا

* * *

زمازړه لکه د باز دی     که ته رنګ لري دمیور[1]

* * *

چه د زړکو ښکار په غره کښې پید اکیږي
باز په دا سبب نیولی دی دا غـــــر

* * *

دخوشحال په زړه یې هسې چارې وکـړې
لکه باز چه زرکه یوسي په منګولو

* * *

هغه باز تر منګیر که لا بـتر دی
چې غوټې وهي په شلاندو[2] یا مږکو

* * *

چه وهل ، خوړل ، خوړول کا ، هغه باز دی یا شاهین
چه یې سوري لړ ورینه ، یا مېږی دی یا فاره[3]

* * *

څه هغه شهباز شه چه دې ځای په سر درو وي
نه لکه د کلي کارګه کړځي غم د نس کړي

---

[1] میور یعني تاووس [2] شلانده : چونګښه [3] فاره : موږک

غلبواز دبل منګولې وته ګکور ي
لکه باز لرې نن دې خپله غوټه کړ

* * *

عاقبت به خدای ظفرکا د بازانو
تار په تار به آواره واړه زاغان شي

* * *

اهل شر ته د شاهین منګول پیدا کړ
اهل خیر و ته حلیم شه ترحمامه[1]

* * *

دواړه سترګې یې شاهین شهپرې زلفې
زما زړه کوتر شاهین راځخه یووړ

* * *

## داقبال شاهین:

داقبال په اشعارو کښې یو مستقل نظم دی چه عنوان یې دی « پند باز با بچهٔ خویش » اوبل یې د « شاهین و ماهی » ترعنوان لاندې دي . [2]

اقبال عموماً « شاهین » او کله کله « باز » د سمبول په ډول راوړی دی ، چه موږ یې څو نمونې وړاندې کوو :

---

[1] حمام : کوتره . [2] دادواړه نظمونه په « پیام مشرق » کښې دی .

می رباید ذوق رعنایی ز سرو    جرّه شاهین از دم سردش تدرو

* * *

شاهین من بصید پلنگان گذاشتی    همت بلند و چنگل ازین تیزتر بده

* * *

گرفتم این که چو شاهین بلند پروازی    به هوش باش که صیاد ما کهن دام است

* * *

توان گرفت ز چشم ستاره مردم را    خرد بدست تو شاهین تند و چالاک است

* * *

جره شاهینی به مرغان هوا صحبت مگیر    خیز و بال و پر گشا پرواز تو کوتاه نیست

* * *

تو ای شاهین نشیمن در چمن کردی از آن ترسم
هوای او ببال تو دهد پرواز کوتاهی

* * *

ترا نادان امید غمگساریها ز افرنگ است
دل شاهین نسوزد بهر آن مرغی که در چنگ است

* * *

من نگویم درگذر از خاک و کوی    دولت تست این جهان رنگ و بوی
دانه دانه گوهر از خاکش بگیر    صید چون شاهین ز افلاکش بگیر

* * *

می فتد بر مرگ آن مرد تمام    مثل شاهینی که افتد بر حمام

* * *

کبوتر بچهٔ خود را چه خوش گفت    که نتوان زیست با خوی حریری
اگر یا هو زنی در مستی و شوق    کله را از سر شاهین بگیری

* * *

زندگی سوز و ساز ، به ز سکون دوام　　فاخته شاهین شود، از تپش زیر دام

* * *

بازوی شاهین کشا ، خون تدروان بریز　　مرگ بود باز را زیستن اندر کنام

* * *

ندارد کار با دون همتان عشق　　تدرو مرده را شاهین نگیرد

* * *

برهنه سر ہے تو عزم بلند پیدا کر
یہاں فقط سر شاہین کے واسطے ہے کلاہ

یعنې : « چه سر دې لوڅ دی، نو لوړ عزم پیدا کړه ، ځکه

یوازې د شاهین د سر له پاره د غه خولۍ ده » . وګورئ د

اقبال د اردو بیت او د خوشحال پښتو بیت یو مضمون لري :

د کلاه لایق خو باز دی یا شاهین دی
په داخه چه د کلاغ په سر کلاه شي

اقبال د الوتکې په باره کښې چه د نوي عصر اختراع ده ، وايي :

به پرواز شاهین به نیرو عقاب　　به چشمش ز لاهور تا فاریاب

بالاخره اقبال د افغان ملت په باره کښې وايي چه :

ملت آوارهٔ کوه و دمن　　در رگ او خون شیران موج زن

زیرک و روئین تن و روشن جبین　　چشم او چون جره بازان تیز بین

د خیبر او د خیبر د اوسیدونکو په باب وايي :

سرزمینی کبک و شاهین مزاج　　آهوی او گیرد از شیران خراج
در فضایش جره بازان تیز چنگ　　لرزه بر تن از نهیب شان پلنگ

## په افغاني جامعه کښي :

اوس به موږ پښتون مشر
او شاعر خوشحال خان خټک او د شرق فیلسوف شاعر علامه اقبال
په افغاني جامعه کښي وګورو :

خوشحال خان خو پخپله یو خټه پښتون ، په پښتني کهول کي
زېږېدلی او په پښتني خاوره کښي لوی شوی سړی دی . لکه چه مخکښي
وویل شو د هغه د ټوند ایډیالوژي د پښتنو آزادي ، آبادي ، یووالی
او اتفاق و . د ده د اشعارو محور او روح پښتونولي او افغانیت
دی . د خپلي زماني د ننګیالي ، د پښتنو په ننګ توره وتړله او
د کندهار نه تر اټکه پوري ئې د پښتنو ویوي آزادي ، آبادي او متحدي
جامعي د جوړولو ارمانجن و . دی وایي :

درست پښتون له کندهاره تر اټکه
سره یو د ننګ په کار پټ او آشکار

او هم دی وایي :

د افغان په ننګ مي وتړله توره
ننګیالی د زماني خوشحال خټک یم

اقبال هم د افغاني اولس او خاوري سره خپله علاقه ثابته کړې ده .
افغانستان ته ئې سفر کړی دی او د افغان او افغانستان په باره کښي
ئې ډېر شعرونه ویلي دي . د خیبر ، کابل ، غزني ، کندهار ، لنډیاب ،

بلخ او بدخشان ستاینه او یادونه یې کړې ده ، افغاني بادشاهان، علماء او مشاهیر یې په ډېرا خلاص یاد کړي دي .

۱ دده یو منظوم اثر "مسافر" نومېږي او په افغانستان کښې دده د سفر خاطرات دی ، دده خپل بل مشهور او قوي اثر "پیام مشرق" اعلیحضرت امان الله خان ته اهداء کړی دی . ده ډېر دي او خپلو نورو آثارو کښې یې د پښتنو او د هغو د هېواد ډېره ستاینه کړې ده او ډېره زیاته علاقه او همدردي یې ورسره ښودلې ده . دا ښکاره کوي چه د پښتنو تاریخ ، کولتور او ملي موجودیت دده په زړه او ضمیر باندې ډېر اثر کړی دی او د پښتو نخوا ځمکه او آسمان ورته د الهام یوه ډېره ښه منبع ده . ډېر ښه څه وایي:

آسیا یک پیکر آب و گل است — ملت افغان در آن پیکر دل است
از کشاد او کشاد آسیا — و ز فساد او فساد آسیا
تا دل آزاد است، آزاد است تن — ورنه کاهی در ره باد است تن

## د اقبال په شعر کې د خوشحال ذکر:

خوشحال خان په ژوندون کښې هم مېړه و او وروسته له مرینې یې هم مېړانه خوښېده .

دی وایي:

پس له مرګه خوښ د مرد ترخنګه یم
ګور مې مه شه د نامرد له ګوره سم

کله چې خوشحال وفات کېده، نو داسې وصیت یې وکړ:

"ما هلته ښخ کړئ چه د مغلو سیورې مې پر خاوره ونه شي

او د مغلو د سپرو د پښو گرد مې پر هدیره و نه لوېږي"

اقبال ددې کیسې یادونه داسې کوي:

۱- قبایل هوں وحدت کے ملت میں گم  کہ ہو نام افغانیوں کا بلند

۲- محبت مجھے ان جوانوں سے ہے  ستاروں پہ جو ڈالتے ہیں کمند

۳- مغل سے کسی طرح کمتر نہیں  کہستاں کا یہ بچہ ارجمند

۴- کہوں تجھ سے اے ہمنشیں دل کی بات  وہ مدفن ہے خوشحال خان کا پسند

۵- اڑا کر نہ لائے جہاں باد کوہ
مغل شہسواروں کی گرد سمند

یعنی:

(۱) چه قبیلې به ملې یووالي کښې ورکې شي هلته به د پښتنو نوم لوړ شي.

(۲) زه هغو زلمو سره مینه لرم چه ستورو په کمند کښې نیسي.

(۳) د غرو د غه زلمي په هیڅ فن کښې تر مغلو یا نی نه دي.

(۴) زه تا ته د زړه خبره وکړم چه د خوشحال خان هغه قبر خوښ
(۵)
دی چه هلته د غرو باد ونه د مغلو د سپرو د آسونو دوړې نشي وروړلای،

وگورئ چه د خوشحال خان د ژوند د ایډیالوژۍ خلاصه، د مرګ د وخت

ارماني خبره د ټولې ملت لپاره د خوشحال له خوا پروګرام او وصیت علامه اقبال

په څومره مینه بیا نوي او هغه د خپل زړه خبره بولي.

## د اقبال په شعر کښې د خوشحال فکر :

خوشحال خان یو دردېدلی او رنځېدلی شاعر دی. د قام رنځونه او روحي دردونه یې قام ته ښکاره ویلي دي، د ده په اشعارو کښې ډېرې تنقیدي نمونې شته چې یوه یې دا ده:

پښتانه په عقل یو هم څه ناکس دي
کوته سپي د قصابانو د جوس دي

بادشاهي یې د مُغل په زړو بایله
د مغل د منصبونو په هوس دي

اوس له بارسره په خپل کور کښې ورغلي
په ولجه د اوس د غاړې د جرس دي

* * *

دې شعر د اقبال ډېره توجه ورګرځولې ده.

«جاوید نامه» د اقبال د لوړ خیال یوه ژوندۍ نمونه ده چې د خیال په وزر یې کښې په آسمانونو ګرځېدلی دی. په دې شاعرانه سفر کښې چې کله د مشرق د تېرو بادشاهانو په تولګي کښې د احمد شاه ابدالي له روح سره ملاقات کوي، نو د پښتنو د ژوند په باره کښې د احمد شاه بابا له روح سره د زړه خواله کوي.

په دې مصاحبه کښې شاعر د پښتنو منحرف شوی نفسیاتي حالت د خوشحال خټک په خوله د احمد شاه بابا د روح حضورته وړاندې کوي او د هغه دیوې پوښتنې په ځواب کښې وایي:

خوش سرود آن شاعر افغان‌شناس — آنکه بیند بازگوید بی هراس
آن حکیم ملت افغانیان — آن طبیب علت افغانیان
راز قومی دید و بی‌باکانه گفت — حرف حق با شوخی رندانه گفت:

«اشتری یابد اگر افغان حر — با یراق و ساز و با امیان در
همت دونش از آن امیان در — می‌شود خوشنود با زنگ شتر»

دا شعر سربېره پر دې چې د خوشحال خټک د یا سني شعر ترجمه ده ، د اقبال له خوا د خوشحال په اشعارو یو تقریظ هم دی . مونږ ګورو چې په دې شعر کښې د «خوش سرود» عبارت د خوشحال د شعر ستاینه ده .

سربېره پر دې په دې شعر کښې خوشحال افغان‌شناس، حق ویونکی او نه وېرېدونکی شاعر او د افغاني ملت د رنځونو حکیم بلل شوی دی .

چه د ا یوازې له دغه شعر سره نه ، بلکه د خوشحال د لوړ شخصیت ، عالي افکارو او په زړه پورې اشعارو سره د علامه اقبال د زړه له کومې علاقه ښکاره کوي . د اقبال د ا شعر د خوشحال د پورتني شعر د یوې برخې منظومه ترجمه ده ، مګر د هغه مضمون د اقبال په ځینو نورو اشعارو کښې هم د پر منعکس شوی دی، لکه چه وايي :

آدم از بی بصری بندگی آدم کرد     گوهری داشت ولی نذر قباد و جم کرد
یعنی از خوی غلامی ز سگان خوارتر است     من ندیدم که سگی پیش سگی سر خم کرد

* * *

مؤمن و پیش کسان بستن نطاق     مؤمن و غداری و فقر و نفاق
با پشیزی دین و ملت را فروخت     هم متاع خانه و هم خانه سوخت

* * *

بهر یک نان نشتر لا و نعم
منت صد کس برای یک شکم

* * *

بناغلو دوستانو او گرانو عزیزانو !

داوو د خوشحال او د اقبال د شاعرۍ ځینې مشترک، یا سره ورته او مشابه اړخونه چه دوخت په تقاضا مې د نمونې په توګه وړاندې کړل .

هیله لرم چه زما دا ناتمامه سعیه په ښه کامله مینه ومنئ .

زه په داسې حال کښې چه ستاسو د توجه او التفات نه تشکر کوم ښه وینا د اقبال په کلام پای ته رسوم :

اهل حق را حجت و دعوا یکیست
خیمه های ما جدا دلها یکیست

د انګیالی ښېښون، له کتابه
دهغه بین المللی سیمینار مقالې چې په ۱۳۴۵ هش کال
د پښتو ټولنې له خوا په کابل کښې جوړ شوی و .

# د خوشحال خټک د ۲۸۶ تلین
## د نمانځنې لنډ علمي راپور

د دې درانه محفل به یادشي پاته ترکلونو
د نوي اوږ لمسي افغان د نسل په فکرونو

د ۱۳۴۵ هـ ش کال د سرطان د میاشتې په (۱۵) نېټه اعلان وشو چه د پښتو ژبې د مشهور شاعر او پښتون مشر خوشحال خان خټک ۲۸۶ تلین نمانځنه د پوهنې د وزارت او پښتو ټولنې د ریاست له خوا کېږي. د دې کار د مقدماتي ترتیباتو د نیولو له پاره د پوهنې په وزارت کښې یوه غونډه وشوه چه په هغې کښې د هېواد له لویو لیکوالو نه سربېره، د پوهنې وزیر پوهاند دوکتور محمد عثمان انوري، د کلتور او اطلاعاتو وزیر محمد عثمان صدقي او د قبایلو مستقل رئیس ښاغلي

خالد روښان هم شامل وو. په دې ټولنه کښې ځینې لیکوال د مقالو د لیکلو له پاره و ټاکل شول او هم یوه کمېټه وټاکل شوه چه لیکلې مقالې وګوري او نوري مشوري ورکړي.
په دغه کمېټه کښې د غه کسان شامل شول:

١- پوهاند عبدالحی حبیبی
٢- ښاغلی قیام الدین خادم
٣- عبدالرؤف بېنوا
٤- پوهاند صدیق الله رښتین
٥- ښاغلی صباح الدین کشککي
٦- ښاغلی محمد دین ژواک (منشي)

دغې کمېټې د پوهاند حبیبي په ریاست (٥) غونډې وکړې او لیکلي مضامین یې وکتل. د پوهنې د وزارت او د پښتو ټولنې د ریاست له خوا د نړۍ د هېواد و نو ځینو پوهانو ته بلنه ورکړل شوه چه په دې تلین کښې ګډون وکړي. په دې ډله کښې اکثر هغه کسان شامل وو چه په پښتو ژبه او ادبیاتو کښې د مطالعې او معلوماتو خاوندان دي. او داسې اشخاص هم پکښې وو چه په خاص ډول د خوشحال د ژوندانه او آثارو په باره کښې یې څه لیکلي دي.
د خوشحال د یادونې دا محفل د ١٣٤٥ هـ ش د اسد په ٢٤

شروع او د اسد په (۳۰) پای ته ورسید. یعنې یوه هفته یې دیو سیمینار په شکل د راډیو افغانستان په تالار کښې دوام وکړ.

ددغه سیمینا اصلي غړي یعنې کنفرانس ورکوونکي اشخاص داو و:

**له افغانستان څخه:**

عبدالحی حبیبي، ګل پاچا الفت، قیام الدین خادم، صدیق الله رښتین، عبدالرؤف بېنوا، محمد امین خوږیاڼی، حبیب الله تږی، محمد ارسلان سلیمي، مېرمن معصومه عصمتي، محمد سرور ګویا، انوارالحق کران، عبدالله بختانی، عبدالقدیر فهیم، عبداللطیف جلالي او دوکتور روان فرهادي.

**په کابل کښې له اوسېدونکو پښتونستانیانو څخه:**

محمد ایوب خان اڅکزی

**له پېښور څخه:**

محمد اجمل خټک، پرېشان خټک او سید رسول رسا.

**له خیبر څخه:**

امیر حمزه شینواری

**له کوټې څخه:** فضل احمد غازی او سلطان محمد صابر.

له هند څخه :

مولانا امتیاز علي عرشي او ډاکټر ریاض احمد شیرواني .

له شوروي اتحاد څخه :

عارف عثمانوف

له ایران څخه :

داکتر خطیبي او ډاکتر منوچهر.

دغه درونه محفل په دې ورو ستة ډول جلیدلی

دی :

دوشنبه ، ۱۳۴۵ د اسد (۲۴) د ۱۹۶۶ داگست (۱۵) :

په دغه ورځ کښې محفل پرانیستل شو . په دې محفل کې اعلیحضرت سردار محمد داؤد ، صدراعظم ښاغلی محمد هاشم میوندوال او د سلطنتي دربار وزیر ښاغلی علي محمد ، دولسي جرګې رئیس دوکتور عبدالظاهر ، د مشرانو د جرګې رئیس ښاغلی عبدالهادي داوي ، د صدارات عظمی مرستیالانو ، د کابینې او شورا غړو ، د پښتونستان ستر مشر خان عبدالغفار خان ، دکور دیپلوماتیکو غړو ، شاعرانو ، لیکوالو او د پوهنتون استادانو ګډون کړی و .

د قرآن شریف دخومبارکو آیتونو له لوستلو نه وروسته محفل د معظم همایوني اعلیحضرت په پیغام پرانیستل شو .

په دې پیغام کښې دخوشحال ختک د یاد ورځې لومړنۍ غونډه د ادب او تاریخ د یو ځلانده شخصیت د ژوندانه او آثارو او افکارو د معرفۍ په لاره کې یو سود من او ګټور ګام بلل شوی او دهغې د برخې اخیستونکو له پاره له خدای پاک څخه توفیقونه غوښتل شوي دي.

بیا صدراعظم محمدهاشم میوندوال خپله وینا وکړه. ښاغلي میوندوال په خپله وینا کښې وویل:

«خوشحال ختک په خپل ژوندانه کښې د پښتنو د مشر او ملي قائد په حیث او له مرګ نه وروسته د نړۍ والي شاعر په حیث پېژندل شوی دی. په ژوند او پس له مرګه یو ملت جوړوونکی شخصیت دی.»

«مونږ وېاړو چه خوشحال ختک د توري او قلم سربازدی او د پښتنو په ملي مشرانو کښې ملت ساتونکی او ملت جوړوونکی قهرمان دی.»

بیا صدراعظم د خوشحال په ژوندانه باندې یو لنډ او معنادار نظر واچاوه او په پای کښې یې وویل:

«اوس چه مونږ د دې ملي قهرمان د مړینې د تلین نمانځنه کوو دده له روحانیت څخه مدد غواړو چه پښتانه د خپل ملي برم په ساتلو کښې بریالي او سرلوړي وي او د ا د خوشحال محفل او

دغسې نور ملي او ادبي محفلونه دې وطن کښې په بېل او بېل شمېره
شي او د دې محفل شاملین دې مېلمانه دي او که کور بانه تل
خوشحاله او کامګاروي »

سباغلي صدر اعظم د خوشحال څو شعرونه ولوستل، د
هغو شعرو نو له جملې څخه مونږ دا یو بیت را اخلو:

یا هغه پښتانه نور وو دا څه نور شول
یا د خدای دی اوس دا هسې شان فرمان

ورپسې د پوهنې وزیر پوهاند ډاکتر محمد عثمان انوري
خپله وینا په پښتو ژبه واوروله او د خوشحال خان په ژوندانه،
نصب العین، فلسفې، مفکورې سیاسي عقیدې، اجتماعي
شخصیت، ادبي مزیت او د مجادلې په لار باندې په علمي او
منطقي تحلیل رڼا واچوله. د مثال په توګه د پوهنې وزیر په دې
باره کښې چه خوشحال هنر د ژوند له پاره غواړي، که هنر د هنر
له پاره؟ وویل:

« خوشحال خان له مغولي سخت استبداد سره بیاهم د آسیا د
پربوتې دورې شاعر نه دی او نه قوم مأیوسه کوي. بلکه د ده په
برخه کښې د پښتو ژبې د علماوو نظریه داده چه خوشحال خان
په ادب کښې د نوې لار خاوند دی. دا لار دار وپا د هومینیزم
او رنسانس دورې ته ورته کېږي، یعنې هغه خدمت چه په اروپا

کښې همدغې تاریخي دوره‌کښې کړې دی ، خوشحال د آسیا په دې کوټ کښې کړې دی . »

پوهاند انوري دخپل پیغام په پای کښې وویل :

« زه باور لرم چه ستاسې دغه مجلس چه د لوی خوشحال دنمانځنې له پاره جوړ شوی دی ، له هرې خوا دستاینې وړ او کتور شي . زه ستاسې له پاره له لوی خدای (ج) نه توفیق غواړم کوم مېلمانه چه له دوستو هېوادونو څخه راغلي دي ، هیله کوم چه دلته یې شپې او ورځې ښې تېرې شي . »

بیا د کابل پوهنتون رئیس ښاغلي توریالي اعتمادي د کابل پوهنتون پیغام واوراوه . په دې پیغام کښې ویل شوي وو :

« اوس زمونږ دهېواد زلمیان په خپل علمي او فرهنګي ژوند کښې له یوې خوا د نوي معارف او نوو علومو په زده کړه مجبور دي څو چه له عصري ژوند سره آشنا شي او له بلې خوا کولی نه شي خپل غني او با ثمر کولتور له یاده وباسي . له همدې امله مونږ نشو کولای چه دعصري علومو په زده کړه خپل پراخ او لوی کلتوري میراث له لاسه ورکړو .

دخوشحال د تولنې غړو دخوشحال خان د آثارو او ژوندانه په باره کښې د تحقیقاتو په ترڅ کښې دهمدې با ثمر کلتوري میراث دروښانولو

له پاره د پر لوی گام اوچت کړی دی .

دکابل پوهنتون د دوی دغه اقدام ته په درنه سترگه گوري او دوی ته د زړه له کومي مبارکي وړاندې کوي . «

بیا پوهاند رښتین د ننگرهار د پوهنتون پیغام ولوست . په هغه کښې ویل شوي دي :

« هیله ده چه افغاني ځوانان به دخوشحال خټک دلوړو ملي نظریو مننه وکړي او دعمل په ډگر کښې به هم له هغو څخه درښتیا او مثالي کار واخلي . »

وروسته پوهاند رښتین د پښتو ټولنې له خوا د خوشحال خټک لنډه پیژندگلوي ولوستله . په هغې کښې ویل شوي دي :

« خوشحال هیڅ ډول مضمون پریښی نشو ، عشقي ، بزمي ، اخلاقي ، اجتماعي ، وطني ، ملي ، فلسفي ، تصوفي ، رزمي ، حماسي ، فکاهي او نور هزاران مطالب یې د شعر په جامه کې ونغښتل . د هرچا د ذوق له پاره یې دخپل شعر باغ د بڼ له رنگارنگ گلونو څخه ډک کړ . ساده او اسان شعر یې ووایه . دافکارو مرغلرې یې د شعر په ښایسته مزي کښې وپیيلې ، د زړه ترجماني یې وکړه ، د خیرو ملک یې فتح کړ او د پښتو ادب لوی استاد شو . »

وروسته د پښتو ټولنې رئیس د ختیځ پوهانو هغه پیغامونه ولوستل چه د دې محفل په مناسبت رالیږلي دي . دا پیغامونه د دغو

سباغلو وو :

۱- د ناروېژي جارج مارګنسترن پیغام. دی د ناروېژي یوسپين پوهنتون استاد دی، چه خپل ژوند یې د ژبو په مطالعه او د ژبپوهنې د تدریس او تالیف په لار کښې تېر کړی دی. اوه لس ژبې یا دې دي او په پښتو کښې مطالعه لري. کابل ته هم راغلی دی او د پښتو ټولنې افتخاري غړی دی.

سباغلي مارګنسترن په خپل پیغام کښې لیکلي دي:

«نن د هر وطن شاګردان زما دیو شمیر شاګردانو په شمول آنه ولري چه د خوشحال مزار ته ورشي او د هغه افکار او اشعار ښه وپېژني.

او همدا زما ډیر ارزښت ده. ما ونشو کولی چې د پښتو ټولنې دې بلنې ته او س کابل ته ځان ورسوم.»

۲- له لندن نه د سباغلي الف کیرو پیغام:

سباغلی اولف کیرو یو انګرېز عالم او دیپلومات دی، د انګرېزانو په وخت کښې د پېښور ګورنر و او د پښتو ژبې او ادبیاتو مطالعه یې دلته کړې ده. د خوشحال د دیوان انتخابي اشعار و ترجمه یې په انګرېزي کښې کړې ده او د خوشحال په آثار و کښې ښه مطالعه لري.

۳- له لندن نه د ښاغلي مېکنزي پيغام :

ښاغلی مېکنزی هم په پښتو ښه پوهېږي. په صوبه سرحد کښې يې د پښتو ژبې او ادب مطالعه کړې ده او د خوشحال په باره کښې يې يو کتاب ليکلی دی. ښاغلی مېکنزی يو ادب پېژندونکی ختيځ پوهاند دی.

وروسته بيا د سيمينار د غړو او پروګرام معرفي وشوه او بيا هغه کتابونه وويشل شول چه په دې ورځو کښې د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوي وو. دا کتابونه د خوشحال خان (دستارنامه) او (طب نامه) وو.

* * *

## سه شنبه د اسد ۲۵- (د اګست ۱۶) :

ترڅو دې وروسته به سيمينار د سهار په نهو بجو شروع کېده او د غرمې تر دولس نيمو بجو پورې به يې دوام کاوه.

په دې ورځ کښې د پوهاند حبيبي په غوښتنه او د نورو غړو په منته ښاغلی اجمل خټک د پښتو مشهور ځلمی ليکوال او مجاهد شاعر د دغې ورځې د غونډې د رئيس په حيث وټاکل شو.

ښاغلي اجمل غونډه پرانيستله او ويې ويل :

« عامه قاعده داده چه رئيس د عاجزۍ اظهار کوي، چه

زه دا کار نشم کولای او . . . مګر زه په ډېر افتخار او خوشحالۍ ستاسو شکریه اداء کوم چه د دا سې لوېې علمي او سیاسي ټولنې د ریاست له پاره د افغانستان د پښتنو او ټولو پښتنو په خوښه انتخاب شوم .

زه دا غوښتنه لوېه ، ځکه او ساعت تېري نه ګڼم ، بلکه د دې غوښتنې او قلبي نتیجه کښې د فکر وحدت او د عمل جوش او ولوله پیدا کېږي . زما یقین دی چه که دې ته د پښتون اولس توجه وګرځولی شي نو زمونږ د ټولو چه څوک یو ځای ، څوک بل ځای اوسو ، ما یوسیت له منځه ځي . د ا ټولنه دا کار کوي او زه شکریه کوم چه د دې ټولنې په ریاست انتخاب شوم .»

په دې ټولنه کښې اول پوهاند عبدالحی حبیبي خپله مقاله ولوستله .

پوهاند حبیبي زمونږ د هېواد له مشهورو او سابقه لرونکو لیکوالو څخه دی چې د پښتو ژبې او ادب د تاریخ په څېړنه کښې پوره مهارت لري . په افغانستان کښې د لومړي ځل له پاره په ۱۳۱۷ هـ ش کښې ( د خوشحال خټک مرغلرې ) یعنې د خوشحال کلیات د ده په زیار او همت د کندهار د طلوع افغان په مطبعه کښې چاپ شوې دی .

په دې کتاب ښاغلي حبيبي لويه مقدمه او تعليقات ليکلي دي.

د ښاغلي حبيبي د اوسنۍ مقالې عنوان وو (د خوشحال خان خټک د جهاندارۍ نظريه) په دې مقاله کښې د اسلافو له اثارو سره د خوشحال د دستارنامې مقايسه شوې وه.

دا مقاله ډېره درنه او مفصله ليکل شوې وه. د مقالې لنډه برخه د خوشحال په دستارنامه او ډېرې برخې يې په هغو شرقي آثارو دي چه له خوشحال نه د مخه د جهاندارۍ او مشرتوب په باره کښې ليکل شوي دي او له دغو سره د خوشحال د فکر مقايسه شوې ده. په دې ترڅ کښې د مشرتوب په باره کښې د خوشحال د فکر او د ايټاليې د مشهور مؤرخ او سياسي ليکوال مکياولي د نظرياتو پرتلنه هم شوې ده. په دې برخه کښې پوهاند حبيبي ليکي:

« خوشحال خان هم خپل دستاربند جهاندار او مشر په دغه ډول لکه د مکياولي زمامدار د اقتدار يو مظهر کښي، مګر فرق يې دا دی چه ځينې ديني او اخلاقي ارزښتونه هم د خپلې جهاندارۍ په نظريه کښې دخيل بولي. يعنې مکياولي د اقتدار په ساتنه او د سياسي موقعيت په لاره کښې هيڅ قيد او شرط نه مني او هدف يې يخپله اقتدار دی، خو خوشحال هم خپل دستاربند

شخصیت دد غه اقتدار یو ښکارندوی او ساتونکی بولي، مګر د اقتدار حصول او ساتنه بې قیده نه ګڼي، بلکه مشروط یې شمېري. »

« دی یو افغان او مسلمان او د پښتونو له اواجتماعي تقوا په قیودو مقید زمامدار غواړي، چه په خپل اجتماعي لیاقت د پښتنو دستار بند شي او د ظلم او اجنبي استعمار ریښې وروکاږي .... »

د پوهاند حبیبي په مقاله د غونډې رئیس سناغلي اجمل وویل: ٦ ٦ ٦ ٦ ٦

« پوهاند حبیبي د خوشحال خان په هغو نظریاتو جامع مطالعه وکړه چه د هغه په آثار و کښې ډېر اهمیت لري. د خوشحال افکار د دې جامعې له پاره هر وخت مفید دي.

سناغلي حبیبي چه په کوم نظر د خوشحال شخصیت او آثار بیان کړ، نه یې دومره خوشحاله کړم چه زه خپله خوښي څرګند ولی نه شم .... »

ورپسې سناغلي ویاند د خوشحال یو حماسي نظم واوراوه چه حاضرینو پرې ډېرې چکچکې وکړې. په دې صورت هغه ستوماني چه د سناغلي حبیبي د عمیقې او اوږدې مطالعې نه پیدا شوې وه رفع شوه او بیا وکیل ګل پاچا الفت پخپله مقاله شروع وکړه.

سنا غلی الفت د پښتو ژبې مشهور او تکړه خوږ ژبی شاعر او د ډېرو ژباړو بدیعي او خوندورو نثرونو لوی انتقادي لیکوال دی. د خوشحال خان په افکارو او آثارو باندې دده په قلم یو کتاب پرون سږ کال چاپ او خپور شو چه (ملي قهرمان) نومېږي.

دده په اوسنۍ مقاله کښې « دخوشحال خان داشعارو اجتماعي او اخلاقي خوا » څېړل شوې وه.

سنا غلي الفت دا ثابته کړه چه خوشحال خان په عشقي او تصوفي افکارو کښې دومره ډوب شوی نه و چه له ژوند انه سره یې رابطه وشلېږي او نه یې د تفنن او ساعت تېرۍ هدف درلود، بلکه هغه یو عملي سړی و او اشعار یې هم له ژوندانه او عمل سره ډېر ارتباط درلود. سنا غلی الفت لیکي:

« په دې آخره زمانه کښې چه شعر او شاعر د حُکمی له خلکو سره خپل تعلق له پخوا نه زیات کړ، نوله اجتماعي ژوند او مدني خوا سره یې رابطه ډېره ټینګه شوه. زما په عقیده دغه کار په پښتو شاعرۍ کښې خوشحال خان خټک آغاز او تکمیل کړ او دغه لوی تحول یوازې ده ته منسوب دی. »

دِ سنا غلی الفت په مقاله کښې دده خپلې خبرې لنډې او معنادارې وې، مګر د خوشحال زیات اشعار یې نقل کړي وو چه دده د سنه

انتخاب ذوق له ورا یه پکښې څرګند و .

په دغوا شعارو کښې، چه سناغلي الفت انتخاب کړي وو، د خوشحال خان ادبي او اخلاقي جرئت پوره څرګندېږي او دا ثابتېږي چه د خوشحال د اجتماعي او اخلاقي تفکر هسته یې میړانه، جرئت او نا ریښتوب کښې ده .

د غونډې رئیس سناغلي اجمل وویل :

« خوشحال هغه شاعر دی چه په شعوري ډول یې ویناکړې ده او د خپل اولس د شعور د ویښوالي له پاره یې کړې ده . سناغلي الفت په دې باندې پوره رڼا واچوله . هره جامعه د خپل عصر او محیط په شرایطو څه تقاضې لري . د خوشحال عصر د هغې تقاضې لرلې چه که مونږ ورته متوجه نه شو، نو هم د هغه له شخصیت سره او هم له ځان سره بې انصافي کوو. سناغلي الفت د خوشحال د هغه وخت ننګ، غیرت او افغانیت ته اشاره کړې ده . ما د خوشحال په باب نوې مطالعه لیکلې ده چه د سناغلي الفت له مقالې نه پس به ماته خپله مقاله خوند رانه کړي . »

تر دې وروسته سناغلي میا سید رسول رسا خپله مقاله ولوستله .

سناغلی رسا د پېښور دی او په پښتو ژبه کښې د تحقیقي او

ادبي آثارو خاوند دی . ډرامې او افسانې هم ليکي او ښه شاعر هم دی . د ده د اشعارو مجموعه (د بيديا ګلونه) ډېر شهرت لري او د خوشحال کليات يې د (ارمغان خوشحال) په نوم چاپ کړي دي او پر هغه باندې خپله ډېره ښه يې د مقدمې په ډول ليکلې ده .

د ده د او سنۍ مقالې عنوان (د خوشحال خان اسلامي کردار) و .

ښاغلي رسا د خپلې مقالې په مقدمه کښې ، د پښتو او پښتون په باره کښې د پښتنو د عوامو او پوهانو د ذهنيت د څرګندولو په ترڅ کښې ډېرې خوندورې ټوکې ټکالې هم وکړې . کله چه ښاغلي رسا اصل مطلب ته راغی ، نو دا يې ثابته کړه چه خوشحال خان يو عملي ، مجاهد ، غازي او سپېڅلی پښتون مسلمان و .

ده وويل :

« خوشحال خان خپل ژوند د اسلامي اخلاقو په مکمل طور عکاسي کوي . د هغه حق ګويي ، بې باکي ، سخاوت ، مېلمستيا ، مېړانه او شجاعت ، توکل او صبر ، سخت کوشي او جفاکشي ، مروت او مدارا ، انصاف او عدل په خپله زمانه کښې مشهور و ،

رسا صاحب د خپل مضمون په پای کښې وويل :

« خوشحال خان د خپل وخت یو ښه مسلمان و ، دا سې مسلمان چه د خپل وخت د ډېرو مغلو امیرانو نه د مسلمانۍ په اخلاقو عاداتو ، عقایدو او عملي ژوند کښې په هر لحاظ بهتر انسان و. »

« خوشحال خان په اسلامي اخلاقو کښې د خپلې زمانې یو ډېر اوچت بنیادم وچه هم د گفتار غازی و او هم د کردار هم د توري خاوند و هم د قلم .... »

ښاغلي اجمل ، د غوندې رئیس ، وویل :

« زه نشم کولی په خوالفاظو کښې هغه رسا وښیم چه نه یې پېژنم . نن یا پرون چه د لته هر څومره خلک راغلي دي ، رسا صاحب په دې مجلس کښې د ټولو نه زیات خوشحال دی.

رسا صاحب هغه سړی دی چه ۳۲ کاله د مخه یو بل استاذ سره اکوړې ته راغی او موږ له یې د خوشحال بابا قبر وښوده . زه چه د هغه نوسی یم ، تر دې وخته پورې خبر نه وم چه د خوشحال بابا قبر چېرته دی.

رسا صاحب هغه سړی دی چه په دریو کالو کښې یې په خوشحال بابا یو کتاب ولیکه چه ( ښاغلی پښتون ) نومېده ... »

ورپسې وکیلې میرمن معصومه عصمتي خپله مقاله ولوستله.

میرمن معصومې یوه پوهه او فاضله میرمن ده چه لوړ تعلیمات او ملي احساسات لري، په پښتو او فارسي کښې د مطالعې او قلم خاونده ده. ښو کاله پخوا یې د "خوشحال ختک کیست؟" په نامه یو کتاب لیکلی دی. په دې ټولنه کښې یې د (آثار خوشحال خان) تر عنوان لاندې په فارسي ژبه خپل مضمون ولوست. دې د خوشحال خان حماسي، عشقي، اجتماعي فلسفي او تصوفي اشعار وښودل او د هغه کتابونه یې معرفي کړل.

معصومې د خوشحال خان افکار د ښځو په باره کښې بیان کړل او ویې ویل:

« خوشحال خان په هغه وخت کښې هم د ښځو د عفت او ښو اخلاقو طرفدار و. پرده یې د ښځو د ژوندانه له لوازمو څخه نه گڼله او د نارینه و په کور کښې یې ښه ښځه د هغه د کامرانۍ وسیله گڼله او ویل یې:

که کډه یې بازارشي په کوڅه کوڅه چاروځي
د پاکو پاکدامنو ستر جوهر دی ربانې

که پاکه پاکدامنه په حیا په دین مینه
د مرد په کور کښې کښېني مرد دې کاندي کامراني

اجمل خټک د غونډي رئیس د میرمن معصومې دوینا په باره کښې وویل:

« ددې خوشحالۍ اظهار کوم چه په دې تلین کښې د پارسۍ داورولو مینه څرګنده شوه.

ځکه، زه ستاسو دټولو پوره مطالعه نلرم، خو دومره پوهیږم چه پردو په مونږ کښې د نفرت او جدایۍ له پاره ډېر ښکار کړی دی.

داسې شخصیتونه، آثار او افکار چه په اساسي ډول دې ټول اولس له پاره مفید دي، غرضې لا سونو دوی هم په توره واهلي دي.

ددې ضرورت دی چه د معصومې خور غوندې نور لیکوال هم په فارسي او د افغانستان په نورو ژبو کښې یوازې خوشحال نه، بلکه نور شخصیتونه هم وڅیړي او ثابته کړي چه دا اشخاص د نفرت له پاره نه، د یوځای کولو له پاره راغلي دي.

معصومې خور دخوشحال ټولو افکارو، شخصیت، پیغام او وسعت نظرته اشاره وکړه او ثابته یې کړه چې دی د غوره د مفکرینو، لیکوالو او شاعرانو نه کم نه دی.

د معصومې خور تعارف د پښتنو دنیا سره شته، دې په

خوشحال بابا کتاب لیکلی دی ، مونږ هغه لوستی دی او ترې متشکر یو.

خوشحال بابا د سنځو په باره کښې هم اشعار لري ، معصومې خور ورته اشاره وکړه ، څومره چه په دې موضوع کښې دا پوهیږی هغومره زه نه پوهیږم ، د معصومې نه شکریه کوم .»

تر دې وروسته اناونسر اعلان وکړ چه د نن ورځې غونډه پای ته ورسیده ، او د سبا پروګرام یې واورا وه.

بیا سناغلي اجمل خټک په خپله وینا غونډه پای ته ورسوله ، هغه وویل :

« د خوشحال بابا د سیمینار د پرونۍ او ننۍ ورځې تأثرونه نه هیرېږي . دې اوږده مجلس ته د ګرانو اوریدونکو د حوصلې نه تشکر کوم . د غه حوصله ښیي چه تاسې له خوشحال بابا سره مینه لرۍ . زه په دې ډیر خوشحاله یم او دا یاد له ځانه سره وړم . زما په لیونۍ زړه دا یاد معمولي معنا نه ده ، دا ضرور اثر لري .

* * *

چهار شنبه ، د اسد ۲۶ ( د اګست ۱۷ ) :

د ښاغلي بېنوا په پیشنهاد د ښاغلی الفت د دغې غونډې

د رئیس په حیث وټاکل شو. په دې ورځ لومړی مضمون د ښاغلي قیام الدین خادم و.

ښاغلی خادم د پښتو ژبې مشهور لیکوال، شاعر او ورځپاڼه لیکونکی دی. د پښتو او پښتونو په باره کښې یې ډېرې مقالې لیکلې دي، په لیکواله کښې د ځانته سبک او اسلوب خاوند دی. ده په دې غونډه کښې د خوشحال او رحمان د پښتو د دوو لویو شاعرانو موازنه وکړه. ښاغلي خادم د خوشحال خان په اشعارو کښې د پښتونولۍ قوي روحیه وښودله او ثابته یې کړه چې د رحمان بابا په اشعارو کښې هم دغه روحیه موجوده وه.

د ښاغلي خادم له مقالې نه وروسته د مجلس رئیس ښاغلي الفت وویل:

«دلته دا دود نه و چه د غونډې رئیس د هرې مقالې نه وروسته څه ووایي، مگر ښاغلي اجمل پرون د غه کار وکړ او له هر مضمون نه وروسته یې عالمانه تبصره وکړه. د دې لپاره چه د ښاغلي اجمل سنت پرځای شي، زه به هم یو څه ووایم.

د ښاغلي خادم په شخصیت او پښتو ژبې ته د ده د بې خدمتونو په خپله د ده آثار شاهدان دي. د مجلس حاضرینو به په خپله لوستي وي. د ده او سنی مضمون د دلچسپۍ شاهد

ستاسې تو دې چکچکې دي . ده د رحمان اوخوشحال په شاعرۍ سره مطالعه کړې ده . دلته دغومره ويلی شو چه رحمان بابا افاقي نظر درلود اوخوشحال دخپل وخت ضرورت ته متوجه و ، هم دغه وجه ده چه په ځينو موارد وکښې د دواړو روش فرق کوي ، مثلاً خوشحال دخپل قوم د حالت او دوخت دضرورت له مخه وايي :

که په توره يې ځواب ورکړې مردي ده
که وجود دې څوک آزار کاندي په چوب

او رحمان بابا د يوافاقي او وسيع نظر له مخه وايي :

شهيدان نه دي هغه خونفروشان دي
چه خوني ته خونبها نه کړي معاف

ورپسې ميرمن شيرين مجروح دخوشحال په باره کښې دښاغلي سيد شمس الدين مجروح يومنتخب شعرولوست او بيا ښاغلي محمد ارسلان سليمي دخوشحال او د هغه دملګرو مبارزې بيان کړې . ښاغلی سليمي وايي چه ماخپله مقاله د ځينو مصروفياتو په وجه په ډېر تنګ وخت کښې ليکلې ده ، متاسفانه زه ( بختاني ) په دغه وخت کښې حاضر نه وم او د دوی له وينا نه مې استفاده ونه کړه ، خودا ويلی شم چه

دده دا مقاله به دده دنورو آثارو په شان دلچسپه وي.
البته مونږ او تاسې به دده مقاله په هغه کتاب کښې ولولو
چه د سیمینار د مقالو د مجموعې په صورت چاپیږي.

ښاغلي اجمل خټک خپل یو خوندور عشقي شعر
ولوست چه د ډېرې زیاتې چکچکې وړ وګرځېده، وروسته
ښاغلي عارف عثمانوف خپله مقاله واوروله.

ښاغلی عارف عثمانوف د شوروي ازبکستان د تاشکند
اوسېدونکی دی، چه د پښتو په ادبیاتو کښې یې د
علومو د کاندیدات (دوکتورا) درجه د شوروي اتحاد
د علومو د اکاډیمۍ د ایشیا او افریقا د ملتونو د انستیتوت
نه اخیستې ده. ده د پښتو ژبې د تقویې او مطالعې له پاره خپل
د کابل پوهنتون د ادبیاتو په فاکولته کښې هم تېره کړې ده
او څه موده د تاشکند په پوهنتون کښې د پښتو ژبې او
ادبیاتو استاذ و. ډېره ښه پښتو لیکي او وایي او د خوشحال
په هنر او شاعرۍ کښې مطالعه کوي. دده د دغې مقالې
عنوان و (د خوشحال خان په رباعیاتو کښې هیومانیستیک افکار).
ده د خوشحال خان د انسانیت غوښتنې په افکارو پوره رڼا واچوله.
ده خوشحال خان د یوناني هیرودوت، ایراني سعدي او خیام، انګریز
شکسپیر او بایرون، ازبک نوایي، آذربایجاني فضولي

ارمنی سایت نوا ، روسي پوشکین او تولستوی ، قزاقی
ابای قونبای ، هندي تاگور او پاکستاني اقبال غوندې
انسان پرور او هیوادنست شاعر وباله.

ده څېله مقاله داسې پای ته ورسوله :

« راځئ چه د خوشحال ختک د غه سالګره د دغي پټې
خزانې ( د پښتو کلاسیک ادبیات ) د لوړې ځلانده جوهر
یعنې د خوشحال خان ختک عجیبه ادبي او علمي آثار او
شریف اجتماعي فعالیت د ذده کولو له پاره لوړی او مهم
ګام وبولو . »

بیا ښاغلي وویاند د خوشحال خان یو عشقي خوندور
شعر ولوست او ورپسې ښاغلي امیر حمزه خان شینواري
څېله مقاله واورووله.

حمزه شینواری د خیبر او سپد ونکی ، سره درا مه
لیکونکی او لوی شاعر دی . د پښور لیکوال ده ته د غزل بابا «
وایي او واقعاً د پښتو په غزل کښې د پر لوی لاس لري.
دی د دیني علومو او روحیاتو عالم او په علمي او عملي دول
په تصوف پوه دی . د پښتونوالي ژوندی جذبه او له پښتو
سره د پرمینه لري . ده ( د خوشحال ختک یو شعر ) تر عنوان لاندې
یو کتاب لیکلی دی ، د ده د او سنۍ مقالي عنوان و :

(د خوشحال خان د فلسفي او تصوفي اشعارو څوا)

په دې مقاله کښې یې د خوشحال خان د طریقت پیر شیخ رحمکار کاکا صاحب (رح) ښودلی او د خوشحال دا بیتونه یې راوړي دي:

طریقت کښې مقلد د شیخ رحمکار یم

او دا چې:

د خوشحال تکیه په خدای ده
بیا په تا ده رحمکاره!

حمزه صاحب د وحدت الوجود او وحدت الشهود او د تقدیر د مسئلې په فلسفه ژور بحث کړی دی او د هغه رنګ او جلوه یې د خوشحال په اشعارو کښې ښودلې ده.

د حمزه صاحب په باره کښې د ګوندې رئیس ښاغلي الفت وویل:

«استاذ حمزه شینواری په معاصر ادب لوی حق لري او په او سینیو شاعرانو کښې د ده وجود لویه هستي ده: د ده د شخصیت معرفي باید د یو ډېر لوی سړي له خوا وشي. زما په نظر پوهاند حبیبي باید دی معرفي کړي.»

پوهاند حبیبي پاڅېد او وې ویل:

«د حمزه صاحب اوږده مقاله مو په فلسفه واورېده.

که دا نه وی مونږ به د خوشحال د شعر په یوه خوا نه وای پوه شوای. حمزه صاحب پخپله صوفی دی د دې موضوع له عهدې نه بنه وتلی دی. د خیبر غزونه او سیمه په تاریخ کښې ډېر اهمیت لري، د اجانبو ډېر فاتحین او عسکر راغلي او دلته د پښتنو په لاس محوه شوي دی. د خیبر او د تاریخ د اروپا او شرق مؤرخینو لیکلي دی. متاسفانه په خیبر د استعمار یوه دوره تېره شوې ده، دا هغه وخت و چه خیبر د پخواني افغانستان له بدنه بېل شو او انګرېزان پرې مسلط شول. د غه خیبر د پښتنو پر ادبیاتو اثر لري. استاذ حمزه دلته پیدا شوی دی. د ده په غزل او اشعارو کښې د عصر رنګ موجود دی. حمزه په غزل کښې هېڅکله استعماري قوت ته قایل شوی نه دی. دی یو پښتون دی او پښتني استعارات او تلازمات څرګندوي. که څوک غواړي د حمزه په فن او هنر تبصره وکړي نو د ده یو جامع هنر دی د څو اساسونو چه مهم یې پښتونواله ده.

دی د دنیا او شرق په ادبیاتو کښې عمیقه مطالعه لري. د ده فکر د دنیایي، پښتني او اسلامي روایاتو ترمنځ جامع دی، په خیبر د استعماري دورې اثر د حمزه په غزل کښې څرګند شوی دی. د ده په نظر کښې پر دی (اغیار) دی او د امغولي او انګرېزي سلطه ده. د پښتنو د ښمنانو تعریفونه یې پخپل

غزل کښې ځواب ورکړی دی :

واېي اغيار چه د دوزخ ژبه ده

زه به جنت له د پښتو سره ځم

« ښاغلی حمزه د غزل د فن يو ژوندی کوونکی شاعر دی . »

* * *

پنجشنبه ، د اسد ۲۷ ( د اګست ۱۸ ) :

په دې ورځ ښاغلی امير حمزه شينواری د غونډې رئيس و تاکل شو او لومړی مضمون د ښاغلی نور محمد امين خوګيانی و .

ښاغلی محمد امين خوګيانی زمونږ د هېواد يو سپين ږيری او سابقه لرونکی ليکوال ، ورځپاڼه ليکونکی ، د ديني ، اجتماعي او ادبي پوهنو عالم او په پښتو او فارسي کښې د آثارو خاوند دی . اوس د مشرانو جرګې غړی دی . د ده اوسنی مضمون د خوشحال د اشعارو په مليه خوا ليکل شوی و .

ده په خپل مضمون کښې د خوشحال په اشعارو کښې د اموضوعات وښودل ، د هغه ارثي کمالات ، داد فرياد ، رښتيا ، د پوهانو قدر ، د حکيمانو قدر ، د سرو قدر ، د وسلې قدر ، د وفا قدر ، صبر او کار ، بې اتفاقي ، خپل پردی ، حسد ، د ښېنا نه حقيقي مشران ، د زورو الی ارزښت .

ښاغلي خوګياني خپل مضمون لنډ او معنادار ليکلی و . چې د اوريدونکو

د پېرخوښ شو .

وروسته ميرمن شيرين مجروح د خوشحال په باره کښې د ښاغلي الفت يو شعر ولوست او بيا ښاغلي محمد سرور گويا اعتمادي دخوشحال دفارسي اشعارو په باره کښې خپله مقاله واورو له .

ښاغلي گويا په فارسي ادبياتو کښې پوره مطالعه لري او د ښه ذوق خاوند او د فارسي ژبې شاعر او ليکوال دی. خپل عمريې په ادبي او ثقافتي کارونو او مطالعه تېرکړی دی او اوس د پوهنې د وزارت مشاور دی .

ده په خپله مقاله کښې دخوشحال په فارسي اشعارو تبصره وکړه او د هغه د بيان خوږوالی ، ښکلا او رواني يې وستايله او د جامي ، فيضي دکني ، نظيري نيشاپوري، صايب تبريزي او خوشحال هغه اشعار يې ولوستل چې د مشاعرې په شکل په يو وزن او قافيه وو. او د هندي بتالوی يو شعر يې چې دخوشحال د شعر په اقتفاء ليکل شوی و، واوراوه .

بيا ښاغلي عبدالرؤف بېنوا (دخوشحال په نظر کښې کار او زيار) تر عنوان لاندې خپله مقاله واورو له .

ښاغلی بېنوا زموږ لوی ليکوال، شاعر، دراماتيست، مؤرخ او د روښان فکر خاوند دی ، پښتو ژبې ته يې ډېر خدمتونه کړي او اوس د قبايلو د مستقل رياست مرستيال دی .

ده په خپله مقاله کښې وویل چه د دغه پوهانو په ټولو پېړیو کښې د کار او زیار ستاینه کړې ده، خوشحال خټک هم په دې باره کښې ګڼتور نصیحتونه کړي او خلک یې تل کار او زیار ته بللي دي.

ښاغلي بېنوا انسان او انسانیت ته د احترام په باره کښې د خوشحال خټک د نظر وسعت یاد کړ او ویې ویل چه هغه بیکار هم له بیکارۍ نه سپکتیا او د سړي همت او حیثیت په کار او زیار پورې مربوط بولي. ٦ ٦ ٦

ورپسې ښاغلي ګویا د خوشحال خان د مقام او شخصیت په باره کښې د استاد عبدالحق بېتاب یو خوندور او په زړه پورې شعر ولوست او بیا ښاغلي اڅکزي خپله وینا واوروله.

ښاغلی محمد ایوب خان اڅکزی د جنوبي پښتونستان له مشرانو څخه دی چه د ژورې مطالعې او انتقادي نظر خاوند دی، او د وینا په صراحت ډېر مشهور دی.

د ښاغلي اڅکزي د مقاله هم کاملاً انتقادي وه. ده لېږ پورې خوا په عمومي ډول په لیکوالو انتقاد وکړې وو چه تل په خبرو کښې مبالغه کوي او په علمي او تحقیقي آثارو کښې هم د خپلې خوشبینۍ د احساساتو تر تاثیر لاندې راځي او په خوشحال باندې یې هم یو لږ انتقاد وکړل.

هغه انتقاد ونه چه اڅکزي په خوشحال خان کړی دي د هغو

ځواب په مستقیم او غیرمستقیم ډول د سیمینار د شاملینو په مقالو کښې شوی دی چه زه یې تکرار ضرور نه بولم .

ورپسې ښاغلي حمزه شینواري ، دغونډې رئیس ، په لوستل شوو مضامینو لنډه تبصره وکړه ، هغه وویل :

« د میکروفون د خرابۍ په وجه ماتولې خبرې ښې وانه وریدلې ، خوشحه چه مې اوریدلي دي د هغو په باره کښې وایم :

دالفت شعر هرچا ته معلوم چه شیرین دی ، په تیره بیا چه د شیرینې په خوله وویل شو .

دګویا صاحب تقریر ډیر کامیاب شو ، معیاري دادی چه ډیرې چکچکې ورته وشوې او معلومه شوه چه خوشحال خان په فارسي کښې هم قهرمان و .

د بېتاب صاحب باید ډیر تعریف وشي ، دا ډیر پوخ او قوي شاعر دی ، د پښتو او پښتنو لیکوالو سره ډیره مینه لري .

محمد ایوب خان اڅکزي چه د تصوف په باره کښې کومه خبره کړې ده هغه صحیح ده .

هندي تصوف خلک له کاره ایستلي دی ، مګر اسلامي تصوف د کار او عمل سره موافق دی . ځرنګه چه پرون زما تقریر خشک و نن د ایوب خان تقریر خشک و . »

ورپسې ښاغلي حبیبي پاڅید او په خپله تبصره کښې یې وویل :

«د ښاغلي محمد ایوب خان اڅکزي وینا کښې ازادي وه او په دې سبب د قدر وړ ده . دلته د خوشحال د هنراو ژوند په باره کښې ډیرې خبرې وشوې، که خان خبرې نه وای کړای ځینې برخې به پټې پاتې وای .

شاعر انسان دی او انسان متحول دی، چه مختلف روحي احوال ورته پیښیږي. کله خاندي، کله ژاړي او کله د ښکلو منظرو د لیدو نه خوند اخلي .

په ژړه باندې یې همدغسې مختلف کوایف راځي .

خوشحال یو ریالست شاعر دی، خو کله ایدیالست شي او خیالي شیان وایي .

مومن دی صوفي نه بولو، خو د تصوف فکرې په اشعارو کښې شته، دا هغه تاثیرات دي چه د محیط او مطالعې نه ورباندې شوي دي.»

په دې شان د دغې ورځې غونډه پای ته ورسیدله .

* * *

## جمعه، د اسد ۲۸ (د اگست ۱۹) :

د پوهاند رښتین په غوښتنه او د ملکرو په منته ښاغلي پریشان خټک د دغې ورځې د غونډې د رئیس په توګه وټاکل شو.

لومړی ښاغلي عارف عثمانوف د شوروي اتحاد د افغانستان پیژندونکي ښاغلي نیکلای دریانکوف پښتو مقاله چه له مسکو

نه يې رالېږلې وه و لوستله .

سباغلی دوریانکوف روسی افغانستان پېژندونکی دی چه په پښتو ژبه او ادبیاتو کښې ژوره مطالعه لري او په دې باره کښې يې ډېر آثار په روسي او پښتو ژبو لیکلی دي او د شوروی اتحاد او افغانستان د علمي مؤسسو له خوا خپاره شوي دي.

دشوروي اتحاد دعلومو اکاډیمۍ د ایشیا او افریقا د ملتونو په انستیتوت کښې په لوړه علمي درجه د افغانستان د ژبې او ادبیاتو په باره کښې څېړنې کوي. دشوروي اتحاد او افغانستان ددوستۍ دپولنې مرستیال او د پښتو ټولنې افتخاري غړی دی، خوځله د علمي مطالعاتو له پاره افغانستان ته راغلی دی او روانه خوره پښتو وايي او لیکي. د ښاغلي دوریانکوف رالېږلې مقالې عنوان و (خوشحال خان خټک او د پښتو د کلام دانکشاف په تاریخ کښې دهغه مقام )

سباغلی دوریانکوف په خپله څېړنه کې لیکلی وو :

« خوشحال خان خټک دخپلې زمانې زوی و او هغه په افغاني ټولنه کې د خانانو د قایمولو دوره وه. هغه خان او شاعر د دغې فیوډالي دورې معنا په فعالیت او ادب کې تر ټولو ښکاره او څرګنده کړه. »

« خوشحال خټک دخپلې زمانې د یو پیاوړي شخصیت په حیث

د ژوند د ډېرو خواو او علومو په ډګر کښې فوق العاده تاثیر درلود او زیات آثار یې پکښې پرېښودل.

دی په سیاست، اخلاق، فلسفه، شاعرۍ او نورو څانګو کښې لاس لري، نو په دې اساس معاصره خټک پېژندنه، خوشحال خټک ته لوړ او ملي القاب ورکوي، لکه: (دآزادۍ سراج) (ملي قهرمان)، (د پښتو شاعرۍ پلار)، (د پښتو د منځنۍ دورې داعیاني شاعرۍ مؤسس) او نور. دا قول منصفانه او حق په جانبه دی.»

«د خوشحال خټک په دوره کښې د پېر و درباري مداحانو شاعرانو او هم مذهبي، تصوفي ادیبانو په دې هنر زیات قدرت درلود چه په شاعرۍ کښې نازکو الفاظو ته ځای ورکړي او په دې ډول د شعر او شاعرۍ اساس یې د ملي مسایلو، حقیقي ژوند او اجتماعي اعتراضونو څخه لیرې کړ، خو د خوشحال خټک په اشعارو کښې مونږ بېخي بل ډول منظر وینو...»

د بناغلي دوریانکوف مقاله په ډېر و چکچکو یای ته ورسېده او بیا بناغلي سید محمد طاهر بینا د (خوشحال ژوندی شو) تر عنوان لاندې ډېر ساده او روان شعر ولوست.

ورپسې د بناغلي انوار الحق ګران وارشو چه ډېره وینا واوروي.

د ښاغلی ګران د مضمون په عنوان کښې (خوشحال خټک د افغاني ملیت علمبردار) کېښل شوی و. په دې مضمون کښې د خوشحال د زماني او د هغه د څه وړاندې وختونو سیاسي اوضاع او د شرق او غرب تاریخي جریانات څېړل شوي وو او بیا د هغو په شا وخوا کښې د خوشحال د فعالیتونو تشریح شوې وه.

د ښاغلي ګران پسې نوبت ما ته راورسېد چې خپله مقاله (د خوشحال او اقبال د اشعارو مشترکې خواوې) ولولم. خرنګه چې دا زما مقاله وه زه پرې څه نه وایم.

ماپسې ښاغلي صفدر سالار زي (د پښتو اد ب کاروان) تر عنوان لاندې خپل شعر ولوست او بیا د مجلس رئیس ښاغلي پرېشان خټک په لوستل شوو مقالو تبصره وکړه او په هغې کښې یې وویل:

« د ښاغلي دوریا نکوف د مقالې په باره کښې وایم چې چېرته مسکو؟ چېرته تاشکند او چېرته کابل؟

خوشحال بابا وایي:

چاپې پلو له مخه وانه خست
پښتو لا هسې بکره پرته ده

خو زه اوس وایم چې د خوشحال بابا بچو اوس د پښتو له مخه پلوا خستی دی او هغه یې مسکو او تاشکند ته رسولې ده.

چه د ښاغلي پوهاند دوریانکوف دا علمي مقاله چه ښاغلی عارف عثمانوف ولوستله د هغې شاهد ده.

د ښاغلي بېنا د شعر په باره کښې وایم چه ما هم د خوشحال بابا دېوان مطالعه کړي ده، خو کومه خلاصه چه هغه پېش کړه زه پوه شوم چه هغه بېنا دی او زه نابېنا یم.

د بختاني د مقالې په باره کښې وایم چه ده د خوشحال او اقبال سره موازنه کړې ده. د غسې مقابله ښاغلي میرعبدالصمد هم کړې وه. زه دوباره وایم چه دغه مقایسه او مقابله که د خوشحال او اقبال د شاعرۍ په برخه کښې وي بیا نو صحیح ده او که د عمل په صحنه کښې وي، نو صحیح نه ده.

خوشحال بابا بازالوزولی دی، مګر اقبال لیدلی هم نه دی، خوشحال د توري په میدان کښې جنګېدلی، خو اقبال تري خبر هم نه دی....

که زه د ښاغلي صفدر سالارزي غونډې سره شاعر وای نو ما به د هغه د شعر په باره کې هم څه ویلای وای.»

* * *

شنبه، د اسد ۲۹ (د اګست ۲۰):

د پوهاند حبیبي په پېشنهاد او د ملګرو په منښه وکیله معصومه عصمتي د دې غونډې د رئیسې په توګه وټاکل شوه.

لومړی ښاغلي حبیب الله تږي (د خوشحال د ظهور اقتصادي

او اجتماعي عوامل ) بيان کړل .

ښاغلی تره‌کی یو زلمی لیکوال دی چه لیسانس یې د کابل پوهنتون د ادبیاتو له پوهنځۍ نه اخیستی دی او د ژبپوهنې ماسټري یې له امریکا نه راوړې ده . څه موده د پښتو ټولنې مسلکي غړی و او اوس په کابل پوهنتون کښې استاد دی . د ادبیاتو او ژبپوهنې په ساحه کښې یې ډېرې مقالې خپرې شوې دي .

په دې مقاله کښې یې د خوشحال د زمانې د اجتماعي او اقتصادي شرایطو اغیزه په افغانستان وښودله او د هغو تاریخي ضرورتونو له مخې یې د خوشحال مبارزې وښودلې . دا مقاله د تاریخ لیکلو په نوو اصولو لیکل شوې ده او په دې موضوع کښې د یو مفصل کتاب د خلاصې او یا مقدمې حیثیت لري . د ښاغلي تره‌کي په مقاله کښې څرګنده شته چه د هغوله جملې څخه یوه داده چه د خوشحال مبارزې د کوم شخصي انتقام له مخې نه وې ، بلکه د ا د پښتو د ژوندانه یو اقتصادي او سیاسي ضرورت و . او بله داده چه له پرده وسره د کوم شخصي او نژادي تعصب نه درلود ، ځکه چه ده له پردو نه زیات په خپلو ، په تېره په خپلو زامنو زیات انتقاد کړی دی ، بلکه د ده مبارزه کاملاً ملي او د افغان د ننګ په اساس وه .

وروستي ښاغلي اجمل خټک خپله مقاله ( د خوشحال د فکر

اوینظر نوې مطالعه) واورو له.

ښاغلی اجمل ختک د خوشحال خان د کورنۍ یو پوهیالی، ننګیالی او نو میالی شاعر، ادیب، لیکوال، د خپل قوم د نجات او ترقۍ لوی مبارز، د پاک زړه، سپېڅلي شخصیت او روښان فکر خاوند، د عمل، قربانۍ او ایثار د ډګر قهرمان، د پښتنو ولسي او بیوسه قام د اجتماعي او سیاسي دردونو د لېرې کولو له پاره خدايي خدمتګار او منورن لمی دی.

ده په خپله مقاله کښې د خوشحال هغه اشعار څېړلي دي چه هغه د قوم په روحي او نفسي کمزورتیو او اخلاقي انحرافاتو انتقاد دی، او هغه یې څېړلي دي چې د دغو کمزورتیو او انحرافاتو سره د مقابلې د پاره کار، عمل، اقدام او فداکارۍ جذبه ژوندۍ کوي. مثلاً:

زمانه د ربابي د لاس رباب دی
هر زمان نوې نغمې د بم و زیر

فراغت دې مبارک شه د ګیدړو
د زمرې د غاړې برخه ده زنځیر

ورپسې ښاغلي سیلاب د خوشحال یو شعر ولوست او بیا مولانا امتیاز علي عرشي، خپله مقاله (د خوشحال خان په عقیده د ژوندانه دستورالعمل) واورو له.

ښاغلی مولانا عرشي په خټه پښتون ، د هند د رامپور دکتابخانې مدير، د ديني، اجتماعي او ادبي علومو عالم او يو خوږ او درونډ سپين ږيری سړی دی. ده ډېر مقاله د خوشحال په (دستارنامه) په فارسي ژبه ليکلې وه او په هغه کښې يې د ګرونداله د چارو او معاشرت په باره کښې د خوشحال نظريات څېړلي وو . د خوشحال په نظر کښې د ښځو د مقام او اهميت په باره کښې يې هم توضيحات ورکړل .

په دې پسې ښاغلي عبدالقدير فهيم (د خوشحال او پوشکين) پرتلنه واوروله .

ښاغلی فهيم زموږ يو ځلمی او باذوقه ليکوال دی چې درې کاله يې په مسکو کښې تېر کړي دي او په روسي ژبه او ادبياتو کښې مطالعه لري.

ښاغلی فهيم وويل :

« خوشحال او پوشکين د واړه د خپلو ژبو لوی شاعران دي او دواړه د آزادۍ غوښتونکو ملګري وو . »

بيا دوکتور منوچهر وينا وکړه .

دی د تهران د پوهنتون استاد ، د ايران د «شير وخورشيد سرخ» د مؤسسې رئيس او د ايران له لويو پوهانو او ليکوالو څخه دی. ده خپله وينا نه وه ليکلې او شل دقيقې يې په ډېر

فصاحت خبرې وکړې. ده د تصوف په اساس د خدای پاک په جلالي او جمالي صفاتو بحث وکړ او ويې ويل چې د دغو صفاتو انعکاس د خلکو په اعمالو او صفاتو کېږي، د هغو له جملې نه مېړانه، زړه ورتوب او شجاعت هغه خواص دي چې په خوشحال خان کښې موجود دي او دا د خدای پاک په جلالي صفاتو پورې اړه لري، او شعر و ادب د هغه د جمالي صفاتو پرتو دی.

بیا مېرمن شيرين مجروح د خوشحال په باره کښې د عبدالغني خان او بشرئ بېګم شعرونه ولوستل او په پای کښې د غونډې رئيسې مېرمن معصومې عصمتي وويل:

«ښاغلي تره‌کي د پره ښه موضوع یاده کړه، هغه دا چې خوشحال يې له باچاخان سره مقايسه کړ. رښتيا دی دې دواړو مشرانو لويې مبارزې کړې دي او زندانونه يې ګاللي دي.
خوشحال خان وايي:

د خوشحال قدر که اوس په هيچا نشته
پس له مرګه به يې قدر کا عالم

د خان عبدالغفار خان هم که اوس څوک قدر نه کوي، دا هم داسې شخصيت دی چې پس له مرګه به يې قدر وشي.
خوشحال خان وايي: هغه څوک چې د خلکو وينې څښي او

د نورو مل ، ځان او اولادونه دځان له پاره قربانوي، هغه خان نه دی، باچاخان هم دغسې وايي .

د سبا غلي اجمل په مقاله نه پوهېږم چې څه تبصره وکړم . دا یو لوی نازکخیال شاعر او سپېڅلی پښتون دی ، چې د خوشحال خان علمي او ادبي میراث یې په غاړه دی .

دده د وینا په مقابل کښې پرته له ارادت نه ماسره بل څه نشته ، زه دده وینانو خوشحال خان حیني شعرونه بیا تکراروم :

کم فلک دی د زمري په خوله کښې وركړي
د زمری په خوله کښې مه پرېږده همت

* * *

دافغان په ننګ مې وتړله توره
ننګیالی د زمانې خوشحال خټک یم

له محترم استاذ عرشي صاحب سره زه همنوا یم، دستار هر سړي تړي ، دستار څومره ټوکر نه دی ، څوک چې دستار تړي هغه باید د کمال او د ژوندانه د هنرونو، ښوا خلاقو او شرافت خاوند وي .

چه دستار تړي هزار دي
د دستار سړي په شمار دي

د ښاغلی فهیم مقاله ډېره ښه او جامع وه .

د استاد منوچهری سره د خوشحال د اشعارو د تصوفي خوا په برخه کښې همنوا یم .

استاذ وویل چه زه په پښتو نه پوهېږم او د هغې د زده کولو آرزو یې وکړه . څرنګه چه ده د خوشحال په باره کښې ژوره مطالعه کړې ده ، خپل ډېر زیات تشکرات ورته وړاندې کوم . د ده او نورو خارجي استاذانو تشریف راوړل په ټوله نړۍ کښې د ټولو ادب دوستو او هنرپالونکو انسانانو د دوستۍ او همرنګۍ نخښه ده .

* * *

یکشنبه ، د اسد ۳۱ ( د اګست ۲۱ ) :

د اورو ستۍ غونډه او رئیس یې ښاغلی قیام الدین خادم وټاکل شو .

په دې غونډه کښې ښاغلي دوکتور عبدالغفور روان فرهادي ( مشرتوب د خوشحال خان خټک په نظر کښې ) وځېړه .

ښاغلی روان فرهادي زمونږ د هیواد مشهور لیکوال او ژبپوهاند دی . ده په خپله مقاله کښې ثابته کړه چه خوشحال خان سیاست د اخلاقو تابع ګاڼه او هغه د فلورانس حکیم ماکیاولي د نظریاتو په ضد او مخالف و . ماکیاولي په اخلاقو تظاهر سیاست

بولي. او رڼکه نښېي شوه له دې چه د ماکياولي په افکارو په مشخص ډول خبر نه و، مګر د هغه د نظريا تو پيرو و، خو خوشحال ډېر نه و.

ښاغلي عبداللطيف جلالي د خوشحال انتقادي اشعارو څېړل او هغه يې د ملي نهضت د راژوندي کولو په لاره کښي د ده د يو عمر مبارزو محصول وګاڼه. هغه وويل چې خوشحال خان د توري شرافت او د قلم فضيلت د خپل ژوندانه تر ورو ستيو دقيقو پورې په زړه ورتيا وساته.

پوهاند صديق الله رښتين چه د پښتو ژبې له مشهورو پوهانو او ليکوالو څخه دی او د پښتو ژبې ادب او تاريخ، ګرامر او اشتقاق په برخه کښي ژوره مطالعه لري او ډېر آثار يې ليکلي دي، په خپله مقاله (خوشحال او د هغه د نثر څېړنه) کښي د خوشحال خان په منظومو او منثورو آثارو تاريخي او تحليلي څېړنه وکړه. دستارنامه يې له قابوسنامې او خېنو نورو پښتو آثارو سره په لنډ ډول مقايسه کړه. د دستارنامې د نثر سبک او ګرامري خصوصيات يې وښودل، او د خوشحال په بياض يې لنډه تبصره وکړه.

بيا ښاغلي پريشان خټک (د ټنګيالي خوشحال خان خټک) په باره کښي خپله مقاله ولوستله.

ښاغلي پريشان د خوشحال د کورنۍ پوه او فاضل زلمی

د پېښور په پوهنتون کښې د تاریخ استاد دی.

ده خپله مقاله د خوشحال په دې بیت شروع کړه:

د خوشحال قدر که اوس په هیچا نشته
پس له مرګه به یې یاد کا دهر عالم

بیا یې وویل چه د دې پېش ګوئي له مخه وایم چه بابا که ولي نه و نو خالي هم نه دی.

ښاغلي پرېشان دننګ، ننګیالیتوب په باره کښې د خوشحال بابا نظریات بیان کړل.

بیا ښاغلی ډاکتر خطیبي پا څېد او خپله خطابه یې واوروله او ثابته یې کړه چه دی ډېر ښه خطیب دی.

ښاغلی خطیبي د تهران پوهنتون استاد او د ایران د ملي شورا معاون، عالم، لیکوال او ادیب دی. ده افسوس وکړ چه ولې یې پښتو نه ده یاده چه په دې مجلس کښې یې په پښتو ژبه تقریر کړی وای او وې ویل چه خدای دې توفیق راکړي چه بل ځل نه افغانستان ته راځم په پښتو وینا وکړم.

ښاغلي خطیبي د خوشحال خټک په باره کښې وویل:

«نه پوهېږم چه څرنګه چه رودکي د پارسي شعر پلار دی خوشحال خټک هم باید د پښتو شعر پلار وګڼو. دا د توري او قلم مېړه و، چه په زړه وره او جنګیالی له کورنۍ کښې زېږېدلی

دی او سره له دې چه د ژوندانه ډېر وخت يې په جنګ او جګړو کښې تېرېده بيا يې هم په ادبياتو، لغت، ادبي فنونو، ديني او اخلاقي علومو کښې پوره استاذی او تبحر درلود او پيا وړی شاعر او قوي ليکوال و.»

«د تهران پوهنتون د دغه ستر مېړني او د ده د آثار و نمانځنه کوي.»

بيا ښاغلی سلطان محمد صابر د کويټې ليکوال (د خوشحال شخصيت) په باره کښې خپله مقاله واوروله او وې ويل:

«خوشحال خان په خپله زمانه کښې د عمل او توري په ډګر کښې د پښتنو اولس د بيدارولو له پاره د مرګ تر وخته ولاړ و.»

او بيا ښاغلی فضل احمد غازي د کويټې بل ليکوال د (مشرانو او ليکوالو) تر عنوان لاندې خپل مضمون واوراوه. ښاغلی غازي د خوشحال او اقبال د افکارو مقابله او مقايسه کړې وه او بيا آخره کښې يې وويل:

«راځئ چه د بازنامې تعبير په دې نوې اتومي زمانه کښې داسې وکړو چه د خوشحال خان د بازنامې اصلي باز مونږ په خپله يو.»

ښاغلی صابر او ښاغلی غازي د بلوچستان د کويټې مشهور ليکوال او اخبار ليکونکي دي چه د سيمينار په پنځم ورځ کابل ته رسېدلی وو او په همدې لنډه موده کې يې مقالې ليکلې وې.

بیا ما خپل هغه شعر ولوست چه په همدې ورځ کښې د
سیمینار په باره کښې لیکل شوی و. ښاغلی سردار محمد زهیر
کندهاري هم خپل شعر واوراوه او په آخر کښې ښاغلي اجمل
ختک د (ګرانو ملګرو!) تر عنوان لاندې خپل یو په زړه پورې
شعر ولوست چه هر بند ترې چکچکې وشوې. ورپسې ښاغلي
محمد شاه خیال کاکاخېل خپله لنډه وینا وکړه او بیا ښاغلي
قیام الدین خادم دغونډې رئیس په لوستل شوو مضامینو خپله
تبصره واوروله. ده خپله لنډه تبصره لیکلې وه، نو مایا دداشت
وانه خیست. متاسفانه هغه پاته زما لاس ته نه ده راغلې.
ورپسې پوهاند رښتین د پښتو ټولنې رئیس دخوشحال ختک

د نمانځنې د راتلونکې کالیزې په باره کښې د سیمینار دغړو فیصله
واوروله او د ټولو حاضرینو له خوا تائید شوه.
په دې غونډه کښې فیصله وشوه چه دخوشحال ختک دیادونې
بله غونډه دې څلور کاله وروسته په کابل کښې وشي.
د پوهنې وزیر پوهاند انوري ووېل: دې غونډې دخوشحال
خان خاطرې او سترې مفکورې ژوندۍ کړې. حکومت کوښښ کوي چه
د هېواد د سترو شخصیتونو او د هغو کسانو د افکارو د ژوندي
کولو له پاره مؤثر کامونه پورته کړي چه په بین المللي ډګر کښې یې
با ارزښته خدمتونه کړي دي.

د پوهنې وزیر له ټولو رابلل شوو کسانو نه، چه په دې غونډه کښې یې ګډون کړی دی، تشکر وکړ او په بیا لیه ټو ګړ یې د غونډې پای ته رسېدل د پښتو ټولنې د کوښښونو نتیجه وګڼله. بیا د پښتونستان د ستر مشر خان عبدالغفارخان نه خواهش وشو چه څه ووایي.

خان عبدالغفارخان چه د سیمینار داولې ورځې نه تر آخره پورې په منظم ډول د سیمینار او رېدونه راغلی و پاڅېد او په ځیله وینا کښې یې وویل :

زه اول د افغانستان د حکومت او د افغانستان له صدراعظم نه شکر یه کوم چه د خوشحال خان په یاد یې دا سیمینار جوړ کړ او بیا وایم چه :

تاسې د ډېرې خبرې وکړې. په دنیا کښې په تشو خبرو قامونه اوچتېدی نه شي، هغه قامونه چه د ډېرې خبرې کوي هغه زمونږ په شان خوار دي او چه خبرې نه کوي او کار کوي هغه آباد دي. د دنیا نور قومونه هم زمونږ په شان دي خو هغوی آسمان ته ختلی دی، پښتون خو لا تشه خبره هم نشي کولی. کوم قوم چه د بل خبره نشي زغملای هغه قوم په دنیا کښې ترقي کولی نشي. مونږ د اسلام چغه وهو، زه به تاسو ته د حضرت عمر یوه کیسه وکړم. هغه ته یو بدوي د ویل چه

قاچه د ا جوبه اغوستې ده ، معلومه ده چه خیانت دی کړی دی . مسلمانانو په هغه ساراني بدوي په قار شول چه هلکه تازمونږ په خلیفه اعتراض وکړ . خو په خپله حضرت عمر وویل : تاسې مه په قار پږئ دا سي مسلمانان چه وي د مسلمانانو مشران به هیڅوک په غلطه لار روان نه شي .

نن زمونږ څه حال دی ؟ که چا خبره وکړه او هغه د چا د غرض او مطلب خلاف وه بس کافر کوي يې . کوزن او بر له مونږ نه خوشامند ګر جوړ شول . په کار دی چه مونږ ځان کښې زغم پیدا کړو . د بل خبره په سه طریقه واورو ، نه دا چه مونږ يې کافر کړو ، مرتد يې کړو ، وهابي يې کړو .

د خوشحال په باره کښې دوی ډېرې خبرې وکړې ، زه درته وایم تاسې د هغه خوشحال د ډېرو خبرونه یوازې په دوو خبرو عمل وکړئ !

اول د نیا سره مینه او بل د شخصي اقتدار شوق پرېږدئ ! مونږ دې څیز تباه کړو . تاسې که د اسلام تاریخ وګورئ د مسلمانانو خزانې ډکې شوې ، شرق او غرب يې ونیو ، مګر کله چه په مسلمانانو کښې د دولت او پیسو مینه او د شخصي اقتدار شوق

پیدا شو، نتیجه یې نفاق، خانه جنګي او بربادي شوه.

که دخوشحال خان په دغو دوو خبرو عمل وکړو، نو ددې خوارې، زارې او بربادۍ نه هم تاسې او هم وطن خلاصېږي.

نه د پیسو او اقتدار مخالف نه یم، د یو قام د پاره دا ضروري څیزدی. نه دې موږ شې خو چه ستا د غریب او نور سري قوم تعلق ورسره وي. زه اقتدار غواړم، حکومت غواړم، خو د دې د پاره نه چه زه دې حاکم شم.

زه که خوښوم نو هغه پیسه خوښوم او هغه اقتدار خوښوم چه د قوم او وطن د خدمت د پاره وي.»

د با چا خان له وینا نه وروسته غونډه په یوه بجه خوره شوه او په دې شان د خوشحال خان د ۲۸۶ تلین سیمینار پای ته ورسېد.

* * *

د دغې ورځې په ماسپښین هغه واټ چه د محمود خان د پله نه تر ماهیپره ځي (د خوشحال خان واټ) و نومول شو.

* * *

د سیمینار میلمنو شا ملینو د خپلې استوګنې په موده کښې، کابل موزیم، کابل پوهنتون، دولتي مطبعه، د افغانستان

راډیو ستدیو ګانې او د خوشحال خان بنوونځی کتلي ا و د پغمان، استالف او سالنګ سیلونه وکړل او د خپلواکۍ د جشن په لومړۍ ورځ یې په سلطنتي کمپ کښې د رسم ګذشت سیل وکړ او په نورو ورځو کښې یې د افغانستان نندارتون ننداره وکړه او کانسرتونه یې واورېدل.

د سیمینار د داخلي او مېلمنو غړو په ویاړ صدراعظم ښاغلي محمدهاشم میوندوال، د پوهنې وزیر پوهاند انوري، د کلتور او اطلاعاتو وزیر، د کابل پوهنتون رئیس، د قبایلو ریاست او د پښتو ټولنې ریاست مېلمستیاګانې ورکړې دي.

* * *

جذبه که د عمل ور سره یوځای شوه، نو هله
د نیب درانه محفل به یادښتي پاته تر کلونو

(د کابل مجله - پښتو ټولنه
۵/ ۵٦۲ مه ګڼه، د ۱۳۴۵ کال اسد
د ۱۹٦٦ م جولای او اګست)

# دخوشحال

## طب نامه

۱- دخوشحال د طب نامې یوه زړه قلمي نسخه د پښتو ټولنې په کتابخانه کښې شته. د دغه نسخه (۲٤) پاڼې (٤۸) مخونه لري، یوه پاڼه یې له منځ او یوه یې له پای نه غورځېدلې ده. د لیکلو نېټه او کاتب نوم یې معلوم نه دی. لیک یې نستعلیق او د ختکو په لیکدود دی. د دې کتاب په سر کښې نوم یې داسې ښودل شوی دی:
(طب خوشحال ختک تجاوز الله عنه)

۲- د یورتنۍ نسخې نقل چه د ننګرهار د لالپورې مولوي محمدعمر بلبل افغان په قلم لیکل شوی دی. په ښکلي نستعلیق خط او په لږ توپیر د دې زمانې په لیکدود دی. دا کتاب (۱۷) پاڼې (۳٤ مخونه) لري.

د زړې نسخې په عنوا نو نو کښې بلبل افغان تغیرات پیښ کړي

او په روانه معاصره پښتو یې لیکلی دی او ( د خوشحال ختک طب ) نوم یې ورته ټاکلی دی. په آخره کښې یې د مشکلو لغاتو یو فهرست هم جوړ کړی دی، چه ځینې لغتونه یې په خپل فکر حل کړي دي او ځینې یې نورو پښتنو ته پرېښې دي.

دا دواړه نسخې په ۱۳٤۰ هش کال کښې مرحوم بلبل افغان پښتو ټولنې ته ورکړې او د پښتو ټولنې په کتابخانه کښې موجود دې دي.

۳- د پورتنیو دواړو نسخو له مخه په ۱۳۴۵ هش کال د پښتو ټولنې له خوا د پوهاند رښتین په مقدمه دا کتاب چاپ او ( طب نامه د خوشحال ختک ) و بلل شو.

د خوشحال خان د ۳٤٦م تلین د سیمینار په موقع د غه کتاب په نستعلیق لیک آفسیټ په ذریعه په معاصر لیکدود د پوهنې په مطبعه کښې په ( ۵۷ ) مخونو کښې چاپ شوی دی.

٤- فضل نامه د خوشحال ختک د فقهې یو منظوم کتاب دی چه اساسًا طب نامه هم د هغې په ترڅ کښې راغلې ده. فضل نامه ( د پېښور د اشاعت سرحد ) نشراتي مؤسسې له خوا چاپ شوې ده. همدارنګه فضل نامه د ( ارمغان خوشحال ) په ترڅ کښې هم راغلې ده چه د ښاغلي رسا په مقدمه په ۱۹٦٤ م په پېښور کښې په نسخ خط او د پېښور په معاصر لیکدود —

(چه متا سفانه د افغانستان له ليکدود سره څه فرق لري) چاپ شوې ده .

د خوشحال فضل نامه او طب نامه په روانه ، ساده پښتو په خفيف اته څپه اين بحر د مثنوي په ډول ليکل شوې ده .

لکه څرنګه چه له نامه يې معلومه ده ، دا کتاب د طب په موضوع کښې دی او د مختلفو ناروغيو له پاره د يوناني طب مجربې نسخې پکښې راغلې دي او د مېرمن او مېړه د روابطو په باره کښې اخلاقي مسايل هم پکښې شته .

په علمي ـ تاريخي لحاظ دغه کتاب د يوناني ـ اسلامي طب هغې مترقي دورې پورې اړه لري چه د مغلو د سلطنت په وخت کښې د يوناني طب د اسلامي دورې پخواني تاليفات او عنعنې په هند کښې له هندي طب سره مستقيم تماس پيدا کوي او د دواړو له امتزاج نه يو نسبتاً پرمختللی او مترقي شکل منځ ته راځي .

په دې باره کښې زياته خبره نه او د طب نامې پوره شو د نه په هغې خبره نه کښې شوې ده چه له پروګرام سره سم د سږکال په سيمينار کښې به وړاندې شي هلته د دې او نورو پر نسيبو نو له مخه ، د دې بوقلمي نسخو د ښېرف او د بيبلوګرافي له اصولو سره سم

په مفصل ډول دغه نسخې معرفي شوې دی اوسربېره
پر دې د هغې په ادبي معيار او علمي ارزښت
هم پوره رڼا اچول شوې ده او د خوشحال د عصر
ديو ناپي طب د آثارو په رڼا کښې د طب تامي هغه نا
آشنا لغتونه هم حل شوي دی چه د دوا ګانو او
ناروغيو نومونه او يا طبي اصطلاحات دي . کېدی
شي چه په دې باره کښې د نياتو معلوماتو له پاره
د دغه کنفرانس اوريدلو ته هڅه وشي .

په درناوی

ازيری جريده - کابل - پښتو ټولنه
۲۱ مه ګڼه - چهارشنبه د ۱۳۴۹ د زمری ۲۸ مه )

# د خوشحال خټک طب

> دا څېړنه په ۱۳۴۹ هش کال د خوشحال خټک د دویم بین المللي سیمینار
> لپاره شوې او بیا خپره یې د سیمینار په وروستي ورځ اورول شوې ده.
> د څېړونکي شخصي رایو د منلو لپاره د سیمینار د ویناګانو او څېړنو په مجموعه
> (د نومیالي پښتون) نومي کتاب کښې نه ده خپره شوې.
> څرنګه چې د خوشحال خټک دیو قلمي اثر پوره جوړونه پکښې شوې ده او س یې وړاندې کوو:

تر هر څه د مخه دیوهانو لیکوالو د جرګې نه منته کوم چه ما ته یې دا افتخار راکړ چه د خوشحال دیو اثر په باره کښې څېړنه وکړم او په دې د ر نه ټولنه کښې څه ووایم.

ما ته دا وظیفه راکړې شوې ده چه د خوشحال طب نامه معرفي کړم. کله چه د دې کار د مواد و د راټولولو په غرض اول د پښتو ټولنې کتابخانې ته ننوتم، هلته مې د خوشحال خټک د طب یوه زړه قلمي نسخه او بله مې د هغې قلمي نسخې نقل پیدا کړ. چه طبعًا زما د کار محور هم د غه قلمي نسخه ده.

زما د غه کار درې برخې لري:

۱- د قلمي نسخې معرفي د یوې زړې نسخې په حیث.

۲- د نسخې ادبي فورم او د هغې ضروري ادبي او لغوي څېړنه.

۳- د نسخې محتوی او مضمون او د هغې علمي ارزښت.

د زړې قلمي نسخې په حیث د دې نسخې په معرفه کښې د ببلوګرافۍ او د زړو قلمي آثارو د معرفۍ د خورا نوو اصولو او پر نسیبو نو، نه کار اخیستل شوی، څو چه د دې نسخې د معرفې نه سربېره د نورو نسخو نوو او ځوانو څېړونکو ته د څېړنې یوه عملي نمونه هم وړاندې شي.

د نسخې ادبي فورم به د ضرورت په اندازه وڅېړل شي او ناآشنا فني لغتونه به یې حل شي.

د موضوع په لحاظ د طب د علم دیو ډېر لنډ تاریخي پس منظر د وړاندې کولو وروسته به د دې اثر علمي مقام او ارزښت څرګند شي. د کار د ماهیت په تقاضا به کوښښ وشي چه دا څېړنه په پوره بې طرفۍ بنا وي او د احساساتو، جذباتو او هیجاناتو توپان ونه لري. نو که لوستونکي او اورېدونکي زړه تنګي شوو ما به وبخښي. او امید لرم چه د ادب څېړونکي او محصلین به ضروري استفاده وکړي او د ملګرو د ازړه تنګي به په هغه تلافي شي.

## زړه قلمي نسخه:

د پښتو ټولنې په کتابخانه کښې یوه وړه

زهه قلمي نسخه شته چه پوښ یې د ۲۰ × ۱۳ نیم سانتي متر و
په اندازه دی .

په خړرنګی پښتۍ باندې یې یو سپین کاغذ سلیښ شوی دی
او ورباندې لیکل شوي دي (د خوشحال ختک د طب قلمي قدیمي کتاب)
وریسې په بل تور رنګ (۱۷) لیکل شوي دي .

پښتۍ چه بېرته شي بیا د کتاب لوېوالی تورهم ورکوټی یعنې
د ۱۷ × ۱۲ سانتي متره په اندازه ده . درې خړېخنی سپینې پاڼې
په سرکښې او درې په آخر کښې او د دغوې منځ کښې په (۲٤)
پاڼو کښې قلمي نسخه ګنډل شوې ده . د سپینو پاڼو په سر او
آخر کښې د پښتو بولنې مهر ونه لګول شوي دی . د سپینو پاڼو
نه وروسته بیا د کتاب اول مخ زمونږ مخې ته راځي . د اول مخ
دوه لومړنۍ کرښې داسې دي :

« مسئله : که څوک پر اوبو باندې ورشي څاروی وګوري ، سود
یا زیان له هغه کښي کافر شي - تم تمام شد . »

داسې معلومېږي چه دا د کوم بل کتاب وروستۍ کرښې دي
چه په لومړي سرکښې دې کتاب سره یوځای لیکل شوی دی . د دغو
دوو کرښو نه وروسته کتاب په :

بسم الله الرحمن الرحیم

شروع کېږي . د (بسم الله) په مقابل کښې په حاشیه کښې د کتاب نوم

(طب خوشحال خطک) په سره رنگ او ورپسې (تجاوز الله عنه) په تور رنګ لیکل شوی دي. دا عبارتونه په هماغه لیکدود دي چه ټول کتاب وربانديې لیکل شوی دی. د همدې مخ پر حاشیه کښې په بل خط لیکل شوي دی: دا کتاب له کتبخانې د مولوي محمدعمر بلبل افغان څخه دی (۱)

کتاب داسې شروع کیږي:

په داروکښې چه سنبعینتۍ — لاارونه وي عبادت وي
عبادت په روغ صورت شي — کنه کله عبادت شي
ما د طب په کتابو نه — نظر کړی په بابونه
چه هر رنځ لره فایده ده — هلیله ده، هلیله ده

ورپسې (۱۷) بیتونه نور دي، بیا یو عنوان دی. د ټولو عنوانو فهرست او د بیتونو شمیر داسې دی:

د داروی چشم - دویمه پاڼه، الف - ۱۸ بیتونه
ایضاً برای چشم - دویمه پاڼه ب - ۵ بیتونه
ایضاً - دریمه پاڼه - الف - ۳ بیتونه
ایضاً دارو دسترګو د کدورت - دریمه پاڼه الف - ۱٤ بیتونه
ایضاً دارو دسترګو - دریمه پاڼه ب - ۲ بیتونه

(۱) دا کرښه په خپله مولوي محمدعمر بلبل افغان لیکلې ده.

ایضًا دارو دسترگو - دریمه پانه ب - ۸ بیتونه

ایضًا دارو د نزول یعنی آب مروارید - شلورمه پانه الف - ۷ بیتونه

دارو د یرقان - څلورمه پانه ب - ۱۱ بیتونه

علاج د پیشک - پنځمه پانه الف - ۷ بیتونه

دارو د کنده دانو - پنځمه پانه ب - ۸ بیتونه

ایضًا له - پنځمه پانه ب - ۱ بیت

ایضًا - شپږمه پانه الف - ۲ بیتونه

دارو د تو‌خي - شپږمه پانه الف - ۳ بیتونه

ایضًا - شپږمه پانه الف - ٤ بیتونه

دارو د استسقاء - شپږمه پانه الف - ۷ بیتونه

ایضًا شپږمه پانه - ب - ۸ بیتونه

دارو د تنځرولو - اوومه پانه الف - ۳ بیتونه

ایضًا اوومه پانه الف - ۳ بیتونه

ایضًا اوومه پانه الف - ۳ بیتونه

قوت باء - اوومه پانه ب - ۲ بیتونه

ایضًا قوت مباشرة - اوومه پانه ب - ۹ بیتونه

ایضًا اتمه پانه الف - ۹ بیتونه

معجون نبی - اتمه پانه ب - ۱۰ بیتونه

علاج مرد بسته - نهمه پانه الف - ۱۱ بیتونه

دارو د بواسیر - نهمه پا نه ب - ۷ بیتونه

دارو د نفس د خلط د هر علت د اشتها د پرولو د رنګ د شه کېدلو - نهمه پا نه ب - ١٤ بیتونه

دارو د نس خوږي - لسمه پا نه ب - ۸ بیتونه

ایضاً د نفس خوږي - لسمه پا نه ب - ٦ بیتونه

ایضاً یوولسمه پا نه الف - ۳ بیتونه

ایضاً یوولسمه پا نه الف - ٤ بیتونه

جلاب - یوولسمه پا نه ب - ٦ بیتونه

دارو د څاوتی د تبې - یوولسمه پا نه الف - ٦ بیتونه

ایضاً دارو د مسهل یعنی جلاب - دولسمه پا نه الف - ۱۸ بیتونه

د وجود د باد دارو - دیارلسمه پا نه الف - ٦ بیتونه

دارو د باد لقوه - دیارلسمه پا نه الف - ۵ بیتونه

داروی خفته باد - دیارلسمه پا نه ب - ۳ بیتونه

دارو د بول بسته - دیارلسمه پا نه ب - ٤ بیتونه

داروی سنګمثانه - څوارلسمه پا نه الف - ۲ بیتونه

ایضاً څوارلسمه پا نه الف - ٤ بیتونه

فایده د سپلنو - څوارلسمه پا نه الف - ۷ بیتونه

دارو د پرمیو د زحمت - څوارلسمه پا نه ب - ۵ بیتونه

ایضاً څوارلسمه پا نه ب - ٤ بیتونه

ایضًا۔ پنځلسمه پاڼه الف ـ ۵ بیتونه

علاج درد سر۔ پنځلسمه پاڼه الف ـ ۱۱ بیتونه

فایده د وینو د وشکو ۔ پنځلسمه پاڼه ب ـ ۱۸ بیتونه

فصل ـ شپاړسمه پاڼه ب ـ ۱۹ بیتونه

فصل ـ اولسمه پاڼه الف ـ ۳۵ بیتونه

حق زن به مرد ـ نولسمه پاڼه الف ـ ۳۷ بیتونه

فصل رجال الغیب ـ شلمه پاڼه ب ـ ۹ بیتونه

دې بیتونو پسې (یوویشتمه پاڼه الف) په پای کښې (د استو جهانو وړوکی جدول او په ټوله (یوویشتمه پاڼه ب) کښې د (رجال الغیب جدول) کښل شوی دی.

په (دوه ویشتمه پاڼه الف) کښې (دعا باد خرده وسرخ باد وغیره) تر عنوان لاندې په عربي او فارسي ژبو یوه دعا ده چه د همدې کتاب په لیکدود لیکل شوې ده.

په (دوه ویشتمه پاڼه ب) کښې د خوشحال بله قصیده بې عنوانه شروع کېږي چه اول بیت یې دا دی:

د حکمت ویل به وایم مختصر      په معنا کښې قیمتي لکه گوهر

د (څلورویشتمې پاڼې ب) تر آخره دوام کوي. ټول (۵۶) بیتونه دي.

د وروستیو دري بیتونو د اولو مصرعو ځای د کاغذ د زوړوالي په وجه سوری شوی دی چه تر شا یې د (څلورویشتمې پاڼې الف) د

دریوو بیتونو (۴۱ - ۴۲ - ۴۳) دوهمې مصرعې له منځه تللې دي.
دوروستي مخ وروستۍ مصرع دا ده:

ګونا ګون زحمت ورکړې یې دا چې

په آخرې څنډه کښې (څو چه) لیکل شوی ده او دا افاده کوي
چه درا تلونکې پاڼې شروع په دې عبارت کړي، مګر متاسفانه
هغه پاڼه نشته.

د نورو منابعو له مخه دلته د دې نسخې پنځه وروستي بیتونه
کم دي.

د دې نسخې آخرې پاڼه نشته او په نورو برخو کښې د هغه د
ناسخ نوم او د لیکلو تاریخ هم نه دی لیکل شوی.

د دې نسخې د اوولسمې او اتلسمې پاڼې هم یوه پاڼه نشته او
(د چاپي نسخې په تطبیق) (۲۱) بیتونه پکې کم دي.

د وروستۍ قصیدې (د حکمت ویل ...) د شپاړسم بیت اوله
مصرع سرچپه لیکل شوې ده او چه هنداره ته و نیول شي لوستل کیږي.
دا مصرع په چاپي نسخو کښې راسته راغلې ده.

مګر چیرته چه د خوشحال په کلیاتو کښې دا قصیده راغلې ده
هلته څه نه دي ویل شوي چه دغه مصرع د هغو په اصلي قلمي نسخو
کښې څنګه لیکل شوې ده. د خوشحال د کلیاتو په هغه قلمي نسخه
کښې چه په پښتو ټولنه کښې شته هم راسته لیکل شوې ده.

سړي نه شي ویلی چه دغه چېه لیکل پخپله دخوشحال له وخته په عنعنوي ډول پاته دي او که زموږ دهمدغې نسخې کاتب دا کار کړی دی.

دچپه لیکلو دلیل دادی چه هلته زموږ دعرف اوعادت نه خلاف بربنډتیا موجوده ده، کاتب به دې چل هغه پټه کړې ده. دخوشحال دکلیاتو دپښتو ټولنې په قلمي نسخه کښې د پورتني بیت دوهمه مصرع داسې راغلې ده:

که راوي وي په حدیث دپیغمبر

زموږ دموجوده قلمي نسخې په حاشیو کښې ځای پځای دمتن عنوانونه، کله کله دځینو لغاتو ترجمه یا دمتن دقلم خوړه اوغلط شوي عبارت صحیح شکل، په ځینو ځایونو کښې په فارسي ژبه دطب ځینې نسخې او ځینې دعاګانې دمتن په لیکدود لیکل شوي دي او معلومېږي چه دناسخ په قلم دي.

. دکتاب په متن کښې هم دځینو لغتونو لاندې په سره رنګ دهغو ترجمه لیکل شوې ده. دغه نسخه (۲٤) یا ېنې لري چه (٤٨٦) مخونه ترې جوړېږي. دانسخه په نستعلیق خط او دخټکو په لیکدود ده. هر بیت یې په یوه کرښه اودبیت دواړه مصرعې یې سره مخامخ دي. د (ځ، ږ، ښ، ګ، ڼ) توري یې په (څ، ژ، ش، ګ، نړ) لیکلي دي.

## بله نسخه :

بله نسخه سره برگه پښتي لري او ۲۱×۱۷ سانتي مترو په اندازه ده . په پښتي د سپين کاغذ يا رچه لګول شوې ده او د پاسه پرې ليکل شوي دي (دخوشحال خان خټک دطب دقلمي قديمي کتاب نقل) .

د پښتي په منځ کښې کتاب دی چه يوه سپينه پاڼه په سرکښې او يوه په پای کښې لري . د سپينو پاڼو په اول او آخر مخ کښې د پښتو ټولنې مهرونه لګېدلي دي . ټولټال کتاب (۱۷) پاڼې لري چه (۳٤) مخونه ترې جوړېږي .

دا کتاب د مخکښې نسخې په څېر د ننګرهار د لالپورې مرحوم مولوی محمد عمر بلبل افغان په سپين کاغذ ، ښکلي خط ، په اوسني ليکدود پاکنويس کړی دی . ښايي ده دغه زړه قلمي نسخه اونقل کړې نسخه پښتو ټولنې ته ورکړې ده . نو ځکه د دواړو متن او ترتيب يوراز دی ، او د مرحوم بلبل افغان نسخې ځانله خصوصيات دادي :

دکتاب په اول مخ کښې په غټ ليک او سره رنګ د يو مثلث په منځ کښې دکتاب نوم (د خوشحال خټک طب) ليکل شوی دی .

بيا په نوررنګ او متوسط قلم (بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ) ليکل شوی او بيا په کتاب شروع شوې ده . دکتاب متن عيناً نقل شوی دی، مګر

په عنوانو کښې څه تغیرات پېښ شوي دي، تغیر شوي عنوانونه په دې ډول دي ؛

| د زړې نسخې عنوانونه | د بلبل افغان د نسخې عنوانونه |
| --- | --- |
| داروی چشم | دارو د سترګو |
| ایضًا برای چشم | ایضًا د سترګو لپاره |
| دارو د یرقان | د یرقان دارو |
| دارو د ګنده دانو | د ګنده دانو دارو |
| دارو د ټوخي | د ټوخي دارو |
| دارو د استسقاء | د استسقاء دارو |
| دارو د نه څرولو | د نه څرولو دارو |
| دارو د بواسیر | د بواسیرو دارو |
| دارو د نفس د هرعلت د اشتها د پرولو د رنګ د ښه کېدلو | د نفس د خلط د هرعلت د اشتها د پرولو د رنګ د ښه کېدلو دارو |
| دارو د نس خوږي | د نس خوږي دارو |
| ایضًا دارو د نس خوږي | ایضًا د نس خوږي دارو |
| دارو د څاوتي د تبې | د څاوتي د تبې دارو |
| ایضًا دارو مسهل یعنی جلاب | مسهل یعني جلاب |
| دارو د باد لقوه | د باد بالقوه دارو |
| داروی خفته باد | د خفته بادو دارو |
| دارو د بول بسته | د بول بسته دارو |

| د زړې نسخې عنوانونه | د بلبل افغان د نسخې عنوانونه |
|---|---|
| داروی سنګمثانه | د سنګ مثانې دارو |
| فایده دسپلنو | دسپلنو فایده |
| دارو د پرمیو د زحمت | د پرمیو دارو |
| علاج درد سر | د سردرد دارو |
| فایده دویښو دوشکو | دویښو دوښکو فایده |
| حقوق زن به مرد | حق د ښځې په مېړه |

لکه چه ګورو د عنوانو په اړوندو کښې د مرحوم بلبل افغان پر نسبت دا دی چه فارسي عنوانونه یې پښتو کړي دي او پښتو عنوانونه یې چه د فارسي تر تاثیر لاندې وو په روانه معاصره پښتو لیکلي دي .

د زړې قلمي نسخې په (دوولسمه پاڼه الف) کښې چه کومه دعا لیکل شوې ده، هغه بلبل افغان نه ده نقل کړې . په (دوولسمه پاڼه ب) کښې چه کومه قصیده بې عنوانه لیکل شوې ده د هغې له پاره مرحوم بلبل افغان داسې عنوان لیکلی دی: (طبیه قصیده یا لنډه حفظ الصحه) .

د دې قصیدې د شپاړسم بیت اوله مصرع چه په زړه نسخه کښې سرچپه لیکل شوې ده ، بلبل افغان هغه راسته لیکلې ده او په حاشیه کښې یې اشاره ورته کړې ده . د کتاب متن په (۳۱) مخونو کښې خلاص شوی

دی . په وروستیو څلورو مخونو کښې مرحوم بلبل افغان د کتاب د کړانو لغاتو ترجمه لیکلې ده . او داسې یې شروع کوي :

« د دې کتاب نادر کلمات او لغات چه د پښتو د پاره ډېر قیمت لري د الفبا او د مخونو د شمېر په نخښه په لاندې ډول دي :
یو څه ما د خپله وسه پورې تشریح کړل او څه مې نورو پښتنو وروڼو ته پرېښودل والسلام ».

وروسته یې بیا د کتاب (۲۸) تا آشنا لغتونه نقل کړي دي چه (۸) یې په خپله معنا کړي دي او (۲۰) یې نورو پښتنو ته پرېښي دي . په پای کښې یې لیکلي دي :

« د خوشحال خان خټک رح د طب نقل د اصلي قلمي نسخې نه ، او نادر کلمات او لغات د مخه (۳٤) څلور د پرشو مخونو کښې ختم شول والحمد لله رب العلمین . مولوي محمد عمر بلبل افغان . »

متاسفانه چه مولوي بلبل افغان هم د دغه کار تاریخ نه دی لیکلی البته پخپله د ده د ژوند او وفات نېټه معلومه ده .

مرحوم بلبل افغان د پښتو شاعر او خطاط په (۱۳۰۵ هـ ق) کال د ننګرهار په لالپوره کښې زېږېدلی او د (۱۳٤۵ هـ ش) کال د جوزا په میاشت سیه کابل کښې وفات او په لالپوره کښې ښخ شوی دی .

نوموړې د خوشحال خټک د طب دواړه قلمي نسخې په (۱۳٤۰ هـ ش) کال پښتو ټولنې ته سپارلي دي . د مرحوم بلبل افغان لیکدود

په لږ فرق د دې زماني دی . ده هم د (ټ) پرځای ( ټ )
ليکلی دی او کله کله يې د زړې نسخې تر تاثير لاندې د (ږ)
پرځای ( ژ ) ليکلې ده . او يا د علت توري يې غورځولي دي .
مثلاً د ده د نسخې ديوولسم مخ وروستۍ نښه داسې ده :

دارچيني ورباندې مږي کند گرم شي ستا سږي

چه دا اوس داسې ليکل کېږي :

دارچيني ورباندې مږي کوندې گرم شي ستا سږي

په دې ړولږ و ځايو نو کښې د نقل کولو په وخت کښې د مرحوم
بلبل افغان نه څه سهوې هم شوې دي او يو نيم بيت هم ترې
پاتې دی ، چه له زړې نسخې سره د تطبيق په صورت کښې سړی
پرې پوهېدلی شي .

داسې معلومېږي چه نوموړي به خپل نقل له اصل سره
نه وي مقابله کړی .

## چاپي نسخه :

د خوشحال د طب ځانله لومړنۍ چاپي
نسخه هغه ده چه په (١٣٤٥ هش) کال د خوشحال خان د ٢٨٦ تلين
په موقع د سيمينار په مناسبت د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوې ده .
دا نسخه د ٢١ نيم × ١٤ سانتي مترو په اندازه د پښتو ټولنې
د خپرونو د (١٨١) پر له پسې لمبر لاندې چاپ شوې ده . د پښتې

په سر په نستعليق مشقي ښکلی خط (طب نامه دخوشحال خټک) ليکل شوې ده. په دوهمه پښتۍ کښې د دې نامه پسې ليکل شوي دي: (د پوهاند رښتين په سمونه اوکتنه - پښتو ټولنه ۱۳۴۵) په يله پاڼه دخوشحال خټک تصوير چاپ شوی دی. په بله پاڼه کښې د (بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ) نه وروسته د پوهاند رښتين (لومړنۍ خبرې) دي. د دغه خبرو له مخې دا کتاب د پښتو ټولنې د زېړې قلمي نسخې او د مرحوم بلبل افغان په قلم ليکل شوې نسخې له مخه چاپ شوې ده او هغه فرقونه چه د (فضل نامې) او (کلياتو) له متن سره ليدل شوي دي په حاشيه کښې راغلي دي. د پوهاند رښتين له مقدمې نه وروسته (د خوشحال خټک اثرونه) ښودل شوي او بيا دخوشحال د کلياتو قلمي نسخې معرفي شوي دي او ورپسې (د خوشحال په باب ليکل شوي اثرونه) ښودل شوي دي، چه دې ټولو خبرو (۱۳) مخونه نيولي دي، ورپسې يو مخ سپين دی. بيا کتاب شلګه چه په قلمي نسخو کښې دی د (بسم الله) نه وروسته په دې بيت شروع شوی دی:

په دارو کښې چه ښه نيت وي
دارونه وي عبادت وي

بيا د کتاب متن په نستعليق خط او د آفسيټ په چاپ په (۴۸) مخونو کښې پای ته رسېږي. د کتاب عنوانونه په (نسخ) ليکل

شوي دی. عنوانونه دزړې قلمي نسخې غونډې راغلي دي يوازې
د (ايضًا) عبارت (بل رنګ) شوی دی.

ليک دود يې داوسنۍ زمانې د معياري ليکدود او د پښتو
ټولنې له فيصلو سره سم اړول شوی دی.

دزړې قلمي نسخې په (شپاړسمه پاڼه ب) کښې په دريمه کرښه
کښې د (فصل) عنوان دی او مطلب يې داسې شروع کېږي:

بار چه وا خلي ارتينه ...

د چاپي نسخې په (۲۸) مخ کښې دا عنوان (ذکر د عورت
د حمل) ليکل شوی دی.

دزړې قلمي نسخې په (اوولسمه پاڼه الف) کښې يې (فصل) عنوان
دی او داسې شروع کېږي:

حق د مرد په زن بسيار دی

د چاپي نسخې په (۲۹) مخ کښې دا عنوان (حق د مرد په عورت)
ليکل شوی دی.

په همدې فصل کښې په قلمي نسخه کښې يوه پاڼه لويدلې ده
او په چاپي نسخه کښې (۲۱) بيتونه له نورو چاپي متنا بعونه نقل شوي
دي، چه اول او آخر بيتونه يې دا دي:

اول: که ميره يې خندا غواړي دا دې خاندي هم دې وياړي

آخر: هره چار دې په رخصت کا کنه وايه خيانت کا

د دې قلمي نسخې په (نولسمه پاڼه الف) کښې (حق زن به مرد) يو عنوان دی او د چاپي نسخې په (۳۳) مخ کښې دا عنوان (حق د عورت په مېړه) دی. دا فصل په دواړو نسخو کښې په دې بيت پای ته رسېږي:

څو به ښځې پسې دروي
مرد به هومره ثواب مومي

لکه چه معلومه ده په چاپي نسخه کښې دغه درې واړه ذکر شوي عنوانونه له (فضل تامي) څخه اخيستل شوي دي. ورپسې په قلمي نسخه کښې (فصل رجال الغيب) بيا درجال الغيب جدول او بيا (دعا باد خرده) ده چه دا يو هم په چاپي نسخه کښې نه دي نيول شوي او نه چېرته ورته څه اشاره شوې ده.

دې پسې په دواړو نسخو کښې (دحکمت ويل ....) قصيده ده چه د چاپي نسخې په (۳۶) مخ کښې شروع کېږي او (د محبت خبرې) عنوان ورکړ شوی دی.

د قصيدې په پای کښې هغه پنځه بيتونه هم له چاپي نسخو نه نقل شوي دي چه د پاڼې دلوېدو په وجه په قلمي نسخو کښې نشته.

(دخوشحال خټک مرغلرې - دکندهار چاپ - ۳۱۷) او ادبي پښتو ټولنې دکتابخانې دکليات په قلمي نسخه کښې) په دې قصيده کښې درې بيتونه نور هم شته چه قلمي او چاپي نسخو کښې نشته او موږ يې دلته ښيو:

د خوشحال د چاپي طب نامې د قصیدې د (۱۸) او (۱۹) بیتونو ترمنځ :

تر زعفرانو تر عنبرو لري ډېره
په خوراک او په بخور نفع اکر (۱)

د (۲۷) او (۲۸) بیتونو ترمنځ :

ډېر زحمت په وخت د مني پیداکیږي
لکه سل، تبه، قولنج بلا بتر

د (۳۲) او (۳۳) بیتونو تر مینځ :

د مولې په خوراک دي دوې ګټې
بدهضمي ریګ مثانه کاندي بدر

د خوشحال د کلیاتو په هغه قلمي نسخه کښې چه د پښتو ټولنې په کتابخانه کښې موجوده ده دا بیت هم راغلی دی چه په پورته ذکر شویو نسخو کښې نشته او د چاپي طب نامې د (۲۵) او (۲۶) بیتونو ترمنځ یې ځای دی :

ګرد غبار غارمه چیقر هوا بد بوییه
رنځ علت وبا کیږي اکثر

---

(۱) اکر (ه) ـ عود هندي (ع) : دیوې غزنه ونې د څانګو او ډډ لرګی دی چه ډېر خوشبوی لري. داعصابو، حواسو، دماغي قواوو، زړه، معدې، ینې تقویه کوونکی دی او په ډېره دوا ګانو کښې استعمالیږي. (۳)

د چاپي طب نامې د قصيدې (۳۲) او (٤٩) بيتونه په زړه قلمي نسخه کښې نشته او له چاپي نسخو نقل شوي دي.

دغه دوه بيتونه د پښتو ټولنې د کتابخانې د خوشحال خټک د کلياتو په قلمي نسخه کښې هم شته هغه دادي:

په خوراک د ياسمن دروي خورنځه ترسيرى لقوه فالج هم دردسر
چه تودې او په څوک ښني غرمه ولي په نقصان د اشتهاء شي رنگ اصفر

د دې قصيدې په پای کښې د طب نامې په (٤٠) مخ کښې ليکل شوي دي (د قلمي نسخې پای). وروسته بيا دغه مضامين د فضل نامې څخه نقل او دلته چاپ شوي دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| د صحبت اداب | ٤١ | مخ | (٥٠) بيتونه |
| د عورتې اداب | ٤٤ | مخ | (٣٣) بيتونه |
| د حمام تعريف | ٤٦ | مخ | (١٣) بيتونه |
| کسب او کار | ٤٧ | مخ | (١٩) بيتونه |

او په (٤٨) مخ کښې هر څه خلاصېږي.

د (٤٩) نه تر (٥٧) مخه پورې (د طب نامې د لغاتو معنى) تر عنوان لاندې (١٤٠) لغتونه ليکل شوي دي، چه يوازې (١٧) يې پاتې دي او نور وروته يې معناګانې ليکل شوي دي.

د پښتو په وروستي مخ کې د پښتو ټولنې مارک، د کتاب نوم په لاتيني حروفو، د چاپ نېټه، د چاپ شمېر ۲۰۰۰ نسخې او د يوهنې د مطبعې مارک

چاپ شوی دی .

## دکتاب نوم :

د چاپي طب نامې په مقدمه کښې پوهاند

رښتین لیکلی دي :

«د که څه هم زموږ د ادبیاتو د تاریخ په کتابونو کښې دغه نوم (د صحة البدن) په نامه ثبت شوی دی ، خو دومره د روند عربي نوم هیڅکله د خوشحال خټک په طبیعت برابر نه راځي ، له دې کبله مو د (طب نامې) نوم غوره وباله .»

په دې برخه کښې سړی دومره ویلی شي چه آیا صحة البدن نومې کتاب هم دغه دی او که بل ؟

په دې باره کښې قطعي تحریري سند نشته . کیدی شي چه د همدغه کتاب نوم یا پخپله مؤلف یا بل چا صحت البدن ایښی وي او یا له سره هغه بل اثر وي .

نه پوهیږو چه د خوشحال په طبیعت دومره د روند عربي نوم برابر دی که نه دی ؟ مګر د یوناني طب په تالیفاتو کښې داعنعنه موجوده ده چه د فارسي ژبې د طب کتابونه عربي نومونه لري ، لکه : میزان الطب ، دستورالعلاج ، مخزن الادویه ، تحفة المؤمنین او نور چه فارسي کتابونه دي او نومونه یې عربي دي ، نو د (صحة البدن) نوم به څه غلطي ولري ؟ د اعنعنه یوازې د طب په کتابونو کښې نه

بلکه په نورو موضوعاتو کښې هم ګورو؛ لکه: مخزن الاسلام (پښتو) خیرالبیان (په څلورو ژبو) اسرار العارفین (پښتو) شعر العجم (اردو - فارسي)، سیرة النبي (اردو - پښتو) او نور.

د پښتو ښو لنې په زړو قلمي نسخه کښې دا نوم په سره رنګ (طب - خوشحال ختک) لیکل شوی دی، د طب دکتاب دغه رنګه نوم هم په طبي تالیفاتو کښې عنعنوي شکل لري، لکه: طب نبوي، طب الصادق، طب اکبر، طب یوسفي او نور. نو (طب خوشحال ختک) هم په هماغه سلسله راتلی شي او په قلمي نسخه کښې دکاتب په قلم لیکل شوی او ترڅو چه تردې بله قوي سند منځ کښې نه وي دا سند قوي ګڼلی شو.

هو! مولوي محمد عمر بلبل افغان په خپله نسخه کښې دغه نوم په پښتو ترکیب اړولی دی او (د خوشحال خان ختک طب) یې لیکلی دی. په دې صورت که مرحوم بلبل افغان یا بل ناسخ او کاتب ته دکتاب د لیکل شوي نوم داړولو او ترجمه کولو حق حاصل وای بیا نو زه دغه شکل غوره بولم او د (خان) دکلمې په حذفولو یې له اصل سره مطابقه ترجمه بولم. ځکه چه په هغه اصلي نسخه کښې چه مرحوم بلبل افغان خپله نسخه دهغې له مخې نقل کړې ده، د (خان) کلمه نشته.

## د فضل نامې په ترخ کښې:

د خوشحال ختک د طب منظومه د (فضل نامې) په ترخ کښې هم راغلې ده،

فضل نامه اساساً د فقهي يو منظوم کتاب دی، مګر د طب او نورې خبرې هم پکښې شته.

د طب بحث په فضل نامه کښې داسې شروع کېږي:

# فصل

## ذکر ادویات

په دارو کښې چه سنه نیت وي دارو نه وي عبادت وي

بیا نور فصلونه یې د نورو نسخو غوندې دوام کوي. د (ذکر د عورت د حمل) د فصل نه وروسته بیا بله موضوع شروع کېږي او تر دې وروسته په ښېرم فصل کښې (حق د مر د په عورت) راځي او ورپسې فصل کښې (حق د عورتې په خپل میړه) بیانېږي.

د فضل نامې په سر کښې (ذکر تالیف د کتاب) کښې وايي:

| | |
|---|---|
| داسږ کال چه د غفط[1] دی | یو کتاب مې په نمط دی |
| چه یې نوی بنیاد کېږ دم | یو دا کار په جهان پرېږدم |
| ساده نظم یې د قسته | بې اشکاله یې لغته |
| په خفیف بحر ویلې | تکلف ځنې و ستلې |
| چه اسان په یاد ول وي | مختصر بنګلی په کښل وي |

[1] غفط: د ابجد په حساب (۱۰۸۹) کېږي چې د فضل نامې د لیکلو هجري قمري کال دی.

چه هر څوک ورته وګوري نېک عمل ورته و ښوري
چه لازمې مسئلې دي د رسول د پاکې خولې دي
له حديثه لـه آيتـه له توحيده له طاعته
نه ياري غواړم له خدايه چه حرف ونه کښم بې ځايه
خاص اخلاص راکه وماته بل غرض ووځي له ميانه
کار پرې ساز اول زما شي د هر چا په غرض بيا شي
د حکمت له کتابونـو راوتلې له بابونو
د دنيا د زيست خبري يکښې هم شته دی نادري
د فضل نامې په آخر کښې منظومه خاتمه داسې
شروع کيږي :

شکر دا چه په آخر شو دا کتاب مې تمام ژر شو
په روژه کښې التيام شو دا ختر په ورځ تمام شو
چه تمام مې په خامه کړو مالې نوم «فضل نامه» کړه
ترجمه يې هم په نوم دی که يې بولي څوک موږم دی

(۱۹) بيتونه نور دي، بيا د خاتمې خاتمه داسې کيږي:

والسلام خبره تم شوه
که په بيش وه که په کم شوه

په ورځ د دوشنبې (۲۵) ماه رمضان المبارک غفط سنه ۱۰۸۹هـ
ختمه شوه.»

له یو رتنه مقدمې او خاتمې نه دا راووځي چه طبي مسایل
پخپله د خوشحال خټک له خوا د فضل نامې په ترتیب کښې اوډګ،
کتاب د فصلونو په حیث لیکل شوي دي. یعنې دغه کتاب
ده پخپله داسې لیکلی دی:

چه لازمې مسئلې دي | د رسول د پاکې خولې دي
له حدیثه له آیـتـه | له توحیده ، له طاعته

او همدا رنګه:

د حکمت له کتـابونو | راو تلې له بابونـو
د دنیا دزیست خبرې | یکښې هم شته دی نادرې

یعنې د لته د فقهي، اخلاقي، روایاتو او طب مسایل-
یو ځای د کتاب په حیث لیکل شوې دي، بلکه اساساً خوشحال
خټک طبي مسایل هم د دیني عقیدې په اظهار د عبادت په
نیت لیکلي دي او داېې هم د شرعي احکامو، شرایطو او وسایلو
یوه برخه ګڼلې ده، او د همدې له امله یې طبي خبرې داسې
شروع کړې دي:

په دارو کښې چه ښه نیت وي | دارو نه وي عبادت وي
عبادت په دروغ صورت شي | ګنه کله عبادت شي

په دې حساب کېدی شي چه د خوشحال خټک د طب رسله وروسته د
فضل نامې نه د ځانله رسالې په حیث بېله شوې وي.

خوداچه دا کار چا کړی دی؟ پخپله خوشحال خټک او که
بل چا؟ او دا کار کله شوی دی؟ دا سې پوښتنې دي چه
حل غواړي. دا باید ووایو چه (د حکمت ویل ....) اوږده قصیده
په فضل نامه کښې نښتې او هغه د خوشحال خان د کلیاتو د
قصاید و په برخه کښې راځي. د هغې وزن او فورم هم د فضل نامې
سره فرق لري، نو ځکه هم د فضل نامې یا طب نامې جز نه شو
ګڼلی. په زړو قلمي نسخو کښې هم داسې راغلې ده چه د هغه او نورو
برخو ترمنځ یوه پاڼه په بله موضوع ډکه شوې ده او په منځ کې
یې یو فاصل پیدا شوی دی.

فضل نامه (د پېښور دا شاعت سرحد) د نشراتي مؤسسې له
خوا چاپ شوې ده، چه کومه نسخه یې اوس زما په لاس کښې
نښتې، او د «ارمغان خوشحال» په ترڅ کښې هم راغلې ده.

ارمغان خوشحال، د خوشحال خان په هغو بڼو منظومو آثارو
حاوي دی، چه تر اوسه لاس ته راغلي دي، او د بنا غلي رسا
په زیار راټول شوی او د دوی په مقدمه (د یونیورسټي بک ایجنسي
پېښور) له خوا په ۱۹٦٤ع کال کښې چاپ شوی دی. د خوشحال
د دې لوی کلیاتو د (۸۰۱) مخ نه تر (۹۷۲) پورې فضل نامه ده.

## ادبي او لغوي خوا :

د خوشحال خټک طب په پښتو مثنوي، په خفیف اته څپایز

بحرليکل شوی دی . د فضل نامې د ساله ټوله همداسې ده . ژبه يې ساده ، عام فهمه او روانه ده. تکليف ، تکلف او تصنع پکښې نشته . تر ډېر حده پورې خوشحال خټک خپله داخبره ترسره کړې ده چه د فضل نامې په مقدمه کښې وايي :

ساده نظم بې دقته بې اشکاله بې لغته
په خفيف بحر ويلي تکلف څنې وتلی
چه اسان په ياد ول وي مختصر بشکلی په کښل وي

* * *

څومره چه ماته معلومه ده په پښتو نظم او نثر، د طب په موضوع کښې دا لومړنی اثر دی چه د ليکلو فرصت يې خوشحال خټک ته ميسر شوی دی او ددې کار ابتکاري جنبه هم داده،

د دې رسالې په لغوي خوا کښې سرې همدومره ويلی شي چه يوازې د څېړنو د واکانو نومونه يې په هندي لغتونو راغلي دي . کېدی شي چه دغه لغتونه د خوشحال په زمانه کښې د هندي طبيبانو ترمنځ معمول وي ، مگر اوس څوک پرې نه پوهېږي . يا بنايي چه دغه نومونه دکاتبانو له خوا د يا کونو پس په وخت کښې غلط را نقل شوي وي او زمونږ تر وخته پورې له پوهېدونه وتلي وي . همدغه وجه ده چه دغه نسخه د لغاتو

د حل یوې لنډې لغتنامې ته اړه کیږي . دا کار مرحوم بلبل افغان په خپله قلمي نسخه کښې او پوهاند رښتین په چاپي نسخه کښې کړی دی .

د دې مقالې د لیکلو په وخت کښې د طبي کتابونو په رڼا کښې د دې کتاب ځینې ناآشنا او مشکل لغتونه چه د نارو غیو او دواګانو نومونه او یا طبي اصطلاحات دي حل شول ، څو چه د طب نامې د لوستونکو او د هغې د بل چاپ له پاره کار اسان شي .

دا لغتونه د دې مقالې په پای کښې وړاندې کیږي او اوس د موضوع بلې برخې ته اوړو :

## د کتاب مضمون :

دا نسخه یوه طبي نسخه ده . کله چه مونږ د (طب) کلمه په خوله اخلو نو مختلف طبي جریانونه زمونږ مخې ته دریږي او سوال پیدا کیږي چه د دغه کتاب د طب د علم په کوم جریان پورې اړه لري؟ د دې سوال د حل له پاره لازمه ده چه د طب د علم تاریخي جریان ته یو نظر واچوو . مګر د دې علم د ژور او پراخ دریاب تاریخ ټولو برخوته رسیدل او په هر ځای کښې دریدل او کتیدل مونږ د اوسنۍ موضوع نه د باندې وباسي ، نو ځکه د هغه نه تیریږو او د لته یوازې د هغې په یوه خاکه او یا تصویر کفایت کوو . مونږ دا نشو

ویلی چه «دطب علم» داول ځل له پاره چیرته؟ کله؟ بیا؟ او دکوم قوم له خوا مینځ ته راغی؟ که لږ ځیر شو وحتی دغــه پوښتنه علمي غلطي لري. ځکه چه هیڅ پوهه یو ځل په ناڅاپي ډول په مدون او مدرن شکل نه ده پیداشوې، بلکه دانسان د ورو- ورو تجربو نه لوې لوي خبرې پیدا شوې او ورو-ورو بنیادم دشکوکو، شبهاتو، سوالونو او مجهولاتو دتیارو نه دمسلسلو تجربو اوازمېښتونو دلارې نه دعلم اوپوهې او تمدن رڼا ته رسېدلی دی. دبشري علومو لوی دریابونه، دالهاماتو، تصادفاتو، تجربو او مکررو عملیاتو له ورو ورو څاڅکو نه جوړ شوی دی او دمختلفو اشخاصو او مختلفو قومونو د مختلفو تجربو دتالیف، تنظیم او تعدیل په ذریعه (چه داهم یوکار دی) دیو شخص یا یو قوم نوم سره شوی دی اویوه بشري پوهنه یادهغې یوه څانګه دکشف، اختراع او تأسیس په نامه یوسړي او یا یو قوم ته منسوب شوې ده. یاداچه دتاریخي حادثاتو په وجه مخکنۍ خبرې، اسناد او روایات له منځه تللی او دیوې پوهنې دیو نسبتاً منکشف حالت آثار لاس ته راغلي دي او دهماغې شکل دهماغې پوهنې دمبداء یا ابتداء ګڼلي شوې ده. په هرصورت خبره به نه اوږدوو، دطب دپوهنې په تالیف شوو معلومو تاریخي جریانو کښې دا مهم جریانونه دي:

## کلداني طب :

یو شمیر مؤرخین وایي چه «کلدانیانو» د مختلفو ناروغانو ترمنځ د ناروغیو مشابهتونه لټول او بیا یې کتل چه لومړنی ناروغ په څه وسیله جوړ شوی دی؟ بیا دوهم ناروغ له پاره یې هماغه وسیله په کار اچوله او د موثریت په صورت کې بیا دهماغه مرض او علاج جریان په تختو او الواحو لیکل کېده او دمندرونو په دېوالونو ځوړول کېده. په دې صورت د اولس د پرله پسې تجربو نه د راهبانو لاس ته ډېر مواد ورسېدل او د پرله پسې تطبیق او مقایسې نه د طب پوهنې اساس کېښودل شو او له پرمختګ سره یې راهبانو نه طبیبان جوړ شول .

د هغه وخت نورو متمدنو قومونو بیا د پوهنه له کلدانیانو نه زده کړه او له همدې امله ، د عرب ، مصر ، فنیقي ، اشورا او کلدي په طبابت کښې ډېر زیات ورته والی او یو راز والی شته .

## یوناني طب :

د یو رتني روایت له مخه کلداني ابتدائي طب یونان ته هم منتقل شو او هلته یې نه نظم ، پرمختګ ، پراختیا او انکشاف ومونده.

د ناروغیو تصنیف او د اعراضو له مخه د هغو تشخیص ، د دواګانو پېژندنه او د ناروغیو په معالجه کښې له هغو نه کار اخیستل

د انسان د وجود او د هغه د ارکانو، مزاجونو او اخلاطو له مخه د هغه مطالعه او نور داسې مسایل دي چه یوناني طب په پراخه پیمانه وربانديې کار کړی دی.

د یوناني طب پرنسیب د مزاج او اخلاطو او اعراضو له مخه د مرض د تشخیص او د دوا په ذریعه د هغه معالجه ده ... د دې طب د احکامو له مخه د وجود د اخلاطو د بې نظمۍ نه هم په مزاج کښې تغیر راځي او هم مرض پیدا کېږي ... د هغه نظم او اعتدال د دوا او معالجې په ذریعه بېرته لاس ته راځي. د یوناني طب اکثر دواګانې د نباتاتو، میوو، دانو، پاڼو، ګلونو او جرړو دي. د معدنیاتو او حیواني موادو نه هم په دوهمه درجه کښې کار اخلي. د هغه دواګانې په مفرد او مرکب دواړو استعمالوي.

## هندي طب:

هندي طب د طب یو بېل جریان دی چه له یوناني طب سره ورته والی او نژدې والی لري. کېدای شي چه په یوناني طب کښې د ختایي او کلداني مطالبو نه سربېره د هندي طب رېښې هم وي. داسې معلومېږي چه هندي طب هم په ابتداء کښې له مذهبي مؤسسو نه نشئت کړی دی او د مذهب د روحیې لاندې یې نشو نما موندلې ده. په هندي طب کښې د مرض اعراض ترکتني لاندې نیول کېږي او د جسمي علاج

نه سربېره روحي معالجه هم کېږي. ددې طب پر نسیب دادی چه روغتیا اصلي او ناروغتیا عارضي حالت دی. دوینې ناولتوب او داعصابو کمزورتیا د هر مرض اصلي علت دی.

نو ځکه دوینې صفاوالي او داعصابو آرامۍ او تقویې ته توجه کوي. د لته طب خپله معالجه د طبیعي جریان په لاره بیایي او یا ئې طبیعت د ناروغي ماشوم غوندې دلاساکوي او آراموي یې.

په دې صورت د دوا د استعمال په خوا کښې تلقین او پرهېز ډېر قیمت لري.

دې کښې شک نشته چه د تداوۍ دغه ارام طرز دهندي مذهبي آرام تمدن یو مظهر دی. مونږ ګورو چه هلته په مذهب کښې د ځان د خواهشاتو کمول، په سیاسي او اجتماعي مسایلو کښې منفي مقاومت، عدم تعاون او عدم تشدد مهم وسایل دي، نو په طب او معالجه کښې پرهېز او امساک هم د دغسې تمدن له روحیې سره موافقت لري.

## اسلامي تمدن:

په اوله درجه دیوناني طب او په دوهمه درجه دهندي طب آثارو له ترجمې او دعمل او مطالعې له تکرار او د تېرو دوارو جریاناتو او د ځایي او محلي او حتی شخصي تجربو له امتزاج نه په اسلامي دوره کښې د طب یو بل ګډ او مختلط جریان منځ ته

راځي چه تش په نامه (یوناني طب) بللی شي، چه په اصل کښې د اسلامي نړۍ د پښتو ملتونو د پوهانو له خوا تأسيس شوی دی. په اسلامي نړۍ کښې آفاقي علم او پوهنې پر نسبتي پرمختګ وکړ او د پخواني طب د ترجمې نه سربېره د هغه د انکشاف لپاره هم خدمت وشو. لوی لیکوال او مؤلفين پيدا شول او لوی لوی او د پر تالیفات یې ولیکل. د ابن سینا او محمد بن ذکریا غوندې علماوو په کښې کتابونه ولیکل. اصلاحات او انکشافات یې پکښې وکړل او دغې پوهنې ته یې هم د تألیفاتو په ساحه کښې او هم د تجربې او عمل په ساحه کښې زیات انکشاف ورکړ. نو ځکه مونږ باید دغه جریان ته اسلامي طب یا اسلامي یوناني طب ووایو.

مونږ اوس ګورو چه یوناني طب په یونان کښې څه چه په اروپا کښې هم نشته. مګر په اسلامي نړۍ کښې تر پرونه پورې په اوج او موج کښې و او نن هم لا د استفادې لاندې دی. دا د اسلامي نړۍ د لویو عالمانو او لیکوالو برکت دی چه د نړۍ د تاریخ د دغې مفیدې او ګټورې پوهنې لرغوني متون یې ساتلي او مفصل شروح یې پرې لیکلي دي. اوس یې چه وخت په تېرېدو دی د بشر د علومو د تاریخ په دنیا کښې د اسلامي علماوو او طبیبانو د زیار او زحمت نتایج بل راز علمي او تاریخي ارزښت پیدا کوي.

**روحاني طب:** مونږ ګورو چه د کلداني طب لومړنی

نسخې د منډروټو په دیوالو حکول شوي دي او د بتخانو راهبان د تاریخ لومړني طبیبان وو .

مونږ ګورو چه هندي طب مذهبي ریښه لري . د جسمي تداوي په څوا کښې روحي تلقین ضروري بولي او ځینو ناروغانو ته د « او ښیشد » د لوستلو توصیه هم کوي .

مونږ ګورو چه په اسلامي دوره کښې د طب د تدریس او تالیف په مسجدونو او مدرسو کښې شوی دی او اکثر طبیبان داسې دي چه د دیني علومو عالمان هم دي . مونږ ګورو چه د اسلام پیغمبر (ص) وایي :

« د هر مرض له پاره دوا شته ، کله چه دوا ورسیږي ، مرض جوړیږي . د خدای په حکم »

مونږ ګورو چه د ناروغیو په معالجه کښې دم او دعا ، تویتکو او څا سنتونو هم ځای نیولی دی .

مونږ ګورو چه د عصبي ، عقلي او روحي ناروغیو مهمه مرجع روحاني کدر دی ، چه د تعویذ ، طومار ، طلسم او جادو په اشکالو سیوري د پریوتلو ، پېریانو او د پیانو د کښیناستلو او یا خولو ، د طلسم د ماتولو او د جادو د ایستلو او ردولو په عملیاتو روحي ناروغه او د هغې معالجې ځانله طریقې لري . د لویانو او بزرګانو په زیارتونو کښې د باد ، میرګي ، پېریانو او لېونتوب علاج کېږي .

د بابا ګانو زیارتونو ته بادګین کسان په خرو او آسونو راځي او په خپلو پښتو بېرته ځي. همدا اوس په جلال آباد کښې دوکي بابا د سرو لري اوده لري، څوک دغه په زیارت تېه تړي او څوک یې خوانه «د ملاریا د مجادلې مؤسسې» ته ځي.

همدا اوس په ثمرخېلو کښې میاعلي صاحب دلېونیانو مرجع ده او د میاعلي صاحب لمسي «میاګان» د لېونیانو پېریان یا څوي.

دا طب د تاریخ له ډېرو لرغونو زمانو نه تراوسه پورې په مختلفو شکلونو جریان لري.

## اولسي طب یا کورني طب:

دا اولسونو د تجربو په شفاهي روایاتو کښې یو لړ طبي فرمایشونه هم شته، چه هغه کله کله د طب کومې تجربه شوي علمي جریان نه اخیستل شوي وي. مثلاً په پښتو کښې د پوهنکي اچول ډېر زیات رواج لري ا ... د ... تاروغیو له پاره علاج ګڼل کېږي، چه زه یې په مبداء نه پوهېږم. دسونډ، سپیرکه ..... استعمال ډېر رواج لري او له یوناني طب نه اخیستل شوي. زمونږ د خلکو او ډاکترانو دې پروانې نه اوس تر ډېرې چه د پنسلینو د خطرناکې دوا استعمال فولکلوري عمومي حیثیت پیدا کړي. د طب د غه دایمي جریان ته فولکلوري

طب هم ویلی شي او د نورو لګو د نورو مظاهرو غوندې د آب وهوا او اقلیمي شرایطو له مخې په مختلفو ملتونو کښې بیل بیل مظاهر او شکلونه لري.

## نوی طب:

دعصري علومو: کیمیا، فزیک او بیالوژي د ژبیات انکشاف په مرسته او د تجربې په اساس نوی طب منځ ته راغلی دی. او س هم د تغییر او انکشاف په حال کښې. د وجود د عناصرو د کموالي او زیاتوالي او د میکروب، باکتریا او ویروس وجود د امراضو سبب ګڼل او علاج یې د میکروب، باکتریا او ویروس له منځه وړل او د هورمونونو، ویتامینونو، معدني مالګو او نورو موادو په واسطه د وجود تقویه کول او د هغه تعادل ساتل د دې طب اساس دی. په تشخیص کښې د برقي او کیمیاوي وسایلو او په معالجه کښې له ستنې وهلو نه هم کار اخلي. د علومو د توسعې او د بشري پوهنې د انکشاف او د نویو اختراعاتو او انکشافاتو په برکت دې پوهنې زیاته پراختیا موندلې ده او مختلف شعبې او بیلې بیلې څانګې یې پیدا کړې دي. چه د وه مهمې څانګې یې وقایوی اجتماعي او معالجوي څانګې دي. د علم په تاریخي جریان کښې دا د پخوانو پوهنو یو متکامل او مترقي شکل دی چې په اصولو او جزئیاتو کښې اکثر له پخواني طب سره مخالف او کلکه موافقه لري.

مګر په هرصورت معاصر پرمختللی سائینس په مستقل طور خپل پرمختګ ته دوام ورکوي او د زاړه تمدن په کنډوالو باندې نوې پاخه تعمیرونه جوړوي ، د طب او بیالوژۍ د پراخو علمي پرمختګونو په نتیجه کښې که له یوې خوا نه غذا او تغذیه د طب په خوا کښې ځانته خپل خاص اهمیت پیدا کړی دی ، له بلې خوا نه یې « د غذائیه ذریعه معالجه » هم ځانله نظریه ګرځېدلې ده .

اوس کوښښ کېږي چه داجتماعي طب داساساتو له مخه د ناروغیو عمومي عوامل چه نور و اجتماعي شرایطو پورې هم ارتباط نیسي ، له منځه یوړل شي ، ځو چه د ناروغتیا بیخ ورځي او د روغتیا ګلان وغوړېږي . بیا د غذاء او حفظ الصحی له مخه د وجود د توازن ساتلو توصیه او تبلیغات کېږي او داخبرې په مدنې ژوند کښې ځائېږي . بیا هم که څوک ناروغه شو د هغه د غذاء او محیط او شرایطو په اړولوېې علاج کېږي او په ډېره مجبوریه کښې له دوا نه کار اخیستل کېږي .

د اجتماعي طب اوسنی مترقي علمي جریان په دغه لار روان دی او غواړي چه د هغه طب بازار سوړ کړي چه د ډاکتر د فیس او د دوا جوړوونکو د تقلبونو په وجه د ناروغیو له انکشاف سره مرسته شوې ده او د خلکو په ژوند سوداګري جوړه شوې ده .

له دې لنډو خبرو نه وروسته:
اوس به موږ وګورو چه خوشحال د کومې زمانې سړی دی او د ده د طب رساله د طب په کوم علمي جريان پورې اړه لري؟

خوشحال د مغلو د سلطنت د دورې سړی دی. تاريخ شاهد دی چه د مغلو تهاجم د يو لوی خونړي سيلاب غونډې و چه په ابتداء کښې يې په ډېر زور شور د اسلامي تمدن په شهکارونو خاورې خړې وارولې او د دغه ځلاند فرهنګ بلې ډيوې يې مړې کړې. مګر کله چه د غه سيلاب هند ته رسېده هلته يې شور او شدت کم شوی و او کله خو نګه چه سيلاب په آخره کښې خوړيږي د غه تهاجم هم د هند په لويه پلنه خاوره کښې خور شو. په دې وخت کښې د هند په لويه قاره کښې اسلامي تمدن له هندي تمدن سره د مزج او نضج په حالت کښې و. مغلو په دغه ودانه او رشو کښې لويه امپراتوري جوړه کړه او د وطن له خوړلو سره يې د موجوده تمدن د انکشاف په لاره کښې هم برخه واخيستله او هغه ته يې نوی رنګ، ځلا او پالش ورکړ. د نورو علومو په ترڅ کښې د يوناني - اسلامي طب علم هم د هندي طب د ځينو تاثيراتو له منلو سره مخ په وړ

روان شو. د مغلو دربارونه له طبيبانو او حکيمانو نه ډک وو او هر ښار او محل کښې به يو يا څو تنو طبيبانو د رنځورانو علاج کاوه. ديوناني - اسلامي طب عربي نسخې د مغلو د دربار په رسمي ژبه او د هند په ځينو ملي او محلي ژبو ترجمه شوې. په دې دوره کښې د اردو ژبې د جوړېدنې او خدمت کار هم شروع کېږي او ځينې طبي آثار هم په کښې ليکل کېږي. له ترجمو نه سربېره په فارسي، اردو او هندي ژبو زيات مستقل طبي کتابونه هم ليکل کېږي.

د خوشحال خټک طب هم د دغه جريان پيدا وار دی. په دې برخه کښې خوشحال دومره پښتو کړې ده چه خپل دغه علمي اثر يې پخپله ملي ژبه پښتو کښې ليکلی دی او د خپل شاعرانه طبيعت له مخې يې په نظم کړی دی. د محتوياتو د تاريخي موقف له مخې ديوناني - اسلامي طب د هندي پړمختګ د دورې يوه نمونه ده.

اوس به وګورو چه دغه اثر د دغه علمي جريان (يوناني اسلامي طب) د نورو آثارو په ترڅ کښې څه نوعيت لري؟

څرنګه چه کتل کېږي ديوناني - اسلامي طب ترجمه شوي او تاليف شوي کتابونه تر څلورو کټګوريو لاندې راځي:

۱- هغه ډول کتابونه چه د ناروغیو تشخیص پکښې کېږي او علاج یې هم ښودل کېږي. په دې آثاروکښې د سر د ناروغیو نه شروع کېږي او دېښو او پو ستکي په ناروغیو ختمېږي. د کتاب په هر باب د بنیادم د یوې عضوې او بیا د هغه باب په هر فصل کښې د هغې عضوې د مختلفو ناروغیو په باب گړېږي، د ناروغۍ نوم، د هغې اثرات، اعراض او علامات او مزاج او نور ښیي، بیا دارو او صحي تدابیر ښیي، د غذا رژیم، پرهېز او نورې توصیې کوي. که څه هم په مفردو دواگانو خلاصېږي نه او که مرکبو دواگانو ته ضرورت پېښېږي بیا یوازې د مرکبې دوا نوم اخلي او د هغې د استعمالولو طریقه ښیي. مثلاً وایي دورځې د غومره (معجون فلاسفه) یا د غومره (شربت نیلوفر) دې وخوړل شي یا... مگر د غه معجون او شربت د جوړولو چل نه ښیي. لکه طب اکبر، میزان الطب، طب یوسفي، دستور العلاج....

۲- هغه ډول کتابونه دي چه د مفردو دواگانو، بوټو او د هغو د میوو، دانو، گلونو، بېخونو، پاڼو او د ځناورو، د حیواناتو او د هغو د اعضاوو او اجزاوو او د معدنیاتو یو فرهنگ وي چه هم یې په څو ژبو کښې نوم، هم یې خواص، رنگ، شکل او نور ښیي، لکه: مخزن الادویه، تحفة المؤمنین او نور.

۳- هغه کتابونه دي چه دمرکبو دواګانو دجوړولو ترتیب
ښیي . دې نوعې ته ( قرابادین ) وایي . ددې نوعې فصلونه او
بابونه اغلبًا داولې نوعې هغو ډې د سرډنارغیونه شروع کیږي
او د پښتو او دیو ستکي په نارغیو ختمیږي . په دې کښې د
ناروغه نوم اخلي او بس . بیا مرکبه دوا معرفي کوي ، بیا د
مرکبې دوا نسخه او د هغې دجوړولو ترتیب ښیي .
ځینې قرابادینونه بیا د مرکبو دواګانو د انواعوله مخه
ترتیبیږي او د هغو فصلونه او بابونه دمرکبو دواګانو د
انواعو : معجونونو ، شربتونو ، ګنولیو ، کُشتې ، جلا بونو ،
ملهمونو ..... په اساس جوړیږي .
دقرابادینونو په لړکښې وګورئ : د ابن سینا القانون
پنځم توک ، قرابادین کبیر ، قرابادین قادري او نور ....
٤- د طب ځینې رسالې داسې وې چه یوازې په یوه خاصه
موضوع کښې لیکل کیږي ، لکه : د نبض رساله ، د قاروري رساله
د بحران رساله او نورې .
مونږ چه دیوناني طب هرکتاب په لاس واخلو او یا یې
وایوو ، یا نهرست یې وګورو ، نوګورو چه هغه کتاب د
پورتنیو څلورو کتګوریو نه په یوې کتګورۍ پورې
ارتباط لري . او یا دا چه د دغه موضوعات ټول او یا دوه -

درې یې پکښې وي ، مګر یو نظم او ترتیب لري او هره موضوع دبلې نه او یا دکتاب د ټوکونو او مجلدونو په ذریعه او یا د فصلونو او بابونو په ذریعه بېله شوې وي، لکه دابن سینا القانون ، موجز او ځینې نور....

مګر راځو چه د خوشحال خټک منظوم طب وګورو:

دا د هلیلې اوصافو او اصنافو نه شروع کېږي چه له یوې خوانه دطبي فرهنګ کار ورکوي او له بلې خوانه د فولکوري طب د روایاتو تاثیر پکښې ښکاري .

ورپسې بیا دسترګو د مرکبو دارو ګانو اووه نسخې دي ورپسې دیرقان د علاج نسخه بیا د پیشګنده دانو اوټوخې ترکیبي نسخې دي او همدارنګه تر آخره پورې کتاب د قرابادین دکتګورۍ یو خاص شکل دی چه ادبي فورم یې په نظم دی ، مګر دطبي آثارو په مقایسه نظم او ترتیب پکښې نه لیدل کېږي .

په دې کتاب کښې دقوب باه نسخې ، له ښځو سره دجنسي روابطو، مباشرت او معاشرت طبي او اخلاقي مسایل او په ځینو برخوکښې شخصي ذوقي خبرې هم شته .

په هرصورت داکتاب دطب د نورو کتابونو غوندې په یو ترتیب او سیستم روان نه دی ، بلکه د مؤلف د متفرقو

یادداشتونو د یوې شخصي مجموعې حیثیت لري. البته اکثرې نسخې یې د یونانی طب د نورو کتابونو له نسخو سره موافقت او مشابهت لري . مګر د هرې نسخې د لیکلو ترتیب بیا د طب د نورو کتابونو د تدوینولو او ترتیبولو په متعارفو او مصطلحو اصولو بنا نه دی . همدارنګه په ټولو امراضو او د نسخو د مختلفو نوعیتونو په ټولو برخو احتوا نه لري نو په دې صورت که سړی هرڅومره زوروهي د دیو شخصي یادداشت نه یې پرته بل څه ګڼلی نه شي . دا خبره بل سبب او دلیل هم لري او هغه دا چه : د خوشحال خان په سوانحو کښې هیچرته نه دي راغلي چه ده دې کله د طب تحصیل کړی وي او کوم مسجد یا مدرسه یا مطب کښې د کوم طبیب سره د طب د نظري او عملي زده کړې له پاره یا تنه شوی وي. دده ژوند ښیي چه دی د ځوانۍ په فعاله دوره کښې د مغلو د سلطنتي دربار پورې سړی و چه طبعًا هلته یې د لویو سلطنتي طبیبانو او حکیمانو سره تماس، معرفت او آشنایي پیدا شوې ده .

له بلې خوا نه د خانانو او معتبرو خوانۍ په مستۍ کښې د ځینې پخیله د جنسي مسایلو شوقي هم و. نو په دا سې شرایطو کښې هیڅ شک نشته چه د سلطنتي درباري حکیمانو نه یې د قوت باه

د یې مجربې نسخې نه وي اخیستې. بیا څرنګه چه انسان روغ رنځور لري، نو د نورو ناروغیو نسخې یې هم اخیستې وي، چه دغه نارو غه اکثر[؟] له جنسي مسایلو سره ارتباط لري.

بیا کېدی شي چه دغه نسخې چه د ه تجربه کړي اوښې لګېدلي دي، په مناسب وخت کښې منظومې کړې وي. په دغه وخت کښې د طب د مطالعې او زده کړې فرصت یې درلود، مګر په دې باره کښې کوم مثبت یا منفي تحریري سند له مونږ سره نشته. کله چه دی بوډا شو، نو خو هم «خان» و، مونږ پوهېږو چه په هغه وخت کښې (په لږ تغییر او س هم) طب او طبیبان له خوانانو نه زیات د خانانو په خدمت کښې وو او دې نوده ته هر وخت د طبیبانو او حکیمانو صحبت میسر و.

په دې لړکښې کېدی شي چه د طب ځینې کتابونه یې د خپل شوق له مخه په خپل سر مطالعه کړي هم وي، لکه چه پخپله وايي:

دحکمت له کتابونو
داو تلي له بابونو
* * *
مادطب په کتابونه
نظر کړی په بابونه

د «راوتلی» او «نظر کړی» له عبارتونه څرګند یږي چه چه د ده خپله مطالعه چه هر څو مره وه هغه به وي، مګر دا

اثر یې یو منظم اقتباس یا ترجمه نه بلکه یوځای او بل ځای نه استفاده، اخیستنه او استخراج دی، نو ځکه د تنظیم خیال یکښې نه دی سائل شوی. د دې عمومي مأخذ ښودلو نه سربېره په یو ځای کښې وايي:

ما یو نقل دی لید لی
په شفا علیل کښې سکولی

«شفاعلیل» یا «شفاء العلیل» د طب یو کتاب دی.

## د لغاتو حل:

لکه چه مخکښې اشاره شوې ده د ځینو غیر مشهورو دواګانو او ناروغیو نومونه او طبي اصطلاحات د لته حل شوي دي.

د دې کار ترتیب دا دی:

ټول لغتونه د الفباء په ترتیب راغلي دي.

د هر لغت نه د مخه تاسې په لیندو ( ) کښې یو عدد وینئ، هغه د ښتو ټولنې د چاپي طب نامې د هغه مخ لمبر دی چه دغه لغت هلته راغلی دی.

بیا د هر لغت معنا په بله ژبه لیکل شوې ده او د هغې ژبې مخفف توری ورپسې په لیندیو کښې لیکل شوی دی.

کله د لغت تشریح او معرفي هم شوې ده او ورپسې د مأخذونو مخفف لیکل شوی دی.

کوم لغتو نه چه نه دي حل شوي او حل غواړي د هغو په مقابل کښې لیکل شوي دی : (؟)

دا باید وویل شي چه د لغاتو د د واکانو د خو اصو ښودنه د هغو طبي قاموسونو له مخه شوې ده چه هغه د خوشحال د زمانې یا هغه ته نژدې زمانې پورې اړه لري. په دې باره کښې ته پخپله څه خاصه نظریه نه لرم، او قطعي حکم نه کوم چه پلانکی بوټی د پلانکي مرض دوا ده .

ددې لغاتو د ژبواو مأخذونو مخففات په دې ډول دي :

| | |
|---|---|
| پ | پښتو |
| ف | فارسي |
| ع | عربي |
| هـ | هندی |
| مع | معرب |
| م | مخـــزن الادویه |
| ت | تحفة المؤمنین |
| ظ | ظفر اللغـات |
| پق | پښتو قـا موس |
| طق | طبي قـا مـوس |

دط دطب نامي دلغاتو معنا «د چاپي طب نامي ....»
مط میزان الطب
ب بختانی

(۲۷) ـ آماس (ف) پړسوب (پ)
(۵-۲٤) ـ آمله (ف، پ) آملج (مع) دیوې هندي ونې میوه ده چه خوندېې تریو دی او د الوچو اوغوزانو په اندازه وي، دماغ او معدې مقوي ده او په ډېرو دواګانو کښې لوېږي (م ـ ت)
(۱۲) ـ ادرک (ع) ـ زنجبیل (ع) ـ سونډ (پ) سونټه (ه)
(۱۰) استسقاء (ع) یوه ناروغي ده چه د ناروغ وجود پرسېږي او ډېرې اوبه څښي (ب)
(۱۷) ـ اشخار ـ اشقار ـ شخار. هغه خیزدی چه د زمي نومي بوټي نه حاصلېږي او د جامو پیو ینځلو کښې یکارېږي د صابون په اجزاوو کښې هم شاملېږي (ظ ـ ب)
(٤-۱۸-۲٤) اطریفل (مع) تریپهول (ه) یعنې درې میوې. مطلب هغه مرکبه دواده چه هلیله، امله او بلیله ورکښې وي (ب)
(۱٦) ـ انباله بید (؟)
(۲۲) ـ انګبین (ف) شهد (ف) ګبینه (پ) شات (پ) عسل (ع)

(۱۷)-انگزه ، انګیزه : یو بوټی دی چه دګیلان په غرونو کښی
شین کېږي (م - ت) انګیزه - انګوزه - هنجه
هنګ (د ط)

(۱۷) - اوسپنخړی (پ) - خبث الحدید (ع)

(۲) - باېرېنګ (هـ) برنګر (ف) - برنق برنج (مع) ، دتورو مرچو
وړي ترخې دانې دي ، مغزې سپین ، لږ ترېخ
دی او توند بوی لري ، دګېډې د چینجو له پاره
استعمالېږي . (م)

(۱۶) - بجه (؟)

(۲۶) - برسام - ذات الجنب (ع) یوه ناروغي ده چه د سینې په پردو
کښې پېرسوب ، درد او برېښن پیداکېږي (ب)

(۲۸) - بصل (ع) - پیاز (پ - ف) ما د سپین بصل - د سپینو پیازو اوبه (پ)

(۵) - بلیله (ف - پ - هـ) بلیلج (مع) د هندي وني مېوه ده ، زېړ پخې
رنګ لري ، ذګیډې ، اعصابو او نورو ناغیو له پاره
بکارېږي . (م)

(۳-۲۲-۲۴) - بکره لـ - بهنکره (هـ) یو هندي بوټی دی چه یوکرجکېږي
پاڼې يې دانارتیا نو لږ ي لوي دي او خوند يې
ترېخ پخن دی . نوږ سپین او زېړ رنګ لري
د سترګو او د باه د قوت او دګیډې د درد او قولنج
او نورو ناخوښو له پاره استعمالېږي (م)

(٢٤) - پاپره (هـ) - شاهتره (ف) - شاهترج (مع) - بقلة الملک (ع)
مشهور تریخ بوټی دی (م - ظ)

(١٩) - پاتسه - سوبنه (د ظ)

(٢) - پادهی بیج (؟)

پاړ بنج - دیوټ و نی نوم دی - شاه بلوط (ظ)

بیج - (١) دخټکو - هندوانو زړي (٢) هغه لوی مضبوط لرګی
چه د اوبو د بار په تړلو کښې بکار یږي . (ظ)

په دوهم صورت کښې کیدی شي چه (پا ړهی) دغرني په معنا
او (بیج) دبلوط په معنا وي چه لرګی یې کلک دی . (ب)

بیج ، وج - عود الوج (ع) - ببجهـ (هـ) سوس زرد (ف)
اقوریون (یوناني) یو بوټی دی چه په اوبو کښې زرغونیږي پاڼې
یې د نرګس د پاڼو غوندې اوږدې اوپلنې دي ، ګل یې د زنبق غوندي
دی . بیخ یې په دوا کانو کښې لویږي . دسترګو ګل اودقرینې
کلکوالي ته فایده کوي او دسترګو دید زیاتوي (م) دلته هم که
(پا ړهی) دغرني په معناوي خبره جوړیږي (ب)

(٢٤) - پرمی = آتشک - بادفونګ - جریان مني (بلبل افغان)

(١٤) - پکهر مولو ... (؟)

(٨) پیشک - پشک = سپوږمی . دیرص یو نوعه ناروغي ده (ظ)

(٣) - تپل د (ت) او (پ) په زور ، دچیچک داغ (ظ)

(۲۰) - تبح (هـ) - قرفه (ع) د دارچینی د ونې دیوې نوعې پوټکی دی چه په سیلون کښې پیداکیږي . (م)

(۳۸) - ترسیري: هغه کرښې او داغونه چه د مرض له کبله په بدن او مخ پیداشي (ط)

(۷) - توتیا: یوه معدني ماده ده، په مصنوعي توګه هم جوړیږي سپینه، زیړه او شنه وي. شنې ته یې (شنه توتیا) او (نیله توتیا) هم وایي، دسترګو په دواګانو کښې استعمالیږي (م - ت)

(۲۵) - جدوار (مع) زدوار نربسی (هـ) - انتله (ع)، د وجود د زهر و پاکوونکي په معنا - دیو بوټي بیخ دی، چه د تبت، نیپال، دکن، او رنګ پور او همدارنګه دافغانستان په غرو کښې پیدا کیږي - مقوي او د زهرو دافع دی (م)

(۲۷) - جمال کوټه (پ) حب الملوک، حب السلاطین (ع) د یو بوټي زړی دی چه غوړ لري او قوي مسهل دی. (ب)

(۱۱) - جواین - جواني - سپیرکه (ظ)

اجواین (هـ) نانخواه (ف) د انیسون په شان یې تخم دی، تریخ او تند بوی او خوند لري (م، ت)

(۱۹) - چرایته - چرایتا (هـ) - جارایته (مع) - قصب الذریره (ع)

یو بوټی دی چه وړې وړې پاڼې او واړه واړه سوګلونه لري. په هند، بنګال، ایران او افغانستان کښې دپسرلي په وخت کښې د ویالو په غاړو او یولو په خیله زرغونیږي. د زړه او ځیګر د تقویې او سره لیږي د لرې کولو له پاره ګټور دی (م - ب)

(۳۸) - چندن (پ - هـ) - سندل (ف) - صندل (ع): یوې ونې ته وایي
چه خاشکي یې څمکې ته کوزیږي او پاڼې یې دغوزانو غوندې
دي. سپین، زیړ او سور رنګ لري. لرګي یې د زړه د تقویې لپاره
او د تبو او نورو ناروغیو په دوا ګانو کښې پکاریږي (م - ت - طق)

(۲٤) - چوب ناز (؟)
(۱۵) - چمجوټی - د چنجي تصغیر (ب)
څوڅوټی.
څمڅکی - کرم سیاه درآب (پق)
(۲۳) - چوکرکور (؟)
(۱۷) چوکهار.
چوکهار (هـ) داور بشې نشایسته. (ت)
(۲) چیتره
چیترک (هـ) شیطرج (مع) یو وحشي بوټی دی چه په کندوالو
کښې او په هدیرو کښې زرغونیږي - دا خلاطو مسهل او د بلغم دافع دی.
پیسی، جرب او نورو ناروغیو ته مفید دی. په دارو ګانو یې بیخ لویږي (م - ت)

(۲۲) چینی ګل.
دا لغت په چاپي نسخو کښې (د ښنی ګل) لیکل شوی دی. کیدی شي
چه مطلب د جوار و ښنی یا ګل وي، چه د پښتورګو او د مثانې د
کانړو له پاره ډیره ښه مؤثره دوا ده (ب)
(۱۱) - نه څرول:
څر - د کیډې د باد آواز چه د اسهال او جریان په وخت کښې خارجیږي.
څرهار - د کیډې د اسهال او جریان په وخت کښې د کیډې د باد پرله پسې
آواز.
څریدل - د کیډې جاري کیدل، د باد سره (پق)
(۹) - څاوټی - نیم سری درد - نوبتي تبه. (پق - ب)
(۲۸) حجامت (ع) د ښکر لګولو په واسطه د معالجې په نیت وینه ایستل (ب)
(۳۳) - حجر الیهود (ع) - یوه معدني ډبره ده چه زیړ، تور او سپین رنګ
لري او توري کرښې او دا غونه ورباندې وي - د پښتورګو او مثانې
تیږې غورځوي (طق)

(۲۶) - حصبه (ع) - سرې ورې دانې دی چه د بدن په اندازه وي
کله چه دا په سرې وخېژي تبه هم ورسره وي . (مط)
(۳۰)- حنظل (ع) - مېنه غونه (پ ؟) - زهر زنګی (ف ؟)
(۱۱)- خسا وژه - ديو بوټي بېخ دی - (د - ط)
په عربي کښې يې زنجبيل العجم بولي . ديو بوټي بېخ دی چه د
لوخې په شان پېدا نه و نواو ولاړو . او بو کښې زرغونېږي او کېږي (ببل افغان)
سخا ورېه (ظ)

(۲۳) - خفته با د (؟)
(۳۶) خناق (ع) د مرۍ د التهاب په وجه آواز او تنفس بندېږي . اکثر
ماشو مـــانو ته پېښېږي او د چرګ د آواز غوندې د سټوني نه غږ
خېژي . په فارسي کښې يې (خراسک) بولي (ب)
(۱٤) - خولنجان : د يان دونې بېخ تروالي ، چه معده قوي کوي او د
قولنج او عرق النساء د ناروغۍ او د ښنتورګو او مثانې د
سوړ والي له پاره ښکارېږي او د ګېډې باد دفع کوي . (طق)
(۵-۱۲-۱۳) دارچيني (ف) - دارصيني (مع) : ديوې ونې د ډډ پوټکی
دی چه په سيلون او دکن کښې کېږي . په مقوياتو ، مفرحاتو او غذا
کښې استعمالېږي . د زخم و ينه دروي او رغوي يې (م - طق)
روهو - رهو (هـ) يو ډول کب دی چه سقنقور يې هم بولي (ب)

(۲٤) - زرچوب - زرد چوبه (ف) کورکمن (پ ؟) .

(۱۱) زنجبيل (ع) ديو بوټي بېخ دی چه تازه يې (ادرک) او وچ يې سوځ
بللی شي . د معدې ، ځيګر او نورو اعضاو مقوي دی . په غذا
کښې هم اچول کېږي . (م ، ب)
(۱٦) سحاق : د الغت په قلمي نسخه کښې (سحاق) راغلی ، چه په معنا
يې نه پوهېږم . د فضل نامې په چاپي نسخه کښې (سهاق) دی .
سماق : يو بوټی دی چې آنار غوندې دی او دانې يې تروې او د نسکو
په اندازه ورې دی . قابض دی ، وينه صافوي ، اشتهاء ښه کوي
او کانګی دروي (ت - م)

(۲۶)ـ سرسام: یوه ناروغي ده چه د سریا د مغزو په پردو کښې پړسوب پیدا کیږي (مط)

(۳۶) ـ سنپات (هـ) سرسام (هندي ـ اردو لغت)

(۳۹) ـ سوره (پ) سوها، سووی (هـ) ـ شوت، شود (ف) شبت (ع ـ)

یو نوع ساګه دي چه په دوا ګانو کښې هم استعمالیږي. د معدې او ځیګر د کمزورۍ او د پښتورګو او مثانو د تیږو او ... له پاره مفید دی (م) د دې کلمو او د (ساګه) د کلمې ترمنځ د ربښې ارتباط له ورایه ښکاري. (ب)

(۲۳) ـ سوهاګه (؟)

(۱۰) ـ سیاره = سالنډی، ضیق النفس (پق ـ ظ)

(۲۶) ـ صماخ (ع): د غوږ سوری (پ)

(۱۳) ـ عاقرقره، عاقرقرحا (مع ـ یا ـ نبطی) اکرکره (هـ): یو بوټی دی چه په هند کښې ډېر پیدا کیږي. مقوي او مفیده دوا ده. د ډېرو ناروغیو په درملو کښې لګیږي (م)

(۲۷) ـ غثیان ـ هغه حالت ته وایي چه د کانګې کولو باعث ګرځي (مط)

(۲ ـ ۵) غنیه (؟)

دا لغت د قلمي نسخې په (او له پاڼه ب) کښې (غنهی) او په (دوهمه پاڼه الف) کښې (غنه) راغلی دی.

د پښتو ټولنې په چاپي طب نامه کښې او د ارمغان خوشحال په طب نامه کښې د واړه ځایه (غنیه) ده. نه یې په معنا نه پوهېږم مګر اول ځای ته د مرحوم بلبل افغان په لیک په حاشیه کښې په پنسل لیکل شوي دی: (فلفل دراز .... انشاءالله تعالی محمد عمر) او د پښتو ټولنې د چاپي نسخې په لغاتو کښې یو لغت په لاندې ډول ترجمه شوی دی:

(۷۳) ـ غنی ـ دا یو یو قسم بوټی دی چه په دوا کښې بکاریږی) نه پېژنم په دې د واړو ترجمو قناعت نه لرم او دا شم ویلی چه د متن د واړه لغتونه به یو لغت وي که دوه؟ (ب)

(۳۸) فالج (ع) دګوزڼ وهلو ناروغۍ ته وايي چه په اوږ و ، د بدن
نيمايي پې حسه او بې حرکته کيږي (مطب)
(٦١) - فراشتک (          ) فراستوک، فرستک، فرستو، پرستوک (ف)
خطاف، ابابيل (ع) - توتکی، توتکۍ (پ) . مشهوره مرغۍ
ده چه اجزا يې د سترګو په دوا کانو کښې لوېږي. زيړي، ديښتوګو
تيږې او نورو ناروغيو ته هم ګټه لري. (م)
(۳٦) فصل (ع) - د رګ نه د معالجې په نيت وينه ايستل (ب)
(١٤) - فلاسفه : مطلب هغه ترکيبي دوا ده چه (معجون فلاسفه)
يې بولي او د باه د قوت او د وجود د تقويې له پاره خوړل کيږي (ب)
(٢-٥-١١-١٤) - فلفل (ع) مرچ (پ - ف)
فلفل ګرد، فلفل سياه = تور مرچ
فلفل دراز = اوږده مـرچ
فلفلين - ګرد او اوږده مرچ (ب)
(١٤) - قرنقل : (مع) - لونګ (پ - هـ) ميخک (ف)
(٢٦) - قيفال - د يو رګ نوم دی چې څينو ناروغيو کښې وينه ترې ايستل کيږي (ب)
(٨) - کامبيله، کمبيله (هـ) قنبيل، قنبيل (مع) کامبيله (مفغن)
(۳۲) کبابه (ع) د تورو مرچو په اندازه سبويه داني دي. په چين کښې ديوې
ونې نه لاس ته راځي او دوه قسمه دي: غټې داني چه (حب العروس)
هم ورته وايي او وړې داني چه (افلنجه) يې هم بولي. چه مطلق
ذکر شي مطلب غټې وي. (م - طق)
(١١-٢٤) کته - کت يوه مصنوعي دواده چه د ستوني د درد او لويدو له پاره کاريږي
په فولکلوري کورني طب کښې زيات شهرت لري (ب)
(٤٠) - کلاب د کلب جمع ده .
کلب (ع) - سپی (پ)
(١٤) کمل - يو هندي ګل دی، په هندي ژبه کښې مطلقاً ګل ته هم وايي .
(١٣) کندر وخو - (؟)

(کند) دیو بحري بوټي کنډ دی. چه دتقویې او نورو د پرودواګانو
کښې لوبږي.
(م) کُند روس = کندرو (م)
(۱۸) کهیل :
په چاپي نسخو کښې (کهیل) راغلی دی.
کهیلا او - کیلا (هـ) ته سلیخه (ع) وایي.
دا یو بوټی دی چه پاڼې او پوستکی یې د ګیډې د ناروغیو په
دواګانو کښې پکاریږي. (م)
(۲٤) کِلوی (هـ) د کاف په زیر، د لام په پیښ اود واو او یا په سکون
(کرج) یې هم بولي. یوډې مېوی بوټی دی چه په خپل ګاونډې
تاوېږي. لرګی یې تریخ دی. د توخي، زیړي، کانګې، تبې
او نورو ناروغیو او د وجود د تقویې له پاره پکاریږي (م)
(۲۲-۳۸) - لقوه - د مخ کږېدو ناروغۍ ته وایي. (مط)
(۲۸) ماء (ع) - اوبه (پ)
(٤) ما، میره، ما میران، مامیرا : یو بوټی دی، چه د سترګو په دواګانو
او نورو استعمالیږي (م)
(۳۷) - مبهي (ع) - د باه د قوت زیاتوونکی (د اسم فاعل شکل)
(۳۸) - محرور (ع) ګرم مزاجه (د اسم مفعول شکل د مشبه صفت په رول کښې)
(۲۸) - مرزنجوش (مع) - مرزنګوش (ف) - سرمق - عنقر (ع)، د کشمالو
په شان یو بوټی دی (م)
(۱۵-۲۱) مروندیه (پ) یو بوټی دی چه د یبو په غاړو کښې کرلی شي چه
یولی د سیلاب نه بچ کړي (ظ)
(۲۵) - مروه (نبطی) - کنوچه (ف)
(۲۰) - مسبر - صبر (ع) د صاد په زیر - ایلیا (هـ) - مصبر (ددې کلمې بنګالي شکل)
د یوې ونې کنډ دی چه هغې ونې ته سبارا (ع) او ګهیکوار (هـ) وایي.
قوي مسهل دی (م). (په نورو چاپي نسخو کښې او د پښتو ټولنې په قلمي
نسخه کښې (مصبر) او د پښتو ټولنې په چاپي طب نامه کښې (مُسبر)
لیکل شوی دی)

(۲۵)ـ مستکی (مفغن) مصطکی، مصطکا (مع) دیوې ونې کنډ دی
چه په شام او ارمنستان کښې کېږي. د معدې او ریښه اعضاؤ
مقوي دی (م)

(۲٤) منبکنګ (پ) یوغرنی بوټی دی، چه بیخ يې ښه بوی او خړبخن
رنګ لري، د سپین غره د تیراه په دره، پکتیا، کونړ،
او د پښتونخوا په نورو غرونو کښې کېږي. اکثر خلک یې
څو دانې په بالښت کښې اچوي او له بالښت نه تل ښه بوی ځکېږي
په حیثیو لهجو کښې يې (مکښ) بولي (ب)

(۲۸)ـ معجونات: د معجون جمع. هغو ټولو ترکیبي دواګانو ته وایي
چه له نورو اجزاو سره شات هم پکښې ګډېږي او دخمیر په
شکل جوړېږي. (ب)

(۳٦)ـ مفاجا: ناڅاپي، ناڅاپه مرګ.

(۲۹)ـ ملخوزي (پ) حلبه (ع) پاڼې يې سابه دي او تخم يې په دواګانو
کښې استعمالېږي (م)

(۳)ـ موته (هـ) سعد (ع) د عین په پېښ ـ مشک زمین (ف) د یو
بوټي بیخ دی چه ښه بوی لري او د تقویې په دواګانو او مفرحاتو
کښې لوېږي (م ـ ت)

(۲۹)ـ موم روغن = روغن قیروطی: ترکیبي غوړي دي چه د ریزش او
زکام، ذات الجنب او نورو ناروغیو په وخت کښې سینه او نور
ځایونه پرې غوړېږي. (ب)

(۵)ـ مهلطی ـ مهلیتی (هـ) سوس په معروف واو (ع) مهک (ف)
شیرین چوب (ف) خوږه وله (پ) یو بوټی دی چه تقریبًا په هرځای
کښې کېږي او بیخ يې په ډېرو دواګانو خصوصًا د زکام، نزلې او د
سږي د عوارضو له پاره پکارېږي. د غریبخ ته: اصل السوس (ع)
او له هغه نه حاصل شوې دوا ته رب السوس (ع) بولي (م ـ ت ـ ب)

(۱٦)ـ ناکسیر: په چاپي نسخو کښې: ناګکسیر راغلی دی.

ناګسیر : دکاف په زبر او همدارنګه د ناګکسیر په شکل هندي لغت دی. دغوز انو قدر ته غټه لویه ونه ده چه په بنګال او نورو ځایونو کښې کېږي. ګل یې د هرشه بوی لري. ګل یې صفراء، بلغم، باد بواسیر او نسمم لري کوي (م)

(۲۵) نوبسي = جدوار.

(۳-۶) نزول : د سترګو او به شکته کول چه (آب مروارید) یې هم بولي.

(۱۹-۲۰) - نسوت (هـ) تربد (ع) تربد هندی.

دیو بوټي بیخ دی چه تور ښکاري، مګر دننه سپین دی او په جلابونو کښې لویږي. (م)

(۳۷) نفاخ (ع) باد ګین باد لرونکی - باد پیداکوونکی.

(۲) نک جهنګی (؟)

تک چهنګی دیو دارو نوم دی چه له نسوار ونه زیات سمې پر تجوی (فیروز اللغات) لکه چونی (هـ) د نون په زبر - یو فرشي بوټی دی چه د زمکې په مخ خوروی، د زهرو تاثیر لري کوي (م)

(۱۷) - نمک سنګ (ف) نمک لاهوری. ملح ایرانی (ع) یو نوعه مالګه ده چه ډېره سپینه او له نورو نه ښه ده. له کان نه را ایستلو په وخت نرمه وي او په آزاده هوا کښې کلکېږي (م)

(۱۹) - نیلتی (؟)

(۳) - نیم، نم (هـ) یوه ونه ده چه په هند کښې کېږي او پانې یې په ډېرو دوا ګانو کښې خصوصًا د دانو او خارښتو نو له پاره استعمالېږي (م)

(۸) - وانجی (؟)

(۲۷) هفت اندام : دیو رګ نوم دی چه وینه تري ایستل کېږي.

(۱-۲-۱۱-۲۰) هلیله (هـ) اربړه ، هرېړه (پ) اهلیلج (مع)

دیوې هندي ونې مېوه ده، چه په ډېرو دواګانوکښې په مختلفو طریقوګډه ېږي او ځانله هم استعمالېږي. په پخوانی طب کښې او دخلکو په نظر ډېراهمیت لري.

هلیله زرد = زېړه اربړه

هلیله کابلی = کابلی اربړه

هلیله سیاه = توره اربړه

(۳-۷) یرقان (ع) زېړی (پ.)

د ځیګر یوه ناروغي ده چه دوجود وینه کمېږي او درنګور رنګ زېړېږي، او تبه هم ورسره وي.

* * * *

# مأخذونه


(۱) طب خوشحال ختک - دپښتو ټولنې دکتابخانې زړه قلمي نسخه .

(۲) دخوشحال خان ختک طب - یوه ترتي نسخې نقل - دبلبل افغان په لیک - دپښتو ټولنې کتابخانه

(۳) طب نامه دخوشحال ختک، د ۱۳۴۵ هش چاپ - پښتو ټولنه .

(٤) ارمغان خوشحال، دسیدرسول رسا په مقدمه، دیونیورسټي بک ایجنسي پېښور لخوا دمنظورعام پریس چاپ، ۱۹٦٤ع .

(۵) کلیات خوشحال ختک، دوست محمد کامل په مقدمه، اداره اشاعت سرحد پېښور، ۱۹٦۰ع چاپ .

(٦) دخوشحال ختک مرغلرې، دعبدالحی حبیبي مقدمه، دطلوع افغان اداره، کندهار د ۱۳۱۷ هش چاپ .

(۷) دخوشحال خټک کلیات قلمي نسخه ، دپښتو ټولنې کتابخانه .
(۸) ظفر اللغات ، سید بهادرشاه ظفر ، اداره اشاعت سرحد ، پېښور (بې نېټې)
(۹) پښتو قاموس ، پښتو ټولنه ، کابل د ۱۳۳۰ هش چاپ .
(۱۰) مخزن الادویه ، محمد حسین ابن محمد هادی العقیلی العلوی ، دکانپور دنولکشور مطبعه .
(۱۱) تحفة المؤمنین ، حکیم میر محمد مؤمن ، دکانپور دنولکشور مطبعه
(۱۲) طبي قاموس ، زما دکتابخانې قلمي نسخه ، (په عربي ژبه)
(۱۳) هندي اردو لغت ، راجه راجیسور او اصغر ، د ۱۹۳۸ع چاپ - حیدرآباد دکن
(۱۴) فیروز اللغات (اردو) مولوي فیروز الدین ، دلاهور چاپ ۱۹۳۱ع .
(۱۵) طب اکبر ، حکیم محمد اکبر ارزاني ابن میر حاجي محمد مقیم ، دلکهنو دنولکشور مطبعه ۱۹۰۱ع دجولای چاپ .
(۱۶) دستور العلاج ، سلطان علي ، دنولکشور مطبعه ، ۱۸۹۰ع چاپ .
(۱۷) میزان الطب ، حکیم محمد اکبر ارزاني ، دنولکشور مطبعه ، د ۱۸۸۴ع چاپ .
(۱۸) قرابادین قادری ، حکیم محمد اکبر ارزاني ، دنولکشور مطبعه .
(۱۹) قرابادین کبیر
(۲۰) القانون ، څلورم ټوک او پنځم ټوک ، ابن سینا ، دلکهنو نامي مطبعه د ۱۹۰۶ع چاپ .
(۲۱) مؤجز ، علاؤ الدین علي ابن الحزم القرشي ، د نو لکشور مطبعه ، د ۱۸۷۱ع چاپ .
(۲۲) طب یوسفي ، یوسفي ابن محمد ابن یوسف ، دنولکشور مطبعه ، د ۱۹۰۸ع چاپ .
(۲۳) طب وبهداشت در اسلام ، جواد فاضل ، تهران د ۱۳۴۰ هش چاپ .
(۲۴) راهنمای تندرستی ودرمان طبیعی ، دمهرداد مهرین ترجمه ، تهران د ۱۳۴۶ هش چاپ .
(۲۵) زما د مرحوم پلار (ملا آقاجان طبیب) قلمي یادداشتونه .
(۲۶) مشکوة المصابیح ، الشیخ ولي الدین محمد بن عبدالله الخطیب ، دډهلي نظامي مطبعه د ۱۹۰۹ع چاپ .
(۲۷) معاصر ادبیات ، د ۷ - ۱۳۴۸ کال دافغانستان کالنۍ کښې زما رساله .

(کابل مجله - پښتو ټولنه
د ۱۳۵۲ عقرب ، د ۱۹۷۳ اکتوبر او نومبر گڼه)

# دخوشحال خټک فضل نامه

## یوه نوې زړه قلمي نسخه

### اولوړې نښې

| | |
|---|---|
| زه خوشحال خټک افغان یم | عطایي فصیح زبان یم |
| په فارسي شعر مامور یم | په پښتو شعر دستور یم |
| کړې ګوړې بنه تصنیف دي | د تعریف (او د توصیف دي) |
| په پښتو کتاب کمیاب دي | که کتاب دی وا کتاب دي |

فضل نامه- قلمي نسخه

خوشحال خان هغه پیاوړی انسان دی چه خیل قلم یې د خپل وخت د مروجو علومو او فنونو په برو ارتو میدانونو کښې ازموېلی دی اوله دې لارې نه یې د پښتو ادب خزانې ته ښایسته ښکلي لعلونه او مرغلرې وربخښلي دي.

که له یوې خوانې د پښتو شاعرۍ په ګلستان کښې سروګلان

راشنه کړي او د بزم په رنګینو محفلونو کښې یې «په ښکاره ناریې

وهلې چه خوله یې راکړه» له بلې خوانې د جنګ او جګړو

د سرو او تودو ډګرونو انګازه هم د خپلو تودو او سروشرنګ

په نغمو کښې خوره کړې ده او «په اهار کښې یې جوړ کړی لاله‌زار»

دی. له دې سره یې د خپل وخت د مروجو علومو، سیاسي او

اجتماعي مسایلو په باره کښې هم د شعر په ژبه کافي او د قدر وړ

آثار ایجاد کړي دي.

ده دې لړ کښې یې د اسلامي فقهې په باره کښې هم کار

کړی دی او مشهور درسي کتاب «هدایه» او هدارسته

«عنایه» یې په پښتو اړولې ده.

سربېره پردې د «فضل نامه» په نامه هم یو منظوم فقهي

اثر لري.

زما د دې څېړنې هدف ددغه کتاب د نسخو ښودنه ده

او په دې توګه یې وړاندې کوم.

## د فضل نامې موضوع:

د پیغمبرانو او امامانو په باره

کښې معلومات، د دیني عقایدو، لمانځه او داسه، روژې او

سرسایې، حج او زکات، عشر و خراج، نکاح او طلاق

بیع او شرا فقهي مسایل، داجتماعي اخلاقو، ادابو، حقوقو او واجباتو په باره کښې څرګندوني او په مذهبي روایاتو متکی توصیفي دکتاب مهم مطالب او موضوعات دی.

دکتاب په پای کښې دهغه وخت د معلوماتو سره سم طبي معلومات هم نظم شوي دی او یوه فالنامه هم لري.

مؤلف هڅه کړې ده چه د دیني مطالبو په څوا کښې د دنیا ځیني ضروري خبرې هم خپلو لوستونکو ته وړاندې کړي، لکه چه وایي :

دحکمت له کتابونو راوتلی په بابونو
د دنیا د ژیست خبرې پکښې هم شته دی نادري
دین د نیا به پکښې مومي که په حکم یې څوک درمي

دکتاب فقهي مطالب د امام اعظم ابوحنیفه د مذهب پر اساس دي چه موږ ورته (حنفي فقهه) وایو. د امام اعظم په تعریف کښې یې دکتاب یو فصل هم لیکلی دی او د هغه د استادانو سلسله او شاګردان یې پکښې ښودلي دي.(۱) دده په باره کښې وایي :

دهارون په خلافت کښې دده کار و په رفعت کښې
پلار نیکه یې دکابل وو بیا په بلخ کښې مقابل وو

(۱) وګورئ : دکابل رقلمي نسخې (۱۹ب - ۲۱ب) پاڼې - دپېښور چاپ (۳۱-۳۲) مخونه دارمغان خوشحال (   ) مخونه.

په کوفه کښې يې ميلاد و په مکتب کښې دحماد و
بيا د ده وطن بغداد شه هومره خلق ځنې سبا دشه

## دکتاب نوم :

دکتاب نوم پخپله مؤلف (فضل نامه) اېښی دی.

څرنګه چه د ده په نظر کښې د زعامت او سياست سمبول پګړه (دستار) و نو ځکه خيل هغه اثر يې چېرې مشرتوب په باره کښې ليکلی دی (دستارنامه) بللې ده او دغه اثر يې چه د اسلامي فقهې پر مسايلو او احکامو باندې حاوي دی (فضل نامه) نومولی او دا ځکه چه د ده په نظر کښې د ديانت او فقاهت فضيلت دی. دکتاب د نامه په باره کښې پخپله خوشحال خټک دکتاب په خاتمه کښې وايي :

چه تمام مې په خامه کړه ما يې نوم فضل نامه کړه

بيا وايي :

ترجمه يې هم يو نوم دی که يې بولې څوک موسوم دی

مؤلف دکتاب بل نوم (ترجمه) ښودلی دی، مګر دا يې نه ده څرګنده کړې چه دا دکومې ژبې نه دکوم اثر ترجمه ده. دکتاب له داخلي موادو نه هم دا خبره نه څرګندېږي او دا سې

معلومیږي چه مؤلف له مختلفو عربي او فارسي آثار وته دکتاب مواد راټول کړي، ترجمه کړي، مرتب کړي او منظوم کړي دي.

## دکتاب ادبي ارزښت:

دا اثر د پښتو په لنډ اته ځپه ایز بحر د مثنوي په توګه لیکل شوی دی. دا سي معلومیږي چه مؤلف په شعوري توګه دا اثر او خپل نور آثار په ساده ژبه لیکلي دي چه عام لوستونکي پرې ښه پوه شي او استفاده تري وکړي. پخپله وايي:

ساده نظم بې د قته — بې اشکاله بې لغته
په خفیف بحر ویلي — تکلف ځني وتلي
چه اسان په یاد ول وي — مختصر کښلي په کښل وي
چه هر څوک ورته وګوري — نیک عمل ورته وښوري

د دې کتاب د لیکلو نه د مؤلف بل هدف د ده د نورو اثارو په شان د خپلې ژبې پښتو علمي او ادبي خدمت او په دې ژبه کښې ادبي ذخیره زیاتول دي، لکه چه وايي:

په پښتو کتاب کمیاب دی — که کتاب دی دا کتاب دی
که پخوا کتب پښتو دي — نه د ښکو نه دلوستو دي
نه منثور دی نه منظوم دی — په مجهول قلم مرقوم دی (۱)

(۱) د کابل قلمي نسخه، ٤ ب پاڼه.

له پورتنیو بیتونو نه دا څرګندیږي چه د خوشحال په زمانه کښې چه د فقهي احکامو کوم کتابونه موجود وو، د هغو په ادبي معیار دی اعتراض کوي او پخپله هڅه کوي چه د پښتو په ساده او بې تکلفه نظم یو کتاب ولیکي. د پښتو په هغو کلاسیکو آثارو کښې چه تر مونږ پورې را رسیدلي دي، په دې موضوع کښې د غسې کوم اثر په نظر نه راځي.

تر خوشحال د مخه دیني آثار د بایزید روښان او اخوند درویزه په قلم لیکل شوي او د دوی د پیروا نو مریدانو او ادبي سبک د شاګردانو فعالیت هم د خوشحال ختک په دوره کښې او هم تر هغه وروسته روان و.

دا چه خوشحال د پښتو په پخوانیو کتابونو انتقاد کوي او وايي چه «نه د دینکو نه د لوستو دی» علت یې هم بیانوي چه «نه منثور دي نه منظوم دي» او کېدی شي چه د غسې آثار و نه یې مطلب د بایزید روښان خیرالبیان او د اخوند درویزه مخزن الاسلام وي چه نه منثور او نه منظوم بلکه په مسجع او مقفي نثر دي، چه د غه سبک بیا د خوشحال نه دی خوښ شوی.

په دې صورت د پښتو نظم په هغو آثارو کښې چه تر مونږ پورې را رسیدلي دي او د اسلامي فقهې احکام او مسایل

په ساده ډول بیانوي ، د خوشحال فضل نامه لومړنی اثر
بللی شو .

## د تالیف نېټه :

دکتاب د تالیف نېټه پخپله د مؤلف
له خوا ښودل شوې ده .

دکتاب په پیل د ( ذکر تالیف دکتاب ) په لومړنۍ کرښه کښې
دکتاب د پیل نېټه ۱۰۸۹ هـ ق ښيي او وايي :

داسې کال چه دغفظ ؤ    یو کتاب مې په نمط دی
چه یې نوی بنیاد کېږدم    یو دا کار په جهان پرېږدم

د ( غفظ ) د کلمې توري ( غ ف ظ ) په ترتیب سره د
ابجد په حساب ( زر - اتیا - نهه ) چه د ټولو نه ( ۱۰۸۹ )
جوړېږي .

مؤلف دکتاب د نوي بنیاد ایښودلو ( پیلولو ) کال ښودلی
مگر میاشت یې نده ښودلې او د هغه د پای ته رسیدو نېټه د
کتاب په پای کښې د هماغه ( ۱۰۸۹ ) ( غفظ ) کال د روژې
د میاشتې پنځه ویشتمه نېټه ښودل شوې ده .(۱)
څرنګه چه د روژې میاشت د قمري کال نهمه میاشت

---

(۱) وګورئ : دفضل نامې د پښتو ټولنې چاپ ، ۱۹۵۲م ، د محمد عبدالشکور دسریزې ( ب - ب ) مخ
دفضل نامې د زړې قلمي نسخې په استناد .

ده ، نو معلومیږي چه خوشحال خټک د غه اثر په نهو میاشتو یا تر هغه په لږه موده کښې لیکلی دی.

## د فضل نامې قلمي او چاپي نسخې :

د فضل نامې یوه قلمي نسخه په کابل او یوه په پېښور کښې ده. یو ځل د پېښور د قلمي نسخې له مخه په ځانله توګه په پېښور کښې چاپ شوې ده او بل ځل نه یې هم د کومې نسخې له مخه په ارمغان خوشحال کښې.

د فضل نامې وروستۍ برخه طبي موضوعات دي او دغه برخه (د خوشحال خټک طب) یا (طب نامه) هم بولي.

(د خوشحال خټک طب) دوه قلمي نسخې د افغانستان د علومو د اکاډیمۍ د پښتو ټولنې په کتابخانه کښې خوندي دي او د هغوله مخه (طب نامه) د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوې ده چه اوس به د دغو ټولو قلمي او چاپي نسخو ببلیوګرافیک پېژندنه وشي :

## د کابل قلمي نسخه :

دا نسخه اوس زما تر کار لاندې ده او د ځوان شاعر ښاغلي عبدالله شاد ان کتابخانې پورې اړه لري.

نه په ډېر مېنه له دوی نه ډېره مننه کوم چه دغه نسخه

يې مانه وا کړې ده چې کار وړ باندې وکړم او دولت يې معرفي کړم، بلکه زماددې څېړنې اصلي محرک همدغه نسخه ده.

دا نسخه د ( ۲۱ + ۱۵ )سم په اندازه يوسل او اووه پاڼې لري. لومړۍ پاڼه يې غورځېدلې ده. د دې نسخې ټول بيتونه دري زره ،دوه سوه نهه دېرش دی.

دا نسخه د ليکلو نېټه نه لري مګر د کاغذ له مخه د دوه يا دونيم سوو کالو ښکاري. وروسته مالکانو او نورو پرې دا نيټې ليکلې دي:

(۱) د کتاب د دوهمې پاڼې د الف مخ په سرکښې په دې عبارت:
« از ملاعبدالرحيم و ملاعبدالکريم خريده شده درشهر کابل بصفرسنه ۱۳۰۷ »
(۲) د کتاب په وروستي مخ د ټول کتاب د متن په پای کښې په هماغه ليک پورتنۍ عبارت.

(۳) يوه څانګه پاڼه چې د حکيم خيام رباعيات پرې ليکل شوي دي د ټولو پاڼو په پای کښې نښته، چې د دې پاڼې د رباعياتو په پای کښې داسې ليکنه شته:

« تمت تمام شد سنه ۱۲۸۱ »

د دې پاڼې د کاغذ رنګ له نورو پاڼو سره لږ فرق لري او معلومېږي چې دا پاڼه هسې د کتاب د ټينګوالي لپاره ځيا ورپورې نښلولې ده.

دکتاب لیکنه د میرمحی الدین د ننګرهار د کوټ تیراهي داوسیدونکي په قلم شوې ده . او دا مطلب د هغو پښځو کربنو څخه لاس ته راځي چې دکتاب د متن په پای کښې په دې ډول لیکل شوې دي :

«تمت تمام شد کتاب شد کتاب فضل نامه بدست خط فقیر حقیر دعاگوی.
دوست و دشمن خادم الفقراء میرمحی الدین ولد ... ..... (۱)
ساکن کوټ تیراه وفقیر ساکن بتی کوټ از دست شر .... ها
در دره ایجی در امده در انجام تمام یافت الهی من بیچاره را بفضل ...
از درګاه خوذ نامحروم مګردان . واز شفاعت محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم یاالله یاالله ....»

دکتاب د یو لوپاڼو په آخره او دحکیم خیام دریاعیاتو د پاڼو نه د مخه یو بله پاڼه هم شته چه په لومړي مخ یې د (شعرمحی الدین) تر عنوان لاندې یو پښتو شعر او په بل مخ یې پیعربي ژبه یو دعا لیکل شوې ده . ددې پاڼې کاغذ د متن له کاغذ سره یو دی او څرنګه چه سپینه پاتې وه په دې توګه استفاده ترې شوې ده .
دکتاب لیک نستعلیق دی . متن یې په تورا وعنوانونه یې د شنګرف

---

(۱) دلومړي نوم او دپلار نوم ځایونه اوګل کړی شوي دی . دده نوم په ذره بین ولوستلی شو مګر د پلار نوم یې سم نه لوستل کیږي او ده په تیت (زبرست) کلمه په نظر راځي ، مګر څرنګه چې زه په بشپړ مطمئین نه یم ځکه می دده دپلار دنوم پرځای تکي کښیښودل .

په سره رنګ لیکل شوي دي.

د (ځ) په ځای هرځای (څ) او د (ګ) په ځای (ک) لیکل شوی دی. (کښې) او (چه) همدغسې دی چه مالیکلي دي.

د نسخې کاغذ زوړ شوی، ځای په ځای رژېدلی، سولېدلی او شکېدلی دی. چېرته کوټه هم پرې څخېدلې ده او اوبو یې پانو ته نفوذ کړی دی او داغ یې معلومېږي چه د ادب د مینانو زړونه داغوي.

څرنګه چه دغه قلمي نسخه او دهغې مالک سناغلی شاداب دواړه په کابل کښې دي او لاتر اوسه په کابل کښې څه چه په ټول افغانستان کښې موږ ته د فضل ناجي بله قلمي نسخه نده معلومه، نو ځکه به دې ځېړنه کښې دا نسخه (د کابل قلمي نسخه) بولو او دهغې د عنوانونو فهرست د وړاندې کولو نه وروسته څو پېښور ته او د نورو نسخو لټه کوو.

د کابل د نسخې عنوانونه او موضوعات په دې ډول دي:

نعت د پیغمبر صلی الله علیه وسلم (دوهمه الف پاڼه)

فصل د اسامې د امامانو (دریمه الف پاڼه)

ذکر تالیف د کتاب (۳ب پاڼه)

کتاب دی اول په بیان د ایمان او د اسلام (٤ب پاڼه)

فصل په بیان د صفت د خدای تعالیٰ (۵ الف پاڼه)

فصل د معرفت د فرښتو (۵ ب پا ته)
فصل معرفت د کتا بونو (٦ الف پا ته)
فصل ذکر د موت (٦ ب پا ته)
فصل ایمان راوړه په حشر (٦ ب پا ته)
باب خلق درې گروه پیدا دي (۷ الف پا ته)
فصل ذکر د پل صراط (۸ ب پا ته)
فصل دی له بعث یعنې پس له مرګ ژوندون (۱۰ الف پا ته)
فصل د دوزخ او د دوزخیانو (۱۰ ب پا ته)
فصل تعریف د جنتونو او د جنت د نعمتونو (۱۱ ب پا ته)
باب دویم ذکر د عبادت او د معرفت چه سړی لازم او ملزوم دی (۱۲ ب پا ته)
فصل ذکر د اهل کبایرو کبیره گناهو چه څو دي (۱۳ ب پا ته)
فصل ذکر خلود د اهل نار چه تل به دوزخ کوی (۱٤ الف پا ته)
فصل ذکر د خیر و شر (۱۵ ب پا ته)
فصل په گناه باندې توبه (۱۵ ب پا ته)
باب تعریف د اخلاص د طاعت: غندنه د ریا د عبادت (۱٦ الف پا ته)
فصل صفت د علم او د علم فضیلت (۱۷ الف پا ته)
فصل اثبات د نبوت (۱۸ الف پا ته)
فصل فضایل د رسول د اصحاب د خلافت په مراتب د دیو (۱۹ الف پا ته)
فصل تعریف د امام اعظم (۱۹ ب پا ته)

باب دوييم ذکر د طهارت او د فرض دواجب سنت (۲۱ ب پا ڼه)
فصل د نمانځه د فرضيت (۲۱ ب پا ڼه)
فصل ذکر علامت د بلاغت (۲۲ الف پا ڼه)
فصل ذکر د فرض دواجب دسنت دا دبونو (۲۲ ب پا ڼه)
فصل ادب دخلا چه چارچوبه يا صحرا له تلمکا (۲۳ الف)
باب څلورم ذکر د وضو د هرکار (۲٤ ب پا ڼه)
فصل فرايض د وضو (۲۵ الف پا ڼه)
فصل ذکر د وضو د سنتو (۲۵ ب پا ڼه)
فصل د اوه دس د مکروها تو (۲۵ ب پا ڼه)
فصل ذکر وضو د دعوات (۲٦ الف پا ڼه)
فصل د هغو څيزونو چه اوه دس ماتيږی نه (۲۷ الف پا ڼه)
فصل داتو مسئلو د وضو د لمانځه پکار (۲۸ الف پا ڼه)
فصل ذکر د تيمم (۲۸ ب پا ڼه)
فصل پموزه مسح کول (۲۹ الف پا ڼه)
فصل لس سنت د ابراهيم پيغمبر عليه السلام (۲۹ ب پا ڼه)
فصل ذکر د نارينه او د عورتينو د اوبو (۳۰ الف پا ڼه)
فصل د غسل پچو نوع (۳۰ ب پا ڼه)
فصل صفت د غسل (۳۱ ب پا ڼه)
فصل دعوات د غسل (۳۱ ب پا ڼه)

فصل د نفاس د غسل (۳۳ الف پا نه)

فصل ذکر د څلور پاکیو (۳۳ ب پا نه)

باب پنځم ذکر د نمانځه د هرباب (۳٦ الف پا نه)

فصل د نمانځه د نیت (۳۷ الف پا نه)

فصل د نمانځه د فرضونو (۳۸ الف پا نه)

فصل د نمانځه د واجباتو (۳۸ الف پا نه)

فصل د نمانځه د سنتونو (۳۸ ب پا نه)

فصل د نمانځه داد بونو (۳۹ ب پا نه)

فصل د نمانځه د مکروهاتو (٤۰ الف پا نه)

فصل دمردانو زنانو ترمیان (٤۰ ب پا نه)

فصل ذکر د هغه چه خلل د نمانځه وي (٤۱ ب پا نه)

فصل د نمانځه دپاره شناخت دقبلې (٤۲ الف پا نه)

فصل ذکر د سجده سهو (٤۲ ب پا نه)

فصل د نمانځه د مواقیت (٤۳ الف پا نه)

فصل د بزرګۍ د نمانځه والي (٤۳ ب پا نه)

فصل په دا درې وختونو کښې نمونځ روا نه دی (٤٤ الف پا نه)

فصل درې وخت چه نفل نمونځ پکښې نه روا ندی (٤٤ الف پا نه)

فصل ذکر داذان داقامت (٤٤ الف پا نه)

فصل حق دامام چه امام حق لري (٤٥ الف پا نه)

فصل د نمانځه د قراءت (٤٥ ب پاڼه)

فصل د قضاء د نمونځونو (٤٦ الف پاڼه)

فصل چه نمانځه کښې او دس مات شي (٤٦ ب پاڼه)

فصل د بیمار د نمانځه (٤٧ الف پاڼه)

فصل د سفر د نمانځه (٤٧ ب پاڼه)

فصل د تلاوت د قرآن (٤٧ ب پاڼه)

فصل د جمعې د نمانځه گذارنه (٤٨ الف پاڼه)

فصل د عید د نمانځه گذارنه (٤٨ ب پاڼه)

فصل د عید د نمانځه گذارنه (٤٨ ب پاڼه)

فصل ذکر خسوف کسوف (٤٩ الف پاڼه)

فصل د تراویح د نمانځه (٥٠ الف پاڼه)

فصل د نفل د نمانځه (٥٠ ب پاڼه)

فصل د نفل د نمانځه (٥١ ب پاڼه)

فصل د نمونځونو فضیلت د شپې (٥٢ الف پاڼه)

فصل د نمانځه چه سنه ادا کا (٥٢ ب پاڼه)

فصل عذاب عقوبت د تارک نماز (٥٣ الف پاڼه)

فصل ثواب د جماعت د تکبیر اولا (٥٣ ب پاڼه)

باب شپږم ذکر د زکوة عشر د هر باب (٥٥ الف پاڼه)

فصل د زکوة د مقدار (٥٥ ب پاڼه)

فصل زکوة د اوښانو (٥٧ الف پاڼه)

فصل زکوة دغواوو (۵۷ ب پا نه)

فصل زکوة دپسونو دګډو (۵۷ ب پا نه)

فصل نوع د زکوة (۵۸ الف پا نه)

فصل دعشر د خراج (۵۸ الف پا نه)

فصل ذکر د هغو چه مستحق د زکوة دی (۵۹ ب پا نه)

فصل ذکر دهغو چه زکوة نه ورکوي (۶۰ ب پا نه)

فصل ذکر د هغو چه زکوة سره و باسي (۶۱ الف پا نه)

باب اووم در وژې د هر باب (۶۱ الف پا نه)

فصل د روژې دکفارت غاړه خلاصیږي (۶۳ الف پا نه)

فصل ذکر دهغو چه خوراک پرې رغیږي (۶۳ الف پا نه)

فصل ذکر د روژې د نذر د نیت (۶۳ ب پا نه)

فصل د روژې د ثواب (۶۴ الف پا نه)

فصل د روژې د ثواب (۶۵ الف پا نه)

فصل د روژې د اعتکاف (۶۵ ب پا نه)

فصل د عید فطر سرسایه وغیره (۶۵ ب پا نه)

فصل ذکر مال چه حج پرې فرض کیږي (۶۶ ب پا نه)

فصل دعید قربانۍ (۶۷ ب پا نه)

فصل ذکر دکشتار یعني مذبوح (۶۸ الف پا نه)

فصل ذکر د ښکار حیوان (۶۸ ب پا نه)

باب ذکر دجهاد او دغزا ثواب د شهیدانو (۶۹ ب یا نه)

فصل ذکر د شهیدانو په دوه رنګ دی (۶۹ ب یا نه)

فصل د مرده دغسل (۷۰ ب یانه)

فصل د نماز جنازه د ثواب (۷۱ الف یا نه)

فصل (۷۲ ب یا نه)

فصل (۷۳ ب یا نه)

فصل (۷۴ ب یانه)

فصل کلمات دکفر د زور مکروه کارونه (۷۶ ب یا نه)

باب نهم ذکر دکفارتونو په څو نوع (۷۸ ب یانه)

فصل ذکر د ظهار دکفارت (۷۹ ب یا نه)

فصل کفارت دایلاء (۸۰ الف یانه)

باب لسم د نکاح داستیرا (۸۰ ب یا نه)

فصل ذکر دنکاح دایجاب قبول وغیره (۸۱ ب یانه)

فصل د محارم چه نکاح یې نه رغیږي (۸۳ ب یانه)

فصل ذکر همشیره وسینه که چوشیده باشد (۸۴ الف)

فصل نظر کول وچانته (۸۴ ب یا نه)

فصل ذکر د طلاق ویلو (۸۵ ب یانه)

فصل ذکر د نکاح د طلاق داعتاق (۸۷ ب یا نه)

فصل لقطه چه څوک څه مومي (۸۸ ب یانه)

فصل ذکر د بیع و شرا نوعها ( ۸۸ ب پایانه )
فصل د حلال و حرام بیع شرا (۸۹ الف پایانه)
فصل د گواهی د شاهدی تیرول (۹۰ الف پایانه)
ذکر د ایمان د شپږ و حصار و نو افضل دی (۹۰ الف)
فصل آداب د طعام و خوراک (۹۰ ب پایانه)
فصل اداب د اوبو د څښلو (۹۱ ب پایانه)
فصل د خدای کول اداب (۹۲ الف پایانه)
فصل د مهمانه دا د بونو (۹۲ ب پایانه)
فصل د مهمانه د ثواب (۹٤ الف پایانه)
فصل ادب کورواته چیرته تله (۹۵ ب پایانه)
فصل آداب د نماستی (۹٦ الف پایانه)
فصل جواب د ولږي د عطسی (۹٦ ب پایانه)
فصل آداب د سلام و بزرگی آن (۹۷ الف پایانه)
فصل و تجو د کسب و غیره (۹۷ ب پایانه)
فصل ذکر د حجت دادبونو (۹۸ ب پایانه)
باب دولسم ذکر د حقونو چه فرض دی (۱۰۰ الف پایانه)
فصل حق د خدای په بنده باندې (۱۰۰ ب پایانه)
فصل حق د مور پلار (۱۰۰ ب پایانه)
فصل حق د فرزند په مور پلار باندې (۱۰۱ الف پایانه)

فصل د قرآن چه فرزند لولي (١٠١ ب پاڼه)
فصل حق دخويشانو (١٠٢ ب پاڼه)
فصل حق دتيمانو (١٠٣ الف پاڼه)
فصل حق د درويشانو (١٠٣ الف پاڼه)
فصل حق د همسايه‌گانو (١٠٣ ب پاڼه)
فصل حق د مرد په عورت (١٠٤ الف پاڼه)
فصل حق د عورت په خپل ميړه (١٠٦ الف پاڼه)
فصل حق د بنده‌گانو په خپل څښتن (١٠٧ الف پاڼه)
فصل حق دشاگردانو په استاد باندې (١٠٧ ب پاڼه)
فصل حق دپير استاد په شاگرد باندې (١٠٧ ب پاڼه)
فصل حق د فرزند په پلار (١٠٨ الف پاڼه)
فصل خراج (١٠٨ ب پاڼه)
فصل حکم د مرتد (١٠٩ الف پاڼه)
فصل ذکر د مورث دهلاکت (١٠٩ الف پاڼه)
ذکر دايام منحوسه (١١٠ ب پاڼه)
فصل ذکر درجال الغيب (١١١ الف پاڼه)
فصل ذکر د سفر (١١١ الف پاڼه)
باب خورلسم فالنامه د مصحف (١١١ ب پاڼه)
فصل د نمانځه د حاجت (١١٥ الف پاڼه)

فصل نمونځ دشب برات (١١٥ الف پا ته)
فصل نمونځ د اختر په شپه (١١٥ ب پا ته)
فصل نمونځ د حاجت تمام هفته (١١٥ ب پا ته)
نمونځ د جمعې په ورځ (١١٥ ب پا ته)
نمونځ دشنبې په ورځ (١١٥ الف پا ته)
نمونځ د یکشنبې په ورځ (١١٦ الف پا ته)
نمونځ د دو شنبې په ورځ (١١٦ الف پا ته)
نمونځ د سه شنبې په ورځ (١١٦ الف پا ته)
نمونځ د چار شنبې په ورځ (١١٦ الف پا ته)
نمونځ د پنجشنبې په ورځ (١١٦ ب پا ته)
نودونه نام د باری تعالیٰ (١١٦ ب پا ته)
خاتمه شکرانه د کتاب خوبیته (١١٧ الف پا ته)
(د کتاب پای) - (١١٧ ب پا ته)

(د کتاب د پای نه وروسته دوه پاڼې نورې هم شته چه په هغو کښې د میر محی الدین شعر یو دعا او د عمرخیام رباعیات لیکل شوي دي)

د کابل د قلمي نسخې په باره کښې دا لومړی ځل دی چه داسې مفصله څیړنه وړاندې کیږی.

تر دې د مخه یو ځل د (زیري) په جریده کښې او یو ځل د پادرې

هیوز د کاید افغاني د وروستي چاپ په تعلیقاتو کښې مـا صرف د دغه کتاب د موجودیت یادونه کړې ده .(۱)

## د پېښور قلمي نسخه :

د پېښور قلمي نسخه موږ د

هغې چاپي نسخې له مخې پېژنو چې په ۱۹۵۲م کال د پېښور موزیم د مدیر ښاغلي محمد عبدالشکور په واسطه د قلمي نسخې په لیکدود چاپ شوې ده .

دهغې په سریزه کښې ښاغلي عبدالشکور د قلمي نسخې په باره کښې داسې معلومات ورکوي :

« دا یوه قلمي نسخه ده چه تقریبًا څلور سوه کاله مخکښې لیکلې شوې ده . خو د خط صفائي او تازګئ کښې یې لاهغسې فرق نشته . د دې کتابت خوشحال خان بابا پخپله کړی دی . د الفاظو او کرښو برابر والی ، د کرښو فاصله او عامه صفایي او ترتیب نه دا ظاهرېږي چه خان معظم د کتابت فن نه هـم کما حقه واقف و . »

« دا (فضل نامه) کتاب چه کوم وخت د همت خان بهادر

(۱) وګورئ : ( پادري هیوز کلید افغانی ) د ۱۳۵۶ هـ ش چاپ د څېړندوی خدمتګار تعلیقات د « خوشحال خټک » ، په پېژندنه کښې ، ۳۵ مخ .

محمد رفیق خان ما ته دعجایب خانه پېښور د فنون لطیفه په نمایش کښې د ښکاره کولو د پاره راکړه نو باور وکړئ ما به وې چه خدایه د اکتاب څومره قیمتي دی که دا ضایع شو نو په هیڅ قیمت به یافت نه شي، څومره نقصان عظیم به وي په ما به لړزه راغله، زړ به مي ځان سره جوخت کړو، ښه دی چه اهل جهان خبر نه وو کنې ما به د دې حفاظت د پاره فوځونه دکوم ځایه راوستلي وای. د الله تعالیٰ شکر مې وویستو چه پس دکتابت محفوظ مې ورته و اپسي کړو.»

دمحترم عبدالشکور له معلوماتو نه وروسته د دې نسخې په باره کښې ځینې پوښتنې د سړي په خیال کښې ګرځي، مثلاً:

۱ـ د فضل نامې د تالیف کال ۱۰۸۹ هـ ق کال او د محمد عبدالشکور صاحب د سریزې نېټه ۱۳۶۸ هـ ق کال ده چه د دواړو ترمینځ د (۲۷۹) کلونو توپیر دی که د غه نسخه پخپله د مؤلف په قلم لومړنۍ نسخه هم وي. بیا په دې خبره کښې چه « دا یوه قلمي نسخه ده چه تقریباً څلور سوه کاله مخکښې لیکل شوې ده » یوځه دخوشبینۍ د احساساتو لاندې د مبالغې رنګ ښکاري.

۲ـ دا خبره چه « دا دې کتابت خوشحال خان بابا پخپله کړی دی » دهغې د لیکوال په استثنا ذخو به و منو، مګر کاشکې چه محترم لیکوال د نسخې د داخلي مواد و نه هم د اسناد و یوځه ذکر کړی

وای چه آیا د دې نسخې په کومه پاڼه پخپله دخوشحال خان لاس لیک یا مهر لګېدلی و یا دا سې کومه بله خبره لیکل شوې ده چه دا مطلب پرې تائیدېدلای شي.

دا چه کتاب دخوشحال ختک دکورنۍ د دورې په لیکدود لیکل شوی دی دکتاب قدامت همدغه لیکدود دوران ته خېژوي او کېدی شي چه پخپله خوشحال خان اویا بل چا لیکلی وي.

۳ـ ښاغلی محمد عبدالشکور دکتاب خاوند محمد رفیق خان ښیي او لیکي چه قلمي نسخه یې ورته پرته سپارلې ده.

دا به ډېره خوند وره خبره وي چه کره داسې معلومات ترلاسه شي چه او س هم هغه نسخه له نوموړي محمد رفیق خان سره ده اوکه بل چېرې؟

هو! مونږ د فاضل محترم عبدالشکور د زیار ایستو نه مشکور یو چه دغه کتاب یې د قلمي نسخې په لیکدود چاپ کړی دی.

## د پېښور چاپي نسخه:

لکه مخکې چه وویل شوو د خوشحال ختک فضل نامه د محمد رفیق خان د قلمي نسخې له مخه چاپ شوې ده چه د چاپ خصوصیات یې په دې ډول دي:

پیش کش : محمد عبدالشکور

خورونکی : اداره اشاعت سرحد پېښور .

مطبعه : امپيريل اليکتريک صدر روډ پېښور .

د چاپ نېټه : ١٩٥٢م

قطع ٢٤ + ١٦ سم

ټړون : د هر هغه پښتون په نوم چه په پښتو مين وي .

پېژندګلی : د مير رحمان غازي ( ٦ مخونه )

سريزه : د محمد عبد الشکور ( ١٨ مخونه )

متن : د خوشحال خټک ( ٢٥٠ مخونه )

پښتی : قطعه ای .

خطاط : ....

د کتاب د متن په پای کښې دا عبارات درج دي :

«تمت تمام شد نسخهٔ فضل نامه تصنيف قدوة المحققين خوشحال خټک

بروز دوشنبه بتاريخ بيست وپنجم شهر رمضان المبارک »

دليک دو د ځينې خصوصيات يې دا دي :

د ( ړ - ډ - ڼ ) په ځای ( ر - د - ن پرې د پاسه ( ٤ ) .

د ( ږ - ځ - ښ - ټ ) په ځای ( ج - ج - ش - ژ ) .

د ( کښې ) په ځای ( کشې ) او ( چه ) هم داسې چه ماليکلی ده .

# فضل نامه د (ارمغان خوشحال) په چاپي نسخه کښې

ارمغان د خوشحال خټک دکليا تو هغه مجموعه ده چه په (۱۰۳٤۱) مخونو کښې دميا سيد رسول رسا په مقدمه په ۱۹٦٤م کال په پېښور کښې چاپ شوې ده .

ښاغلي رسا په دې مجموعه کښې د خوشحال کلام په اتو توکو کښې وړاندې کوي چه شپږم توک يې (فضل نامه) ده او د مجموعې د (۸۰۱ نه تر ۹۷۲) مخونو پورې په (۱۷۲) مخونو کښې چاپ شوې ده .

دا فضل نامه زمونږ د نورو ذکرشويو نسخو سره کوم اساسي فرق نه لري .

څرنګه چه رسا صاحب د «ارمغان» د نورو لوبرخو قلمي نسخې نه دي ښودلې، نو سړی داهم په يقين سره نه شي ويلی چه درسا صاحب د ارمغان فضل نامه د پېښور د محمد رفيق خان دقلمي نسخې او يا د محمد عبدالشکور صاحب له چاپي نسخې څخه نقل شوې ده اويا دا چه د دوی سره کومه بله نسخه اويا نسخې دي .

د رسا صاحب د کار پرنسبت دادی چه صفا متن يې

نقل کړی او چاپ کړی دی. تعلیقات او حواشي یې نه دی
پرې لیکلي او د یوې نسخې د پرو نسخو له نسخه بدل یکښې هیڅ شی
نښانې په نظر نه راځي . په مقدمه کښې هم د خوشحال خان
د ژوندانه او د هغه د آثارو په معنوي او بدیعي ارزښت بحث
کړی دی او د نسخو په باره کښې یې څه نه دي لیکلي .
د پېښور له چاپي نسخې سره د ارمغان د فضل نامې د زیات
مطابقت او موافقت له مخه سړی په قوي احتمال ویلی شي چه دا
نسخه به له هغې یا د هغې له اصلي نسخې څخه نقل شوې وي .
خصوصاً چه د ارمغان د فضل نامې د متن په پای کښې لیکل شوي
دي :

« په ورځ د دوشنبې ۲۵ ماه رمضان المبارک غفط سنه
۱۰۸۹ هـ ختمه شوه . »

مګر محض په دې چه د ارمغان د فضل نامې ځینې عنوانونه
هم د پېښور د نسخې او هم د کابل د قلمي نسخې سره مطابقت
نه لري او زیاتې کمې یکښې شته ، سړي ته دا سودا لوېږي
چه که د دغو عنوانونو تغیر او تبدیل او حذف پخپله د رسا
صاحب کار نه وي، بیا نو ده ضرور پر ته له هغو نسخو نه چه مونږ
یې یادونه وکړه له نورو نسخو نه هم استفاده کړې ده .
مثلاً د کابل د نسخې (فصل ذکر خلود داهل نار چه په دوزخ

کوی - ۱٤ الف پاڼه) او (باب پنځم ذکر د نمانځه د هر باب
۳٦ الف پاڼه) عنوانونه چه د پېښور د چاپي نسخې له (فصل
خلود داهل نار چه تل په دوزخ کښې وی - ۲۲مخ) او (باب
پنجم ذکر د نمانځه د هر باب ٦٠ مخ) عنوانونو سره تحول
خوري ، ګرد سره په ارمغان کښې نښته او داسې نور.

له سنه مرغه رسا صاحب شکر ژوندی دی او مونږ ورته
د سنه ژوند او روغتیا هیله لرو له دوی نه دا تمه کېدی شي چه د
مهربانۍ له مخه یوازې د دې نه بلکه د ارمغان د ټولو اصلي
مأخذونو وضاحت وکړي.

ښاغلی رسا به پرېږدي چه څرنګه یې خوښه وی همغسې
وکړي او مونږ به بېرته راوګرځو کابل ته او د افغانستان
د علوموا کاډیمۍ د پښتو ټولنې کتابخانې ته به ننوځو.

## طب خوشحال ختک:

د پښتو ټولنې په کتابخانه
کښې د ۱۷+۱۲ سم په اندازه په ۲٤ پاڼو کښې د (طب خوشحال
ختک) په نامه یوه زړه قلمي نسخه شته چه د لیکلو
نېټه نه لري.

د (ځ - ړ - ښ - ګ - ڼ) په ځای (خ - ژ - ش - ک - نړ) توري پکښې استعمال شوي دي.

## د خوشحال خان خټک طب :

په نوموړي کتابخانه کښې

د ۲۱ + ۱۷ سم په اندازه په ۱۷ پاڼو کښې بله قلمي نسخه شته
چه د (طب خوشحال خټک) د ذکرشوې نسخې په د ننګرهار
د لالپوره د مولوي محمدعمر بلبل افغان (۱) په قلم دعنوانو
دعباراتو په لړ نو پېرېنقل شوې ده او دليکلو نېټه نه لري.
مرحوم بلبل افغان د پښتو خطاط او شاعر په ۱۳۰۵ هـ ق کال
کښې زېږېدلی او په ۱۳۴۵ هـ ش کال کښې مړشوی دی او د غه
دواړه نسخې يې په ۱۳۴۰ هـ ش کال پښتو ټولنې ته سپارلې دي
چه دوروستۍ نسخې ليکدود د هغه د خطاط د ژوندانه
په زمانې يعنې اوسني وخت پورې اړه لري.

## طب نامه د خوشحال خان خټک :

د دوو نوموړو قلمي نسخو له مخه د پوهاند
رښتين په ذريعه نقل او د نوموړي له مقدمې او
لغتنامې سره په ۱۳۴۵ هـ ش کال د پښتو ټولنې

(۱) د بلبل افغان د پېژندنې له پاره وګورئ :

ځېرندوی عبدالله خدمتګار بختاني، پښتانه شعراء څلورم ټوک، د ۱۳۵۷ هـ ش چاپ، کابل ۳۶۷ - ۳۶۹ مخونه.
عبدالرؤف بېنوا - اوسني ليکوال لومړی ټوک.
پوهاند رښتين، کابل مجله، د ۱۳۴۶ د غبرګولي مياشت، ۳ / ۷۵۲ ګڼه
ځېرندوی خدمتګار بختانی، معاصر اديبان - افغانستان کالنی، ۱۳۴۲ هـ ش کال.

له خوا په (٤٨) مخونو کښې چاپ شوې ده.(١)

## طب نامه په فضل نامه کښې:

تاسې به ضرور په دې ما
په قار شوی یاست چه د فضل نامې د نسخو د پېژندنې په لړ
کښې د طب نامو فهرست څه د پاره؟ ده به کجا و درختان به کجا؟
مګر نه! داسې نه ده.

طب نامه اساسًا د فضل نامې یوه برخه ده او په دې توګه:
د پېښور چاپ د فضل نامې په (١٩١) مخ کښې او د ارمغان خوشحال
په ٩٢٩ مخ کښې د (فصل ذکر ادویات) تر عنوان لاندې دا
بیت شروع کېږي:

په دارو کښې چه ښه نیت وي
دارو نه وي عبادت وي

تر دې وروسته د پېښور چاپ تر ١١٦ او د ارمغان تر ٩٤٦ مخه
پورې د طب مسایل دي چه په قلمي او چاپي طب نامو کښې هم
راغلي دي. (٢)

(١) د دغو درې واړو نسخو د پېژندنې او د هغې د ادبي او طبي ارزښت په باره کښې په
١٣٤٩ هش کال د خوشحال خټک په بین المللي سیمینار کښې د خدمتګار له خوا مفصله
څېړنه وړاندې شوې ده. د دغې څېړنې له پاره وګورئ:
څېړندوی عبدالله بختاني خدمتګار، د خوشحال خټک طب، کابل مجله، د ١٣٥٢ کال
د لړم میاشت ٨ / ٦٤٥ ګڼه، د ١ - ٣٦ مخونه.
(٢) د دې موضوع له پاره وګورئ، تېر مأخذ.

د طب د غه پښتو اثر د فضل نامې د کابل په قلمي نسخه کښې نشته. د اسې ښکاري چه په لومړي سر کښې خوشحال خان پخپله طبي مسايل له ديني مسايلو سره يو ځای ليکلي دي.

په دې نيت چه د اسلامي روايا تو له مخې (په انسان باندې دوه علمونه فرض دي چه يو د ابدانو علم بل د اديانو علم) (۱) نو د دې فريضې د پر ځای کولو په نيت خوشحال خټک د طب مسايل هم له ديني مسايلو سره يو ځای ذکر کړي دي او د خپل د دغه ((ښه نيت)) نه يې د ((عبادت)) د ثواب هيله لرلې ده.

او دا چه بيا د طب رساله د فضل نامې څخه د خانله رسالې په توګه بيله شوې ده، لا معلومه ده چه دا کار کله او چا کړی دی؟ پخپله خوشحال خټک او که بل چا؟ دا دا سې پوښتنې دي چه حل غواړي.

---

(۱) له اسلامي دورې څخه را وروسته د طب د زيا ترو کتابونو په مقدمه او ديباچه کښې دا عبارت د حديث شريف په نامه ليکل شوی دی او د دغو کتابونو په قلمي او چاپي نسخو کښې موجود دی:
((علمان فريضتان على الانسان علم الابدان وعلم الاديان))
او د کتابونو ليکوالو دا خبره هم څرګنده کړې ده چې په حديث شريف کښې د ابدانو له علم مطلب د طب علم دی او د اديانو تر علم د مخه ذکر شوی دی ځکه چې د دين علم او عبادت په روغ صورت کېږي.

## د نسخو ترمنځ د متن فرقونه:

په کلاسیکو آثارو کښې د نسخو د متونو ترمنځ توپیرونه یو طبیعي کار دی چه یوازې هغه نسخه ترې بې نیازه کېدی شي چه یوه او منحصره په فرد وي .

دکوم اثر چه متعدد دې نسخې وي د هغو متونو کښې هم بې شمېره توپیرونه موجود دي .

دا توپیرونه هم د ډیک دوه ډوله دی هم د توکو او لغتونو د استعمال او هم د متني موادو . د فضل ناې په نسخو کښې د لیکدود مهم توپیرونه په دې څېړنه کښې په خپلو ځایونو کښې ذکر شوي دي .

د توکو او لغتونو د استعمال توپیرونه ، بدلونونه ، زیاتې کمې بیا نول زما په خیال د دې څېړنې کار نه دی او کله چه د کتاب اکاډیمک متن تیارېږي بیا نو دا کار د فرض او واجب په مرحله کښې کتل کېږي ، نو ځکه اوس زه ترې تېر شوم .

د متن د زیاتوالي او کموالي او مهم فرقونه لاندې ښودل کېږي :

(۱) د کابل د قلمي نسخې لومړی پانه نشته ، د قلمي کتابونو د لومړیو پاڼو الف مخ عموماً یا سپین وي او یا د کتاب او مؤلف نوم ورباندې لیکل شوی وي او د دوهم ب مخ له منځ نه کتاب شروع کېږي چه متاسفانه د غه پانه لوېدلې ده .

د کابل او پېښور د نسخو په پرتله د کابل په قلمي نسخه
کښې د اول مخ د (بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمْ) نه وروسته د
کتاب د پیل بیتونه نشته.

(۲) د پېښور د چاپي فضل نامې د (۱۸۲) مخ او د ارمغان
د (۹۲۳) مخ د دې بیت نه:

هر سړی چه صحبت وکا
پاخېدل دې هم زر نه کا

د پورتني فضل نامې د (۱۵۱) مخ او د ارمغان د (۹۴۵) مخ
تر دې بیته پورې:

نه دې دروند پېښتی اخلي
نه دې زور کا نه دې زغلي

ټول (۴۶۵) بیتونه (۱) د کابل په قلمي نسخه کښې نشته
او داسې معلومېږي چه د دغې قلمي نسخې د (۹۹ او ۱۰۰)
پاڼو تر منځ به پاڼې لوېدلې وي.
ځکه چه د دغې نسخې د ۹۹ ب پاڼې وروستی بیت:

چه په ورځ په شپه دخول کړي
په داشان به کار قبول کړي

او د دغې نسخې د (۱۰۰ الف) پاڼې لومړی بیت:

نه دې پاس په بام وخېږي
نه دې قهر غصه کېږي

(۱) دغه شمېره د پېښور د فضل نامې د چاپي نسخې ده چه په ارمغان کښې د بیتونو دغه شمېره (۴۱۹) بیتونو ته رسېږي.

تر منځ معنوي ارتباط شکېدلی دی او د یا نو په لوېدلو دلالت کوي .

ډېر افسوس کوم چه د کاغذ د زوړ والي او زړېدو له امله د دغې نسخې د سلمې پاڼې رکاڼ زړېدلی دی او زما د دې حکم تحریري سند له منځه تللی دی .

په دغو لوېدلو پاڼو کښې د فصل نامې د طبي مسایلو برخه هم له منځه تللې ده .

(۳) « صد عیب که گفتی هنرش نیز بگو »

د کابل او پېښور د نسخو یو لوی فرق دا دی چه د کابل په قلمي نسخه کښې (۵۲) بیتونه شته او د پېښور په چاپي نسخه او همدا رنګه په ارمغان خوشحال کښې نشته .

د دې برخې په ډیا توالي د قلمي نسخې ارزښت بېخي لوړېږي ، ځکه چه د پښتو ادب د خزانې ته نوې اضافه وړاندې کوي ، خصوصاً چه په دغه بیتونو خوشحال ختک د ځان په باره کښې هم کړېدلی دی .

دا بیتونه د کابل د قلمي نسخې د (۱٤ الف) پاڼې نه تر (٦ الف) پاڼې پورې په دې ډول درج دي : (۱)

(۱) بیتونه په اوسني لیک دود ولیکل شول .

(١٤ الف) پائنه کښې:

چه يې لولي يا يې ښکيښه  د دعا مهر دې کړينه
که څه سهوه يا خطا وي  عيب پوشي دې په عطا وي
نه خوشحال ختک افغان يم  عطا يې فصيح ژبان يم
په فارسي شعر مامور يم  په پښتو شعر دستور يم[1]
که يې ګورې شته تصنيف کې  د تعريف ...... [2]

(٤ ب) پائنه:

په پښتو کتاب کمياب دی  که کتاب دی دا کتاب دی
چه پخوا کتب پښتو دي  نه د شکو نه د لوستو دي
نه منثور دي نه منظوم کې  په مجهول قلم مرقوم دي
که يې مښک داوړه له چينه  بوی د نور څه څخني څينه
که عاقل يې په دا پوه شه  که جاهل يې په اندوه شه
زما کار دی له عاقله  نه مې کار دی له جاهله

## کتاب دی اول په بيان د ايمان او د اسلام

که ته يو کړې نوم اوربه  چه خدای يو دی ای طالبه!
په اندام عمل قبول کړه  پيروي د پاک رسول کړه
په دا هونيرو ايماندار يې  مؤمنانو سره شمار يې

(١) دغه وخت په اصطلاح (دستور) وزير او منشي ته وايي.

(٢) د تکو ځای شکېدلی دی. ښايي چه دا مصرع داسې وي: (د تعريف او د توصيف دی)

که مؤمن یې توحید نده کړه     بل شریک یې پیدا مه کړه
شریک نه لري احد دی     لم یلد ولم یولد دی
... مثل خدای دی (۱)     نه له ځایه نه یې ځای دی

۵ الف :

نه حاجت د چا لره یې نه     نه یې چا ته حاجت پښینه
نه یې قد نه یې قامت شته     نه یې شکل علامت شته
نه یې رنګ نه یې مانند شته     نه یې چون شته نه یې چند شته
همیشه دی تل به وینه     نه یې مرګ شته نه به مرینه
توانایي لري بې تنه     دانایي لري بې منه (۲)
سترګې نه لري بینا دی     غوږ یې نشته ښه اشنوا دی
نه یې چار شته نه یې ګډ شته     نه یې سترګې نه یې غوږ شته
هیڅ محتاج د انباز نه دی     د مخلوق غوندې نیاز (۳) نه دی
نه یې تله شته نه یې ناسته شته     نه یې سهو نه یې نماسته شته
نه څه خوري نه او به شومي     نه کیبني نه چیرته درومي
نه یې رنګ نه یې اندام شته     نه یې ژبه نه یې کام شته

(۱) دغه ګوټ ځای شکیدلی دی. کیدی شي چه دا مصرع داسې وي: (لا شریک بې مثله خدای دی).
(۲) په قلمي نسخه کښې (من) لاندې لیکل شوی دی: (عقل).
(۳) په قلمي نسخه کښې دا کلمه تکي نه لري، کیدای شي چه (ساز) دې وي.

## فصل په بیان د صفت د خدای تعالی

په دنیا به لیده نه شي ‌ ‌ ‌ په جنت کښې به لیده شي

۵ ب :

د زاهد زهد به هیڅ کا ‌ ‌ ‌ که په شمار وي سره پیغ کا

که یې فضل په عاصي شي ‌ ‌ ‌ د شیطان به هم خلاصي شي

عیب نه لري په ذات کښې ‌ ‌ ‌ نه یې وت[1] شته په صفات کښې

پاک بې عیبه بې نقصان دی ‌ ‌ ‌ پرې پاکې بنلې سبحان دی

## فصل د معرفت د فرښتو

پیدا کړې فرښتې دي ‌ ‌ ‌ په پاکې کښې واړه ښې دي

همګي د خدای بنده دي ‌ ‌ ‌ د هر حکم پابنده[2] دي

چه فرمان وشي ورباندي ‌ ‌ ‌ هسې اوسي هسې کاندي

مهرباني په آدم دي ‌ ‌ ‌ له آدم سره همدم دي

د همه واړه دوستدار شه ‌ ‌ ‌ له ننا عه یې دیزار شه

عزرائیل په ځان راشي ‌ ‌ ‌ د خدای حکم وته کښي

که له ده سره غلیم یي ‌ ‌ ‌ له شیطان سره سهیم یې

په فرښتو ایمان راوړنه[3] ‌ ‌ ‌ دا دی زده کړه دا دی شینه

---

(۱) په قلمي نسخه کښې (وت) لاندې لیکل شوي دي (نقصان) په دوهم قلم هغه شوی دی چې (اوت) ته (ولی) جوړ شي. ولی د (ساري، مناسب، لایق) معنا هم ورکوي. نکر (اوت) د (نقصان) په معنا د یره څرګند معنا ښندي.

(۲) د (پابنده) لاندې په قلمي نسخه کښې لیکل شوي دي: (قبلوونی)

(۳) په قلمي نسخه کښې په یل لیک د (راوړنه) له کلیمي څخه (راوړینه) جوړه شوې یعنی (و-ن) ترمنځ (ی) زیاته شوې ده.

٤ - الف

## فصل معرفت د کتابونو

کتابونه چه نازل دي | که څلور که شل که سل[1] دي
ته ایمان په واړه و راوړه | واړه حق کښه مه او ړه
په موسیٰ توریت راغلی | له آسمانه راغلی سبکلی
د عیسیٰ کتاب انجیل دی | درست بناغلی په ترتیل دی
د داود کتاب زبور دی | واړه صدق واړه نور دی
په احمد نازل قران دی | چه روښن په درست جهان دی
هر کتاب چه د آسمان دی | پاک کلام د پاک سبحان دی
که مخلوق ورته وو ایي | ځان وکفر و ته بیایي
که منکر شي له کتابه | هم کافر شي بې ځوابه
که منکر د حرف آیت یي | هم کافر په شریعت یي
وی هر کلام د خدای دی | څوک چه دم وهي خطای دی

دا بیتونه د دې بیت :

چه عطا نه وي له غیبه
کار خالي نه وي له عیبه

او د دې عنوان او بیت :

باب د معرفت د پیغمبرانو

تر لک زیات پیغمبران دي | څوک نبیان[2] څوک مرسلان دي

---

(۱) په قلمي نسخو کښې د ناسخ په لیک « سل » د پاسه لیکل شوي دي : ( زر )

(۲) په چاپي نسخو کښې ( بني ) .

ترمينځ موقعيتلري چه د پېښور د چاپي فضل نامې په (۹) مخ او د ارمغان په ( ۸۰۶ ) مخ کښې يې لوستې شو و.

## نوري نسخې :

ما او ريدلي وو چه «فضل نامه» «بياهم» په پېښور کښې چاپ شوې ده ، مګر دا ما نه ده هسې خبره ښکاري. بياهم که د فضل نامې د نورو چاپي او قلمي نسخو په باره کښې له چا سره نور معلومات وي ، خدمتګار به يې په ډېره منته ومني.

## د کتابخانو لېټون :

ماخو د افغانستان د علومو اکاډيمۍ ، ملي آرشيف او د پوهنتون په کتابخانو کښې لټون کړې دی او د لندن د برېټش موزيم - انډيا افس ، د هند د رامپور د رضا لايبرېرۍ د شوروي اتحاد د لېننګراد د ختيځ پېژندنې د موسسې د قلمي کتابونو د کتابخانې فهرستونه لوستي دي ، او په هغو کښې د فضل نامې د بلې نسخې په موندلو بريالی شوی نه يم . همدارنګه «پښتو کتابونه» (۱) او «پښتو پانګې» (۲) مې او ولي را او ولي دي او پر ته له هغو کتابتونو نه چه په دې مقاله کښې ذکر شوي ما د فضل نامې د بل چاپ په باره کښې څه نه دي لوستي .

بيا هم : « نيت او مراد »

د خوشحال خان خټک د درېيم تلين د نمانځنې د بين المللي سيمينار مقاله چه په ۱۳۵۸ هوش کال په کابل کښې د پښتو ټولنې له خوا جوړ شوی و.

(۱) پښتو کتابونه ، د ارز محمد دلېش ليکنه ، کابل ، د ۱۳۳۲ هوش چاپ .
(۲) پښتو پانګه ، د حبيب الله رفيع تاليف ، دوه ټوکه ، کابل د ۱۳۵۶ هوش چاپ .

# د ډاکټر عارف عثمان

## د خوشحال پېژندنې خزانې ته

## یوه کتنه

ډاکتر عثمان د ازبکستان د جمهوریت رسېدلی محقق، د پښتو په معاصرو او کلاسیکو ادبیاتو کښې د پراخې مطالعې خاوند دی. د کلاسیکو ادبیاتو په برخه کښې د خوشحال خان خټک د آثارو او د هغه د ادبي دورې په باره کښې پوره مطالعه لري او د شلو کالو راهیسې موده کښې، په دې لړ کښې کار او څېړنې کوي.

د (خوشحال خټک او د ده ادبي مکتب) په باره کښې عارف عثمان یو لړ مقالې لیکلې دی. د هغه مقالې وخت په وخت په پښتو او فارسي ژبو په کابل کښې او په ازبکي او روسي ژبو په تاشکند او مسکو

کښې چاپ شوې دي. نوموړی په هغو علمي سیمینارونو
کښې، چه خصوصًا د خوشحال خټک په باره کښې جوړ شوي دي،
پوره برخه اخیستې ده، خپله څېړنې یې اورولې ده او په علمي
مباحثو کښې یې فعال ګډون کړی دی. هغه د خوشحال خټک
څلویښت پندونه هم را ټول کړي دي. دا د خوشحال خټک څلوېښت
رباعي ګانې دي چه نوموړي ډاکتر انتخاب کړي او د هغو له
فارسي، ازبکي، ترکمني او بلوڅي شعري ترجمو سره (په کابل کښې)
چاپ شوې دي. هغه د خوشحال خټک د شاعرۍ او ژوندانه
په مختلفو اړخونو باندې خپلې یو لړ څېړنې را ټولې کړي دي
او غواړي چه د یو کتاب په توګه چاپ شي او د مهربانۍ له
مخه یې دا کتاب ماته راکړ چه خپل نظر پرې څرګند کړم.

په داسې علمي او ژور کار باندې د نظر یې څرګندولو
ډېر وخت او دقت غواړي او دا ایجابوي چه سړی یې ټکی
په ټکي په غور ولولي او بیا خپله رایه ولیکي. دا رنګه کار ما
غوندې یو کمزوري سړي ته چه د هېواد ورځپاڼې د چلولو
د مسؤلیت درونډ پیټی یې هم په غاړه وي، ګران خو چه
ناممکن دی. مګر ما دې ناممکن کار ته «نه!» و نه شــو
ویلای، ځکه چه له یوې خوا عارف ملګري ته دومره احترام
لرم چه د هغه پر علمي کار باندې ځان مشغولول او په هغه

باندې نظر څرګندول ما ته دومره د خوند ځکار ښکاري چه په دې لارکښې د مشکلاتو غونډه هم هډو را ته څه نه ښکاري . له بلې خوا له هغه وخت نه چه دی د کابل پوهنتون د ادبیاتو د پوهنځي او بیا په مسکو کښې د علومو د اکاډمۍ د ختیځ پېژندنې د انستیتوت محصل و ، زه ورسره پېژنم او له عارف سره د معرفت په دې شل کلنه دوره کښې که ما دده یو ګول آثار نه وي لوستي نو یې هغه څېړنې او کارونه مې ضرور اوریدلي او لوستلي دي چه په پښتو او فارسي ژبو لیکل شوي دي . د افغانستان په علمي سیمینارونو کښې اوړول شوي او دلته چاپ شوي دي .

د هغه د دې کتاب مضامین هم د غسې دي او ما یې هریو ، دوه ، درې ځله لوستلي او یا اوریدلي دي ، نو ځکه زه یه هماغو لوستلو او ریدلو اکتفاء کوم او د موجوده کتاب لیږي سرسري مطالعې نه وروسته هرڅنګه چه وي خپل نظر یې څرګندوم .

تر هرڅه د مخه ، د دې مقالو په لیدلو ډېر خوشحاله شوم . دا زما د زړه یو ارمان و . ښایي چه کله به مې دا ارمان عارف ملګري ته هم څرګند کړی و . د خوشحال خټک د سیمینار په وخت کښې خومې زړه ډېر ، تلوسه درلوده چه که دا اثر چاپ شي ، خو به

هغه وخت کښې مې دا ارمان د نورو ارمانونو په شان په زړه کښې پاتې شو. اوس زه ډاکتر عثمان ته شاباسی وایم چه زما دزړه ارمان یې تر سره کړ او امید دی چه د علمي آثارو د چاپولو مربوطه اداري زما دزړه بل ارمان هم وباسي او دا کتاب چاپ کړي.

په دې څېړنو کښې دخوشحال دشعر په مختلفو معنوي ارزښتونو باندې په علمي نظر رڼا اچول شوې ده. دخوشحال په اشعارو کښې دشجاعت او زړورتیا، بشر دوستۍ او وطن پالنې، ځوانۍ او رندۍ، مینې او محبت، جمالیاتو او اخلاقیاتو د مضامینو په څرګندولو او افادې باندې، په رباعي لیکنه کښې دخوشحال بدیعي مهارت ثبوت ته رسېدلی دی او دخوشحال په اشعارو کښې دافغاني فولکلور او شرقي فولکلور پېښې ښېړل شوې دي.

ډاکتر عثمان دیو پوه محقق په شان دخوشحال خټک زمانې ته یوه لنډه کتنه کړې ده او دخټکو په باره کښې یې لنډ معلومات وړاندې کړي دي چه دلته کفایت کوي. همدارنګه یې دخوشحال خټک په ادبي مکتب باندې هم څېړنه کړې ده او د هغه د کورنۍ شاعران او ادیبان یې هم په لنډه توګه معرفي کړي دي.

دا کتاب د خوشحال پېژندنې په لړ کښې یوه مهمه اضافه ده. خصوصًا له دې امله یې ارزښت زیات دی چه پر دې کښې د

خوشحال خان د آثارو معنوي او بديعي اړخونو ته ډېره توجه شوې ده او ددې ږنګه څېړنو په برکت ، خوشحال خان خټک يوازې ديوې ژبې ، يو ملت ، يوې زمانې او يو وطن شاعر نه ، بلکه د نړۍ شاعر او ډېر يو متفکر ګڼل شي .

د عارف په څېړنو کښې د خوشحال د شعر د محتوا معنوي اړخونه داسې څېړل شوي دي چه ديشري نړۍ د فکر او نظر ، ادب او کولتور په بهير کښې د خوشحال د اشعارو او افکارو ځلاند موقف تثبيت شوی دی ،

په داسې حال کښې چه د ډاکتر عثمان مورخنه ملي ژبه ازبکي ده او د هغه دلوړو تحصيلاتو او مطالعاتو ژبه روسي ده ، په پښتو ژبه کښې د هغه پراخه مطالعه او په خپل قلم په پښتو ژبه د داسې يو علمي اثر ليکل او وړاندې کول ، البته ضرور د هغه له پاره د افتخار او سرلوړۍ ځای دی ؛ مګر مونږ هم حق لرو چه د داسې پوهانو په داسې کارونو وناز پږو او تر وسه پورې يې وناز وو .

هو مره چه ماته معلومه ده ، په ټوله نړۍ کښې دا لومړی ځل دی چه له افغانستان نه بهر ، يو لومړنی افغان پېژندونکی د خوشحال په باره کښې داسې يو علمي جامع اثر په پښتو ژبه ليکلی او چاپ ته وړاندې کړی دی . ددې اثر چاپول ، د دغه ابتکار

څرګند ول او د هغه د خاوند ناز ول دي . . . .

په داسې حال کښې چه زه د دې کتاب په تدوينولو د هغه فاضل او عارف مؤلف ته د زړه له کومې مبارکي وړاندې کوم ، هغې ورځې ته منتظر يم چه د هغه يوه چاپي نسخه پخپله کتابخونه کښې ولرم

کابل - خيرخانه
د ۱۳۵۹ داسد دريمه
د ۱۹۸۰ د جولايي ۲۵مه

يادونه :

د ډاکټر عارف عثمان اثر (خوشحال خان خټک اوده ادبي مکتب) په نامه کتاب په کابل کښې په ۱۳۶۱ هش کال دافغانستان دعلومو اکاډمۍ د پښتو څېړنو دبين المللي مرکز له خوا چاپ شو او دا ليکنه يې هم په سريزه کښې راغلې ده .

# صد پند سودمند خوشحال حکیم

آن حکیم ملت افغانیان
آن طبیب علت افغانیان

خوشحال ختک شاعر بزرگ ، گران مایه ، جلیل القدر و پرثمر زبان پښتو می باشد که آثاری به زبان فارسی هم به یادگار گذاشته است .

شعر خوشحال ختک از لحاظ مضمون بسیار غنی و کثیر الجوانب می باشد . غزلیات زیبای لیرک وعشقی ، قصاید پرشور حماسی و تاریخی ، اثرهای مهیج ملی و وطنی حصه بزرگ و متنابهای ارثیه ادبی خوشحال خان را تشکیل میدهد که علاوه از آن در زمینه های فقه ، اخلاق ، طب ، سیاست ، اجتماعیات وغیره هم منظومه های گران بهایی از وی باقی مانده است .

شعر ساده ، عام فهم ، سلیس وروان خوشحال ختک از روی شکل هم مختلف النوع بوده واین شاعر زبردست کلاسیک به غزلیات ، قصاید ، رباعیات ، مخمسات وغیرهٔ خود ، با صنایع و بدایع ادبی ، در بحرها و آهنگهای

مختلف ، شعر کلاسیک پښتو را رنگین، متنوع وغنی ساخته است.
طوریکه اشاره شد رباعیات یک فورم مهم شعر خوشحال ختک بوده
وحصه بزرگ ووزین شاعری اوراتشکیل می دهد.
رباعی درشعر فارسی، پښتو، عربی وغیره السنهٔ شرق
عنعنه قدیمی دارد.
مطابق عنعنهٔ شعراء بزرگ اغلباً افکار عالی، حکیمانه و عارفانه و
پند ها ، اندرزها ونصایح ثمربخش وعبرت آموزشان را درقالب موجز
رباعی ریخته وباکمال مهارت کامل «بحر» علم ومعرفت را در«کوزه»
هنر رباعی جا میدهند.
خوشحال ختک نیز افکار خیلی پخته واندوخته ها وتجربه های حیات
وطرز دید خود را از پدیده ها ، درفورم پختهٔ رباعی جا داده وبنظرمی رسد
که اکثریت رباعیات خوشحال ختک مربوط به دوران پختگی عمر ومحصول
پختگی فکر وتجربه وی می باشد. لهذا از روی اداء وادب
خیلی رنگین وازنظر مفهوم ومعنا خیلی غنی وباارزش است.
(۲ رباعیات خوشحال ختک چندین بار ضمن کلیات اشعار وی در
کابل ، کندهار، پشاور، مردان وغیره چاپ شده است.
(۱ رباعیات خوشحال ختک مورد توجه واستفاده عمومی بوده. هم
خوانندگان ومحققان افغان وهم شرقشناسان جهان را به خود مشغول مشعوف
ومعطوف ساخته است.

افتخار دارم که متن مجموعهٔ (د خوشحال ختک رباعیات) که حاوی اضافه از شانزده صد رباعی می باشد از روی سه نسخهٔ خطی نادر و قدیمی وسه نسخه چاپی معتبر تحت نظر این خدمتگار ذریعه هیئت پنج نفری علمی اعضای مسلکی اکادیمی پښتو ټولنه آماده گردیده و به سال ۱۳۴۹ ازطرف پښتو ټولنه به چاپ رسیده است .

در زمرهٔ محققان شرقشناسان ومستشرقان محقق، رباعیات خوشحال ختک مورد توجه بیشتر وجدی دانشمند ومحقق ازبکستان شوروی « داکتر عارف عثمانوف » قرار گرفته است .

ایشان در مورد تحلیل و ارزیابی جنبه های متنوع بدیعی، معنوی و لفظی رباعیات خوشحال ختک در اوقات مختلف تحقیقات جداگانه نموده ونتیجه آن را به شکل مقالات به السنهٔ اوزبیکی، روسی و پښتو در مطبوعات اتحاد شوروی وافغانستان به نشر رسانیده است .

داکتر عارف عثمانوف دائماً باشوق وشعف زاید الوصف رباعیات خوشحال را می خواند، از آن حظ می برد، بر جنبه های مختلف آن تحقیقات علمی انجام میدهد ... به این دلش یخ نمیکند ... میخواهد رباعیات خوشحال را همه بخوانند و از آن مثل وی حظ ببرند . به این منظور سعی میکند که رباعیات خوشحال اولاً به سایر السنهٔ افغانستان و بعداً به السنه خارجی به نظم رباعی ترجمه شده و به چاپ برسد .

وی در این ره قدمهای برداشته است .

اولاً مجموعه (د خوشحال ختک څلوېښت پندونه) را مهیا ساخت.
در آن مجموعه چهل رباعی خوشحال ختک به زبانهای دری، اوزبیکی،
ترکمنی و بلوچی ترجمه در سال ۱۳۵۸ هـش به چاپ رسید.
معلوم میشود که به اساس اصطلاح فولکلوری پښتو (خوندوري

راتلهٔ يي) عارف عثمانوف درین زمینه موفق به پیشرفت دیگری گردید.
وبعد از آن که عدد مهم فولکلوری شرقی یعنی (چهل پند) او چهل چراغ
دیده ارباب ذوق ادبی وبصیرت هنری گردید، کار خود را به عدد (صد)
عدد مهم در فولکلور تمام ملل، بالا برد وصد پند سودمند خوشحال ختک را
به السنه فوق برای مطالعه ملیت های برادر افغانستان وجهان تقدیم نمود.
عارف عثمانوف در پهلوی این خدمت پر ارج ادبی، افتخار خدمت
در راه تحکیم وحدت ومحبت در بین اقوام و ملیت های برادر افغانستان و
نزدیکی وتفاهم بین المللی را نیز حاصل نمود. وحدت وتفاهمی که بر اساس
تساوی حقوق برابر وبردرانه در راه شگوفائی فرهنگ ملیت های برادر -
افغانستان با وسایل مختلف اقدامات صورت گرفته ومیگیرد.
کار ارزشمند داکتر عارف عثمانوف مطابق به این آرزو بوده وملیت های
اوزبیک، ترکمن، بلوچ، پشه‌یي و دری زبان افغانستان را به عمق اندیشه
شاعر کلاسیک پښتو وبالوسیله با طرز تفکر بزرگان پښتون رهنمونی میکند
وبالوسیله نه تنها اشتباهات، رنجشها وسؤ تفاهمات ذات البینی را که از میراث

شوم سیاست مدارک های سیاه دوران گذشته است از بین می برد علاوه از آن طوریکه گفته آمدیم ترتیب، تدوین و چاپ اینچنین آثار ذیقیمت در راه تحکیم دوستی وبرادری وایجاد حسن تفاهم و مهر ومحبت بین الافغانی وبین المللی از جمله موثر ترین ذرایع بشمار می آید. علاوتاً چون این کار ابتکار یک دانشمند شوروی می باشد، اصولاً نمونه زنده واندنده ای در تاریخ روابط کولتوری این دو کشور نیز دانسته می شود.

لهذا ما درباره مبتکر این گونه آثار بدیعی باصمیمیت میگوییم:
خوشا به حال شان !!
آفرین برهمت وحوصله شان !!

(مقدمه کتاب صدپند سودمند خوشحال)
کابل - ۱۳۶۱ هـ ش

# د خوشحال خان خټک

## او د هغه د کورنۍ پر ادبي میراث

## علمي خبرې

نباغلی عارف عثمانوف د ازبکستان یو رسېدلی محقق، د پښتو په معاصرو او کلاسیکو ادبیاتو کښې د پراخې مطالعې خاوند دی. هغه د خوشحال خټک د ستر نومیالي فرهنګیالي پښتون مشر، شاعر او مؤلف د آثارو او د هغه د ادبي دورې په باره کښې پراخه مطالعه لري او تر شلو کلونو زیاته موده کېږي چه په دې لړ کښې کار او څېړنې کوي. د هغه څېړنې نه په افغاني ټولنه کښې په درانه نظر کتل کېږي او د یو هانو له خوا علمي ارزښت ورکول کېږي. نن د ۱۹۸۸ م کال د جون په میاشت کښې په تاشکند کښې وم. په دغه وخت کښې د هغه د دکتورا تېزس ماولوست او په ځان لازمه بولم چه د

هغه په باره کښې چېل یا ددا شتو نه په منظمه توګه دیوې نظرې
په ډول وړاندې کړم .

بیا وړی خوشحال پېژند ونکی عارف عثمانوف دخپل اثر په ترځ
کښې داووه لسمې پېړۍ د پښتو په ادبیاتو کښې د خټکو د دورې
پرشاعرۍ باندې رڼا اچولې ده . لکه څنګه چې څرګنده ده دغه دوره
په عمومي ډول د پښتو ادبیاتو او په خاصه توګه د پښتو ژبې د شاعرۍ
په برخه کښې ځانګړی مقام لري . دافغانستان دادبپوهانو په عقیده
او زمونږ د څېړنو نتیجه دا ښیي چه پښتو ادبیات په شپاړسمه او
اووه لسمه میلادي پېړۍ کښې درې عمده مرحلې لري :
(۱) روښاني ادبیات چه بایزید روښان او دهغه ملګرو او پیروانو
شاعرانو او لیکوالو لکه دولت لواڼی ، میرزا خان انصاري ، علی محمد
مخلص ، واصل ، ارزاني او نورو د پښتو ادبیاتو ، په تېره بیا د پښتو
شاعرۍ ته نوی رنګ او نوی آهنګ او نوې څېره ور وبخښله .
(۲) د خټکو دوره چه ددې دورې مؤسس پخپله خوشحال خان
خټک دی . دهغه شعرونو د کیفیت او کمیت له مخه د پښتو پانګه
ډېره زیاته او پراخه کړه . هغه په نظم او نثر کښې دګڼ شمېر تالیفاتو
څښتن دی . هغه یو اولسي مشر و ، دهغه ادبي کار او فعالیت د هغه
او د هغه د اولس له ژوند ا نه سره ټینګ ارتباط لري . هغه په شعر
او لیکنه کښې نوی مضمون پیدا کړ . په پښتو شعر کښې یې حماسي

آهنګ له جالیاتي رنګ سره یوځای کړ. د شعر ژبه یې ساده کړه
ملي او انساني محتوی یې ورته ورکړه او داسې نور.

په پښتو کښې د خوشحال خان خټک مکتب زیات پیروان وموندل
دده د خپلې کورنۍ پرلسو دولسو تنو شاعرانو سربېره نورو پښتنو
شاعرانو هم د فورم او سبک له مخه او هم د مضمون او محتوی په
برخه کښې د خوشحال خان خټک پیروي کړې ده، نو ځکه خوشحال خټک
د دې مکتب بنسټ ایښودونکی د پښتو پلار او بابا ګڼل شوی دی.

(۳) د تصوف او هومانیزم مرحله، چه ستر او مشهور نماینده
یې عبدالرحمان مومند دی، چه پښتانه یې د اخلاص او عقیدت له
مخه (رحمان بابا) بولي او په ټولو افغانانو کښې په همدې نامه شهرت
لري.

لکه چه ګورو تر اوسه پورې د دغو دریو ادبي مکتبونو
او د هغو د پیاوړو نماینده ګانو په باره کښې هیڅ او هیچېرته، حتی
په خپله په افغانستان کښې هم پراخه او ژوره هراړخیزه څېړنه
نه ده کړې او د پښتو ادب د څېړنو دنیا ورته انتظار باسي.

له نېکه مرغه د عارف عثمانوف په څېړنه کښې د خوشحال او
د هغه د کورنۍ ادبي مکتب پوره ځای اخیستل کېږي. مؤلف په دې
څېړنه کښې د خټکو د شاعرۍ عمومي اړخونه او د دې ادبي مکتب
د پیاوړو استازو پېژندنه او د هغو پر ادبي خلاقیتو نو پوره

پوره رڼا اچولې ده چه له دې خبرو سره په مطابقت، دغه څېړنه په لاندې ډول بشپړه شوې ده :

مقدمه، د تاریخي مسایلو څېړل، څېړنیز مواد پنځه فصلونه، نتیجه او مأخذونه .

لیکوال په هر فصل کښې د موضوع ماهیت پوره څرګند کړی دی . په لومړي فصل کښې مؤلف دخوشحال خان خټک د دورې عمومي مسایل څېړلي دي او د نوموړی د بډای ادبي میراث او د هغه دا دبي خلاقیت په خصوصیاتو یې رڼا اچولې ده .

په همدې فصل کښې د خوشحال خان په روباعیاتو کښې اخلاقي افکار او له فولکلور سره د هغه د شاعرۍ رابطه هم تشریح شوې ده .

په دوهم فصل کښې دخوشحال خان د روی اشرف خان هجري په ژوندانه، شاعرۍ، هنري فعالیتونو، هومانیزم او انسان دوستۍ باندې خبرې شوې دي .

په دریم فصل کښې دختکو دکورنۍ دیو بل نوميالي او پیاوړي لیکوال افضل خان چه دخوشحال خان لمسی و، پر ژوندانه او هنري فعالیتونو خبرې کېږي او په همدې فصل کښې د افضل خان یوستر شهکار (تاریخ مرصع) باندې هم پوره رڼا اچول شوې ده . افضل خان په دې تاریخي اثر کښې په اوولسمه[17] او اتلسمه پېړۍ کښې د منځنۍ آسیا، هند او افغانستان د خلکو

د تاریخي ، فرهنګي او ادبي ژوند په باره کښې معلومات ورکوي.
په څلورم فصل کښې د خټکو د کورنۍ تر لسو زیاتو شاعرانو پېژندنه او ادبي څېړنو خبرې شوي او د هغوی ادبي فعالیتونه تشریح شوي دي.

په پنځم فصل کښې د هرات د پنځلسمې پېړۍ فرهنګي ژوند ، د مولانا عبدالرحمان جامي او میر علیشېر نوايي ادبي فعالیتونه او د خټکو پر ادبي دوره باندې د دې دورې اغېزې په مفصل ډول تشریح شوي دي. په دې لړ کښې د جامي او نوايي د تصوفي لارې یعنې نقشبندیه طریقې په باره کښې هم خبرې شوی دي او مؤلف عقیده څرګنده کړې ده چه د دې طریقې تاثیر پر خوشحال خان خټک هم شوی دی. سربېره پر دې لیکلي دا هم لیکلي دي چه افغاني متصوفین او روحانیون د خپتیځ د زیاتو نورو صوفیانو په څېر انزوا پسنده نه دي. له خپلو اولسونو نه بېل او ګوښه شوي نه دي ، بلکه تل یې له خلکو سره ژوند کړی ، د هغوی د ژوندانه په فعالیتونو کښې یې سمه برخه اخیستې ده او د ضرورت په وخت کښې د هېواد او اولس د فاع او د خپلواکۍ د عادلانه جګړې میدان ته هم ور دانګلي دي، لکه : پیر روښان بایزید روښان او په راوروسته زمانو کښې مولانا نجم الدین د هډې اخوند زاده ، د

لوګر د موسهي ملا فيض محمد اخوندزاده ، ملا مشک عالم د الدهر ، د سلا ميور پاچا او دکونړ نور پاچايان .

د عارف عثمانوف له ليکنو څخه څرګنديږي چه شيخ رحمکار بابا د نقشبنديه طريقې سالک او د خوشحال خټک پير او مرشد و . د ده فکر د هغه په شعر کښې منعکس شوی دی . ليکوال په دې باره کښې د خوشحال خان له وينا وو څخه ډېر مثالونه هم ښودلي دي .

په همدې فصل کښې په شوروي افغان پېژندنه کې د لومړي ځل لپاره سيد علی ترمذي ( پير بابا ) ، شيخ رحمکار ( کاکا صاحب ) ، حاجي بهادر بابا ، جمال خان ، حضرت جي صاحب ، د څمکنو ميا عمر ، باباجي ، د ترنګزو حاجي صاحب او نورو مشهورو افغاني متصوفانو او روحانيونو په باره کښې هم توضيحات ورکول کېږي . پښه دې پاتې نه وي چه د څېړنې په همدې فصل کښې د نوابي او خوشحال د ځينو قصيدو ، لکه تحفة الافکار او نورو مقايسوی څېړنې په لېه پورې دي .

د عارف عثمانوف د اثر په باره کښې ويلی شو ، چه

لومړي ليکوال په اوولسمه پېړۍ کښې د خوشحال خان او د هغه د زوی اشرف خان ، د هغه د لمسي افضل خان او

همدارنګه دادبي مکتب د نورو ډېرو پیاوړیو استازو په سیاسي، اجتماعي، ادبي او فرهنګي فعالیتونو رڼا اچولې ده . د هغه په عقیده د پښتو ادبیاتو دې دورې داسې نادر خصوصیات لرل چه د هغې پېړۍ په هندي ژبو، ترکي ژبو او فارسي ژبو او لسونو کښې یې ساری نه درلود.

ـ تصادفي نه ده چه دا ووه لسمې پېړۍ ټولو افغاني پوهانو او ادبپوهانو د خوشحال خټک له ادبي مکتب سره ټینګ ارتباط درلود . دلیکوال په عقیده د دغو بهیرو نوعلتو نه په لاندې حقیقتونو تکیه لري:

(۱) لیکوال د دغه مکتب را مینځ ته کېدل او په هغه کې داستانو وښته والی د دغې دورې د نژادي، قومي او اولسي پوهالي څرګند وی بولي . همدارنګه لیکوال په دې مهال کښې قبیلوي دودونه او عنعنوي اړیکې هم له پامه نه غورځوي.

(۲) د خټکو کورنۍ د هند د ګورګاني سلطنت دامپراتورۍ پرضد د خپلې آزادۍ او استقلال په خاطر له نورو پښتنو قبایلو سره په یو سنګر کښې سختې جګړې وهلې دي.

(۳) څرنګه چه په هغه وخت کښې په هندي، فارسي، ترکي او عربي ادبیاتو کښې د مینې، عدل، احسان، مهربانۍ، انسان دوستۍ او ترقۍ ایډیالونه ډېر قوي وو نو د دغو اولسونو ادبیاتو دهغې

دورې پر پښتو ادبیاتو هم خپل اثر ښیندلی دی.

هو، یو ډېر مهم اصل چه د لیکوال په نظر د ختکو د ادبي مکتب پر محتوا اثر درلود، هغه د نقشبندیه طریقې هیومانیستي بهیر وچه یوازې د هند د نیمې وچې پر خلکو نه، بلکه د ختیځ پر ټولو اولسونو یې اغېزه کړې ده.

(٤) د ختکو د ادبي مکتب په پراختیا، پیاوړتوب او انسجام کښې مؤلف د ختیځ لویو پوهانو، ادیبانو او د قلم خاوندانو، لکه: کمال خجندي، حافظ شیرازي، سعدي شیرازي، عبدالرحمان جامي، عبدالقادر بیدل او داسې نورو ته توجه راګرځولې ده. ځکه چه د ختیځ د دغو لویو پوهانو او ادیبانو آثار او افکار د پښتو ادبیاتو په وده کښې ځانګړی مقام لري.

(٥) بله خبره چه لیکوال ورته د پښتو ادبیاتو په وده کښې پام اړوي، هغه له نورو ژبو څخه په پښتو ژبې د آثارو ژباړې دي. پخپله خوشحال خان هم له عربي او فارسي آثارو څخه په پښتو ژبه یو لړ فلسفي، ادبي، دیني او فولکلوري موضوعات ژباړلي دي.

لکه چه ګورو تقریباً د دې دورې ټول ادبي استاذي په عنعنوي توګه په دوو یا زیاتو ژبو پوهېدل.

پخپله خوشحال خان خټک سربېره پر خپله مورنۍ ژبه پښتو ، په فارسي ، عربي او هندي ژبو هم پوهېده او له دغو ژبو څخه یې په خپله مورنۍ ژبه ډېر آثار وژباړل ، په پښتو او فارسي یې شعرونه ولیکل او خپل زامن او لمسیان یې هم دې کار ته وهڅول . د دغه کار لړۍ تر اوسه پورې د پښتو لیکوالو لخوا روانه ده .

په دې ډول اووه لسمه پېړۍ د پښتو ژبې د کلاسیکو ادبیاتو د ودې له پاره ستر اهمیت لري چې د خوشحال خان او د هغه د وارثانو په جریکت یې تکامل کړی دی . د خټکو د کورنۍ د دغې دورې ادبي او فرهنګي میراث د ټول سوله پال فرهنګیالي پښتون اولس او پراخې افغاني ټولنې له پاره لوړ ارزښت او د قدر وړ اهمیت لري .

د عارف عثمانوف دغه علمي کار چې د دې وخت په علمي معیارونو او موازینو برابر علمي ـ تحقیقي اثر دی د پښتو ادب پوهنې له نظره سم ، ابتکاري او بې سابقې کار دی ، د خوشحال او د هغه د کورنۍ د ژوندانه او آثارو د پوره مطالعې نتیجه او د پښتو ادب پېژندنې د مرغلرو په خزانه کښې نوې با ارزښته اضافه ده چې ټولو مینه والو ، په تېره بیا شوروي پوهانو ، څېړندویانو ، استادانو ، شاګردانو او لوستونکو ته په دې برخه کښې نوې ثقه او په زړه پورې

معلومات وړاندې کوي .

په معاصر دوران کښې د شوروي ازبکستان په مرکز د تاشکند په ښار کښې د یو ازبک دانشمند په ذریعه ، د پښتو ادب پېژندنې په لړ کښې په دې لوړه سویه علمي څېړنه بې له شکه د پښتنو او ازبکو اولسونو ترمنځ د فرهنګي علایقو د هغو سیکلوړتکینو ګلو سره خوندوره میوه ده چه بوټي یې د نوائي او خوشحال خان په شان فرهنګیالانو په خپلو خولو خړوبه کړي دي .

هغه ازبک بشر دوست چه د غیاث الدین خواند میر په وینا د انسان د ټولو طوایفو ترمنځ یې د عدل او انصاف د قیام لپاره د وزارت مقام وماننه او هغه پښتون زړور خوشحال چه په « پښتونواله » ویاړي او د شجاعت په ډګر کښې « ازبکواله » د ځان لپاره مناسب مثال ګڼي ، وایي :

که مې عمر په حساب تر شپېتو تېر دی
لا په کار د سوارۍ لکه ازبک یم

( قلم جریده ، د افغانستان
د لیکوالو ټولنه ، لومړی کال ، ۱۹ ګڼه
د ۱۳۷۰ د حمل اوله )

تقريظ :

# "دخوشحال خټک سبک او په پښتو ادب د دغه سبک اغيزې"

په پښتو کښې د ادبي سبکونو يا د يو ځانګړي سبک د څېړلو اوسنودلو په باره کښې لا تر اوسه پورې کوم کتاب زما له نظره نه دی تېر شوی . په دې برخه کښې يا ځينې مقالې ليکل شوي او يا د ځينو ليکنو په ترځ کښې لنډې يا دوڼې شوي دي .

د خوشحال خټک د ادبي سبک څېړل خوبيخي يو نوی کار دی چه د سر محقق مرستيال ښاغلي عبدالواجد واجد ورته اقدام کړی دی .

په ټولنيزو مسايلو او په خاص ډول په ادبي څېړنو کښې زياتره هم دغسې کارونه نه شي تر سره کېدلی چه په ټوله معنا دا سې جامع او مانع يا شافي او کافي وي چه موضوع تر ديای ټکي کېږدي . مګر د يو کار د پيلولو ارزښت ډېر زيات دی چه د ښاغلي واجد کار د غسې ټوښت له امله ارزښت لري او د مبارکۍ او شاباسې وړدی .

د دې پروژې په لومړۍ برخه کښې د سبک د پیدایښت او په دوهمه برخه کښې پخپله سبک څېړل شوی دی، چه بنا غلي واجد دخپل اثر لوستو نکو ته په دې باره کښې د مشهورو پوهانو نوي او پخواني نظریات وړاندې کړي دي او په دې لړ کښې یې «د معتبرو منابعو په استناد د سبک او مکتب توپیر ښودلی دی، او دا یې څرګنده کړې ده چه دغه اصطلاحات په دې پروژه کښې په کوم مفهوم استعمال شوي دي؟»

دا ډېره ښه او پخه خبره ده. یو شمېر څېړونکي کله ناکله د سبک او مکتب فرق، توپیر او دهغو تر منځ مناسبتونو ته نه ځیر کېږي او سرسري فکر کوي چه دغه کسان د دغو دواړو تر منځ فرق نه مني، نو ځکه یو د بل پر ځای استعمالوي. په داسې حال کښې چه دا دواړه خو سره بېل مفاهیم دي چه خپلو کښې یو تر بله سره د «عموم او خصوص» نسبت لري. په دې معنا چه مکتب عام او پراخ دی او سبک خاص او محدود.

یو مکتب په عین حال کښې سبک هم وي، مګر هر سبک مکتب نه وي.

که دا خبره لږه نوره هم څرګنده کړو، نو ویه وایو چه هر لیکوال او شاعر خپل سبک لري، مګر دا ضروري نه ده چه هر د سبک خاوند دې د مکتب خاوند هم وي. په دې برخه کښې د سبک دخاوندانو

برخه او سرنوشت د غسې وي چه ددوی له ډلې څخه هر یو، یا دیو مکتب پیروان وي او د هغه خپل «خاص سبک» دیو عام مکتب یوه برخه وي او یا هغه پخپله یو «خاص سبک» ایجاد وي او بیا یې د نفوذ دایره پراخېږي، عامېږي، پیروان پیدا کوي او یو «مکتب» ترې جوړېږي.

ښه مثال یې پخپله خوشحال خان دی، هغه په نظم او نثر کښې د خپل «خاص سبک» خاوند دی چه له پخوانو نه زیات توپیر لري. د نورو له خوا د هغه د «سبک» د پیروی او تداوم نتیجه یو ادبي بهیر منځ ته راغلی او د دغو د پیروپیروانو له پیداکېدو سره «مکتب» ترې جوړ شوی دی. د خوشحال خان سبک د خوشحال خان مکتب هم دی، مګر د هغه د مکتب د یو پیرو سبک پخپله د هغه سبک خو دی، مګر مکتب یې بیا د خوشحال خان دی.

دا چه د سنا غلي واجد په دې خبره کښې، کله «د خوشحال خان مکتب»، او کله «د خوشحال خان سبک» اصطلاحات ذکر شوي دي دا یې ځایه کار نه دی او بیخ یې په دغه خبره کښې دی چه ما پاس عرض کړه.

د سنا غلي واجد د پروژې په دریمه برخه کښې د خوشحال د سبک ځانګړنې بیان شوې دي، په څلورمه برخه کښې پر پښتو ادب

باندې دخوشحال خان دسبک اغېزې توضيح شوي او په
پنځمه برخه کښې د خوشحال خان دادبي مکتب پيروان معرفي
شوي دي او هم دکتاب په پای کښې د نتيجه‌گيرۍ تر
سرليک لاندې په زړه پورې بحث شوی دی.

څرنګه چه دښاغلي واجد د غه علمي څېړنيزه پروژه
پوره اهميت او ارزښت لري ، ليکنه يې روانه او عام فهمه ده ،
دليک نخښو اصول يې رعايت کړي دي ، ترتيب او تبويب يې
منظم دی ، نو زه هم د محترم لاربښود استاد په څېر نوموړی
د سرمحقق د مرستيال له علمي رتبې نه د سرمحقق علمي رتبې
ته د ترفيع وړ بولم او د الله پاک له دربار څخه ورته په څېړنيزو
فعاليتونو کښې زيات توفيق غواړم .

په درناوی

د ۱۳۷۱ د ميزان ۳۰ مه

# د خوشحال خټک

## رباعيات

تر پورته عنوان لاندې د پښتو ټولنې د ادبياتو د څانګې د خپرونو په لړ کښې په ۲۹۹ مخونو کښې په ډېره ښکلې قطع او غوره صحافت سره يو کتاب د خوشحال خټک د کاليزې د نمانځنې په مناسبت چاپ شوی دی.

په دغه ښکلي اثر کښې د قلم او توري د ډګر د نامتو قهرمان او نوميالي شاعر خوشحال خټک رباعيات سره راټول کړی شوي دي او د ارځښتناکو موضوعو په څېر يو پر بل پسې پيلي شوي چه د يوه ښکلي اميل بڼه يې غوره کړې ده.

موږ لکه څنګه چه د پښتو د ادب د ډګر د نامتو پهلوان خوشحال خټک له نوم او د ده له تاريخي وياړونو سره د زړه له کومې مينه او علاقه لرو، همغسې زړه د ده غزلو او رباعياتو هم زموږ په زړونو کښې ځای نيولی دی.

خوشحال خټک په څېلو رباعياتو کښې چه په دغه اميل کښې پيل شوي،

پښتانه پتوري، مراني او پښتني پت د ساتلو او یووالي او له ظلم سره کلکې مبارزې ترڅنګ، له وطن او وطنوالو او پښتني پت او توري او مړانې سره مینه یې له پښتني ممیزاتو څخه ګڼلي او پښتانه یې له ناوړه دود دودونو څخه په کلکه منع کړي دي.

د خوشحال رباعیات د ښاغلي ځمرېن په ذریعه د دوو چاپي نسخولخه نقل شو. د پښتو ټولنې د مجلس له خوا یو هیأت وټاکل شو چه نومونه یې دا دي:

ښاغلی نوال عبدالله بختاني خدمتګار، ښاغلی محمد اسماعیل ځمرېن، ښاغلی عبدالرحیم خدران، ښاغلی ولي شاه ولي ساپی، ښاغلی حبیب الله ایرېدی او مولوي حفیظ الله میدانی عزیزی.

د هغه هیئت له دریو چاپي او دوو قلمي نسخو له مخه د هغه کتاب مقابله کړه او مشکل ځایونه او لغات یې حل کړل، ځای په ځای یې ضروري حاشیې ولیکلې.

بیا یې د رباعي د سر او آخر حرف په لحاظ ردیفونه وټاکل. بیا دوهم ځل د ښاغلي ځمرېن او حفیظ الله له خوا پاکنویس شول او بوهاند رښتین وکتل چه ښاغلي ځمرېن او شاه ولي ساپي او ښاغلي بیا هم ورسره مل کړي وو.

موږ به داسې حل کښې چه د پښتني دنیا د هغه نامتو شاعر او دپت او مړانې د لارښود ننګیالي سرخوښتالي خوشحال ځواب، پښتو ټولنې ته هم د هغه اثر د چاپولو له امله مبارکي وایو او د نورو ماسې بریالیتوبونو هیله ورته لرو.

هیواد ورځپانه – کابل

۱۳۱ ګڼه، د ۱۳۴۹ هـ ش کال د سنبلې ۱۱ مه

دخوشحال خټک
۲۸۶ م تلین

# دمحفل یاد

د دې درانه محفل به یا دشي پاتــه ترکلونو
دنوي او زلمي افغان د نسل په فکر ونو

دننګ و دغیرت او دهمت خوندې سندرې
خوشحال مونږ ته ویلي په درنو درنو شعرونو

دعزم و دایثار و قربانۍ او دپښتــو
پوهانو مونږ ته ووې دخوشحال له پیغامونو

بېشکه چه دتورې او قلم لوی قهرمان و
موندل یې څه مشکل دي دجهان په تاریخونو

لیډر و، هم افسر و، هم حکیم و هم شاعر و
اهار کښې به بهار جوړ کړو دجنګ په میدانونو

د ده د شاعرۍ او دعمل پوره ستاینــه
بیا هم نشي کېدی په دغه رنګه مجلسونو

خورا شئ چه اخلاص ورته ثابت کړو یې عمل کښي
په قبر کښي یې بنیاد کړو د عمل په سوغاتو سو

اتنک ځني نیولې کند هار پوري پښتون
د ننګ په کار کښي یو شو ای خوږو وروڼو

ننګ و کړو د خوشحال د ننګ هغلوي دعوي
په ځای کړو د پښتو او دیو والي په عزمونو

له ذره نه رابهره کړو دا مینه د پیسو
دقام او د وطن مینه سینه و پالو په زړونو

جذبه که د عمل ورسره یو ځای شي نو هله
د دې درانه محفل به یاد شي پاته تر کلونو

خوږو خویندو او وروڼو! سره یو شئ! سره یو شئ!
ځان پوه کړئ د خوشحال او باچاخان په ارمانونو

زما خویندو او وروڼو! په عزت او احترام
خوشحال یې کړئ دګرانو میلمنو په عزتونو

د هندو د ایران او شوروي له هیوادونو
دکوټي پېښور او د خیبر له اولسونو

راغلي میلمانه دي په معنا کښې دېر درانه دي
پوره دي رسېدلي دادب په معیارونو

قدم يې په ليمو منو احسان يې په اوږو
زمونږ سوغات دي يوسي د دوستۍ او سلامونو

له زړه د بختاني په ډېره مينه دي سلام وي
په پوهو غيرتي او ننګيالو زلمو او نجونو



د افغانستان راډیو تالار
د ۱۳۴۵ د اسد دېرشمه

د خوشحال ختک د ۲۸۶ تلین له نمانځو نځه
د روانېدو په شپو کښې :

# حمزه شینوارې ته !

ته په رښتیا یې د پښتو شعر و غـزل بـابـا
ګلان دې ایښي دي پښتو ته په اوربل بـا بـا

ته له پښتو سره جنت ته ځې پښتون شاعـره !
تا په پښتو کښې کړو پیدا نوی مضمون شاعره !

هر کله راشې دا دې کوردی د پښتو مېنه د ه
دا د خوشحال غونډې د لویو ننګیالو مېنـده

او س چې ته ځې، په خیر دې لاړ شې دخیبر په لوري
زمونږ د زړه و نو مینه یوسه پېښور په لـوري

د اباسیند څپو ته وایه له آمو نه سـلا م
د پېښور په پښتنو د بختانـي احـترا م

○ ○ ○

د کابل هوټل
د ۱۳٤۵ د سنبلې ۱۳ مه

د خوشحال خټک د ۲۸۶م تلین لمانځنې
د رخصتېدو په موقع :

# اجمل خټک ته!

دلبوني قام په نظر کښې لېونی شاعره !
د قام له پاره تذرانه او سپېلنی شاعره !
د خوشحال خان د کور لخه فرهنګیالي شاعره !
ای پوهیالیه ! نومیالیه ! ننګیالی شاعره !

پس له کلونو انتظار نه، ته ميلمه شوې زمونږ
خنکه بنه کاروو، نور دستر کو زور د زړه شوې زمونږ

او س چه ته حُیُ الله دې مل شه، یې ملګري د قام
خپلو ملګرو ته وایه د مونږ سلام احترام
په مينه مينه دې ښتو او ديو والي پيغام
له آمو سيند او کابل سيند نه اباسيند ته سلام

د شاعرۍ په ژبه یو سه ای اجمل خټکه !
د بختاني د زړه راز ونه ای اکمل خټکه !

○ ● ○

کابل هټل
د ۱۳۴۵ د سنبلې ۱۳مه

# فقیر جمیل بیګ

جمیل بیګ د شهباز خان خټک زوی د پښتو د مشهور ستر شاعر د توري او قلم خاوند خوشحال خان خټک سکنی ورور دی . خوشحال خان خټک په خپلو شعرونو کښې د ده یادونه او ستاینه کړې ده . په یوه قصیده کښې چه په ۱۰۸۰ هـ ق کال کښې ویل شوې ده ، وایي :

یو مې سکه ورور دی چه حق لاره یې نیولې
دوه ورونه مې نور دی یو په نم دویم یې نمه

د تاریخ مرصع دلیکنې له مخه کله چه شهباز خان شهید شو (۱۰۵۰ هـ ق) نو دی هم له پلار سره زخمي شوی و . ورور سره سور شو . په اکاخیلو راغی ، قتل عام یې وکړ ، د پلار خون یې واخیست ، تر دې وروسته یې فقیري غوره کړه . خپل ټول شته یې په فقراء وویشل او له خپلې خیلخانې سره د چشمې درې ته لاړ . په دې ځای کښې له یوې چینې پرته نور

هيڅ وداني نه وه .

دی دشيخ رحمکارکاکا مريد و . هميش به دهغه په خدمت کښې حاضرو . وروسته يې بيا په هغه دره کښې چه دی اوسيده يو مسجد او يوه حجره جوړه کړه . په حجره کښې قرآن شريف او د فقهې څو کتابونه وو .

جميل بيګ دشيخ رحمکار خټک مريد دی . په « بياض » کښې دخوشحال خان دليکنې له مخه دشيخ رحمکار تر پنځوسو شپېتو پورې خاص مريدان اوماذونان وو چه هريو د کمال مرحلې ته رسيدلی و . خلکو ته يې ارشاد کاوه او په وينا کښې يې تاثير و . يوله هغو څخه شيخ جميل بيګ و .

شيخ جميل بيګ په خپله هم زيات مريدان درلودل او دهغو په لړ کښې ماذونان او دشهرت خاوندان هم وو . له هغو څخه شيخ يحيی دی چه په ( حضرت جی اتکی ) مشهور او د نقشبنديه طريقې پير او ماذون و او په چشتيه طريقه کښې د فقير جميل بيګ خټک مريد و .

تاريخ مرصع ليکي : « ګاه په وخت د مستۍ کښې شبه داريا او دپ (۱) او سندريو او سماع يې کاوه . »

(۱) دپ = دف .

عبدالقادرخان خټک یې د مستۍ، شور او جذبې ستاینه کړې ده :

په خلفاوو کښې یې مست فقیر جمیل و
صاحب حال و مستانه بې قال وقیل و
ابراهیم غوندې خانې میرې یې پرېښوه
په اختیار یې فقیرۍ ته غاړه کښېښوه

* * *

کېدی شي چه له ابراهیم نه د عبدالقادرخان خټک مطلب ابراهیم ابن ادهم بلخي د هجري دوهمې پېړۍ مشهور عارف او روحاني وي چه هغه له همدغې مشرۍ او میرۍ نه فقیرۍ ته اوښتی مدی . د هغه نوم د مشهورو شاعرانو : مولانا جلال الدین بلخي ، میرزا عبدالقادر بیدل ، صایب او نورو په شعرونو کښې هم راغلی دی . (۱)

(۱) ابراهیم بن ادهم بلخي زموږ د هېواد اوسېدونکی مشهوره روحاني څېره ده . د هغه د سیرت او اخلاقو په باره کښې هم د تذکره لیکونکو او هم د شاعرانو په آثارو کښې زیات روایات راغلي دي . افغاني معاصر شاعر الحاج محمد ابراهیم خلیل د « شرح حال ابراهیم ادهم عارف گسردون قباب » په باره کښې رساله لیکلې ده چه د ابجد په حساب ۱۳۸۶ ه ق کېږي او د رسالې د چاپ کال دی . په دې رساله کښې له شلو نه زیاتو تذکرو او مأخذونو نه استفاده شوې ده لکه : د شیخ فریدالدین عطار تذکرة الاولیاء ، د مولانا جامي نفحات الانس ، د محمد داراشکوه سفینة الاولیاء ، د مفتي غلام سرور خزینة الاصفیاء ، د شیخ علي بن شیخ عثمان الهجویري الغزنوي کشف المحجوب او نور .

فقیر جمیل بیگ د مستۍ او جذبې په وخت ځینې منظومې هم ویلې دي چه نمونې یې قاضي میر احمد شاه په تحفة الاولیاء کښې راخیستې دي، لکه دا:

په دې خوړکښې سره او سپین انبار انبار دي
فقیر نه اخلي او نه یې څه په کار دي
آخون ځالاک څومره چه اخلي وادې خلي
که خواره نه وي دی دې نه وي

* * *

که قاضي صاحب زما په شان مست شي
نو دده زما به هله شریعت شي
منارکېږي که نه وي نه وي
د فقیر به څه وي څه وي

* * *

تېک دې وي چار ګل دې وي
او پېزوان که نه وي نه دې وي
حلال دې وي تل دې او سي
علي خان که نه وي نه دې وي

* * *

قحط سالي ډېره په زور ده
پرېوتلي کور په کور ده
یاران دي واوړ ینه
او څو کمه که نه وي نه دي (وي)

* * *

په دې ډول شیخ جمیل بېک یا فقیر جمیل بېک یو روحاني شخصیت و چه په نظم او نثر کښې یې لیکنې کړې دي .
د هغه په تألیفاتو کښې د ا کتابونه هم یاد شوي دي:

۱- تذکرة الاولیاء
۲- نور محمدیه
۳- خلاصة الطالبین
٤- شمس العارفین
۵- اسرار العاشقین
٦- زبدة السالکین
۷- تحفة المقربین
۸- قدوة العارفین او نور.

د شیخ رحمکار کاکا په منقبت کښې د جمیل بېک تالیف چه په فارسي نثر دی د افغانستان په ملي آرشیف کښې خوندی دی او په ۱۳٦۵ هـ ش کال چاپ شو

دجمیل بیګ مزار ، دڼکی او تنکاړو ته نژدې ، د دواړو ترمینځ د پېښور د نوښار د ختکو په علاقه کښې دی او د مزار په ډبره یې د مړینې تاریخ ۱۱۱۶ هـ ق کال لیکل شوی دی. (۱)

( پښتانه شعراء ، پنځم ټوک ، کابل د ۱۳۶۷ هـ ش کال چاپ )

(۱) دزیات تفصیل لپاره وګورئ :
زلمی هیوادمل ، دخوشحال خټک دفراقتامي تحلیلتاسلسله ، کابل د ۱۳۶۳ هـ ش چاپ او د عقیدت ګلونه ، مقدمه ، کابل ، ۱۳۶۳ هـ ش او هغه کتابونه او ماخذونه چه په متن کښې یاد شوی دی.

# هجري

د خوشحال خان اول اولاد اکبرخان زېږېده چه په اووه ورځني کښي مړ شوی دی . اشرف خان دهغه دوهم زوی دهغه تر ټولو اولادو تر مشر دی چه په ۱۰۴۴ هـ ق ۱۶۳۵م د سرای په اکوړه کښي زېږېدلی دی.

اشرف خان هجري په علمي ، سیاسي او ادبي لیاقت کښي پلار ته نژدې دی. هجري له یوې خوا نه ښه شاعر، عالم او فاضل سړی و او له بلې خوا نه ښه زړور او توریالی هم و. په قوم کښي تر نورو ورونو د هجري زیات رسوخ و او پر ده د هغو زیات اعتماد موجود و.

د ده د جنګیالي طبیعت دا تقاضا وه چه په دولس کلنۍ کښي د خپل نیکه بهادرخان ( د خوشحال خان ترۀ ) په ملګرتیا د بنګښو په خلاف په یو جنګ کښي شامل شو.

د خپل پلار خوشحال خان خټک په قیادت او د خپلو ورونو

بهرام خان او سعادت خان او نورو په ملګرتیا یې هر وخت په جګړو کښې برخه اخیستې ده . دهغه وخت په سیاسي فعالیتونو کښې هم دده برخه څرګنده ده . مثلاً کله چه خوشحال خټک دحکومت له خوا بندي شو او اشرف خان هجري خبر شو ، نو دخپل پلار د سلا او رضا نه پرته دخوشحال خان د خلاصي له پاره دکابل صوبه دار سید امیرخان خوا ته ورغی ، خو ددې پرځای چه سید امیرخان دهغه سفارش ومنلی وای هغه یې هم ګرفتار کړ، مګر څرنګه چه دخوشحال خان په بندیتوب په خټکو کښې عکس العملونه پیدا شو ، نو سید امیر خان خپه موده وروسته اشرف خان هجري خوشې کړ.

د وخت له ګورګاني حکومت سره د پښتنو د پرله پسې جګړو څخه په ترڅ کښې اشرف خان هجري په ډېرو جګړو او معاملو کښې برخه اخستې وه او څو ځله بندي شوی او خوشې شوی دی ، څو چه په پای کښې خپل ورور بهرام هغه د اورنګزیب په چنګ کښې ورکړ او ددکن د بیجاپور او ګوالیار په زندانو کښې بندي شو . هلته یې څوارلس کاله قید تېر کړ. په قید کښې مړ او تر ابده پورې دګورستان بندي شو.

اشرف خان هجري دخپل پلار د وفات (۱۱۰۰ هـ ق) په شپږم کال کښې مړ شوی او د وفات د تاریخ ماده یې «غم اندوه» ده.

د هغه وخت یو شاعر آزاد خان په دې باره کښې د خپل زړه «غم اندوه» داسې څرګنده کړې ده:

د هجرت یې زر سل شپږ و
اشرف خان وفات شویا ره
«غم اندوه» د ده تاریخ دی
که حساب کړې و یې شماره

اشرف خان هجري د خپل وخت منلی شاعر و چه د هغه وخت حالات د هغه په شعر کښې انعکاس موندلی دی او وروسته شویو حالاتو یې شعر ته یو خاص رنګ ورکړی دی.

د ژوند د یره برخه یې په قبیلوي جګړو او وروستۍ برخه یې له ګورګاني سلطنت سره په آزادۍ غوښتونکو مبارزو او وروستي څوارلس کلونه یې د وطن نه لیرې د یر دیسې په حال کښې د دکن په زندانونو کښې تیر شوي دي. د دکن په زندانونو کښې د روه د غه خوشنوا بلبل په خپله اسیرۍ، بې وسۍ او بې اوازۍ د سوز و ساز، درد او ګداز نه ډک شعرونه ویلي دي. کله چه د وطن په یاد او د محبوب په هجران کښې یې کوې ساندې، آهونه او اسویلي کړي دي هغه د پښتو ادب د تراژېدي شاعرۍ یوه دردناکه برخه ګرځېدلې ده چه د مضمون د دغه درد او سوز سره د شاعر

د لفظي او فورمي کمال د يو ځای کېد و په صورت کښې اشرف خان هجري ته د شاعرۍ لوړه درجه حاصله شوې ده .

د اشرف خان هجري شعرونه اکثر پښتو دي او په فارسي کښې يې هم طبع آزمايي کړې ده او څه شعرونه يې ويلي دي .

د اشرف خان هجري څو شعرونه د راورټي په ګلشن روه کښې هم راغلي دي چه د انګرېزۍ ترجمه يې هم د راورټي له خوا چېره شوې ده .

( د ديوان اشرف خان هجري ) په ۱۹۵۸ م کال په پېښور کښې د سناغلي همېش خليل په مقدمه او زيار په ۶۰۸ مخونو کښې چاپ شوی دی .

نوموړي د غه چاپي ديوان د دريو قلمي نسخو له مخه ترتيب او تدوين کړی دی . چه يوه نسخه يې د مردان د کړي کپور د ولي محمد خان په لاس او بله نسخه د « ادبي ټولني پېښور لايبريرۍ » په ذريعه او دريمه نسخه د کوهاټ د خان بهادر محمد رفيق خان په واسطه سناغلي همېش ته رسېدلې وه .

د اشرف خان هجري د ديوان يوه قلمي نسخه په برټش موزيم کښې تر ۲۸۰- او - آر لمبر لاندې خوندي ده . چه د پادري هيوز د ليکنې له مخه « د دغې نسخې اشعار د نوموړي يا دري تر نظر لاندې ديوې بلې اصلي نسخې له مخه اخيستل شوي دي چه هغه نسخه بيا د پېښور د جمالګړي افضل خان پورې اړه لري چه هغه د شاعر

له لمسيانو څخه دی .»

مونږ داسې فکر کولی شو چه د افضل خان د جمالګړي نسخه، به هماغه نسخه وي چه دده په کورنۍ کښې د میراث په توګه پاتې او بالاخره مرحوم محمد رفیق خان خټک ته رسیدلې ده او هغوی ښاغلي همېش خلیل ته د استفادې له پاره ورکړې ده .

دا نسخه ښاغلي همېش «زیاته مکمله او صحیح نسخه» ګڼلې ده او پادري هیوز هم د خپلې نسخې اصل (اصلي نسخه) بللې ده

( د کلید افغاني تعلیقات )
کابل- د ۱۳۵۶ هش چاپ

# «اشرف خان هجري»

## د عارف عثمان اثر

د پښتو په کلاسیکي ادب کښې خوشحال خټک (۱۰۲۲-۱۱۰۰ هق) لوی نوم او نښان لري چه په نظم او نثر کښې یې زیات آثار لیکلي دي. او آثار یې د کمیت او کیفیت، مضمون او محتوی له مخې خورا قدر او ارزښت لري.

د خوشحال خان په ستره او درنه کورنۍ کښې نور ستر درانه شاعران او شاعرانې هم پیدا شوي دي، چه د هغوی آثار د پښتو ادب یو درنه ارزښتمنه برخه ده. نو ځکه پخپله د خوشحال خټک او د هغه د کورنۍ د افرادو او آثارو شهرت،

هم په افغاني ټولنه او هم په نورو هېوادونو او اولسونو کښې ډېر زيات ټوپراخ دی .

موږ حق لرو چه خوشحال خان خټک د پښتو دادب د آسمان ځلانده لمر او د هغه دکورنۍ شاعران او د ادبي لارې پيروان رانه ستوري وګڼو چه پلوشې يې په ختيځ او لوېديځ کښې د نړۍ کوټ کوټ ته رسېدلې دی .

موږ ته دوياړ ځای دی چه دخوشحال شعرونه ، داروپا په ډېرو ژبو ترجمه او خپاره شوي دي. او موږ له دې نه هم خبر يو چه زموږ د ګاونډي هېوا د ستر شاعر علامه اقبال لاهوري دخوشحال خان خټک د سلو منظومو يوه انګرېزي ترجمه په غور لوستې ده او د هغې په اثر يې خوشحال خان د افغان اولس حکيم او افغان پېژندونکی شاعر بللی دی. داسې شاعر چه داقبال په وينا (څرګې وينې يې له ډاره هغه وايي ). موږ دا کتلي او څېړلي دی چه ډاکټر اقبال د پښتون شاعر خوشحال د شعر په خوږ و باندې خپل شعر ښکلی او خوندور کړی دی .

هغه د ذوق او شوق خاوندان چه د دې خوږ و له څکلو سره مينه لري ، موږ يې د ( ننګيالي پښتون ) کتاب ته رابولو چه هلته د ( د خوشحال او اقبال د اشعارو مشترکې څواوې ) ولولي او که په اردو ژبه پوهېږي بيا نو د عبدالصمد خان د تأليف (خوشحال اور اقبال)-

له کتابه دې خوند واخلي.

يوازې په افغاني ټولنه کښې نه، بلکه په غربي نړۍ او هم په شرقي اروپا کښې د ذوق، څېړنې او مطالعې خاوندانو د خوشحال او د هغه د کورنۍ شاعرۍ سره زياته علاقه ښودلې ده، څېړنې يې ورباندې کړې دي او ترجمې يې په خپلو ژبو خپلو اولسونو ته وړاندې کړې دي.

وړم کال چه زه مسکو ته تللی وم د علومو د اکاډيمۍ د ختيځ پېژندنې علمي کارکوونکو په مينه مينه او په ډېر فخر ماته د توري او قلم خاوند خوشحال خان خټک د انتخابي شعرونو نوې مجموعه راکړه چه په روسي نظم ترجمه او چاپ شوې وه. هلته داسې کارونه ډېر شوي دي او ډېرو څېړونکو د خوشحال پېژندنې په باب څېړنې کړې دي.

ښاغلي دوکتور عارف عثمانوف د ازبکستان مشهور افغان پېژندونکی د خوشحال خټک او د هغه د کورنۍ د شاعرانو پر ژوند او آثارو باندې ډېر کار کړی دی، ډېرې مقالې يې ليکلې دي. په کابل کښې يې د خوشحال خټک په تېرو درېوو ښوو سيمينارونو کښې يې فعاله برخه اخيستې او وينا گانې کړې.

(خوشحال خټک او د ده ادبي مکتب، د عارف عثمان لوی تحقيقي اثر دی چه په ۱۳۶۱ هـ ش کال په پښتو ژبه په کابل کښې چاپ شوی دی.

دا رساله چه ستاسو په لاس کښې ده، د نوموړي مؤلف د کارونو یوه با ارزښته برخه ده چه د اشرف خان هجري په ژوندانه او آثارو پورې اړه لري. په دې رساله کښې لیکوال د افغانستان د خلکو او اولسونو د فرهنگي میراثونو د مطالعې او څېړلو په برخه کښې یوه په زړه پورې ګټوره څېړنه وړاندې کوي چه د هغې په ذریعه غواړي د دې وخت پښتانه لیکوال او څېړونکي هغو اساسي ټکو ته متوجه کړي چه دوی باید د ادبي ـ تحقیقي کارونو په ترڅ کښې په پام کښې ولري. دی د داسې څېړنو د یوغوره او لارښود مثال په توګه هغه څېړنې وړاندې کوي چه د روسیې د ستر لیکوال لیوتولستوی (۱۸۶۱ ـ ۱۹۰۲م) په باره کښې دی.... د پښتو او د بیا تو محققان ښه پوهېږي چه د تولستوی او خوشحال خټک د ژوندانه او خلاقیت په یو شمېر اړخونو کښې زیات ورته والی لري....

ښاغلی دوکتور عثمانوف په خپله رساله کښې د اشرف خان هجري او د هغه د آثارو د مطالعې او څېړنې په باب ګټور معلومات ورکوي. بیا د نوموړي شاعر زمانې ته یو مختلند نظر اچوي. د هغه د ژوندانه کیسې کوي او آثار یې ښیي. په آثارو کښې یې وطن پالنه، عشق او مینه، اخلاقي او اجتماعي اړخونه او انتقادي برخې څرګندوي او دا موضوع هم پېټه نه ساتي چه هجري د شعر او شاعرانو په باب څه نظر لري؟

د رسالې لیکوال د اشرف خان هجري په بدیعي مهارت
باندې په ښه مهارت بحث کوي او د هغه د شعر وېش یو بل مهم
اړخ څېړي چه هغه په شعر کښې له فولکلوڅخه کار اخستل دی. هغه
کار چه د شعر خوند او ښکلا یو په دوه کوي او د شعر محققانو
لپاره د کار او څېړنې په نیمه پوړۍ موضوع ده.

د محترم عثمانوف دې رسالې ته هم مونږ د ده د کار وسنو
او څېړنو په شان په درانه نظر ګورو. ده ته زیات ژوند،
روغتیا او فراغت غواړو چه نور هم په د غسې شریفانه چارو
کښې بریالی و اوسي.

اوس اوس چه د اشرف خان هجري سیمینار جوړېږي، متاسفانه
پخپله عارف پکښې حاضر نه دی او مونږ په دې خبر کښې د هغه له
تورو نویو څېړنو نه بې برخې یو، داپوا ژې په ځای او غوره خبره
نه، بلکه زما په نظر ضروري او اهم کار دی چه د نو موړي محقق
د غه رساله په د غه مناسبت خپره او توزیع شي. په درښت

کابل - د ۱۹۸٦ د جنوري شلمه

یادونه:

د اشرف خان هجري د دری سوم تلین په مناسبت د دوکتور عارف عثمانوف څېړنیزه
رساله (اشرف خان هجري) د افغانستان د علومو اکاډیمۍ د ژبو او ادبیاتو مرکز
کال مجلې ته خپره شوله. د مجلې د مسئول مدیر ښاغلي نور محمد سهیم په غوښتنه ما د غه
لیکنه پېرته وکړه او له رسالې سره د نوموړې مجلې د ۱۳٦٤ هـ ش کال د حوت
په ګڼه کښې خپره شوه.

# عبدالقادرخان خټک

عبدالقادرخان خټک د نومور خوشحال خان خټک زوی دی. د پټې خزانې په روایت د ۱۰۶۱ هـ ق د جمادی الثاني په ۲۳مه زیږېدلی دی. مګر ورو ستیو څېړنو ثابته کړې ده چې د ۱۰۶۳ هـ ق د ذوالحجې په ۲۳مه (۱۶۵۲ م دسمبر) کښې زیږېدلی دی او (عبدالقادرخان) د ده د زیږېدو د تاریخ ماده ده چې د ابجد په حساب (۱۰۶۳) ترې راووځي.

تعلیم او تربیت یې د خپل پلار په لاس شوی دی.

په داسې حال کښې چې خوشحال خان پخپله د توری او قلم خاوند وو او دا میراث یې کورنۍ ته پاته و، مګر عبدالقادر پرته د څو موقعو نه چې له پلار سره د مرستې په توګه په ځینو جګړو کښې شامل

شوی و ، نورو ملکي او سیاسي معاملو، یا دوخت له حکومت سره دملازمت ، موافقت یا مخالفت په لړ کښې ډېر څه نه دی کړي.

د هغه تمایل تصوف او روحانیت خواته زیات و او دخپل وخت یو بزرګ عارف حضرت شیخ سعدي لاهوري ته راجع شوی و او د هغه ارشاد او تلقین ورباندې اثر کړی و ، تر دې چه دخپل پیر د خلافت په خرقه هم نمانځل شوی و . وايي چه شیخ سعدي د عبد القادر ته او دخوشحال خان دورور جمیل بیګ ذوم و . او جمیل بیګ هم فقیر او روحاني سړی او د شیخ رحمکار کاکا صاحب مرید او خلیفه و .

عبد القادر خان یقیناً له خپل تره نه هم روحاني فیض مونده و . عبد القادر خان دخوشحال خان خټک تر مرګ وروسته په ۱۱۱۳ هق د خټکو له خوا کابل ته راغلی و او دکابل او نورو ښارو تېر بد و خیر ې یې کولې ، په هندوستان کښې یې هم عمرونه تېر کړي دي .

د عبد القادر خان د وفات په باره کښې محمد هوتک په پټه خزانه کښې لیکي :

« او س چه دغه کتاب تالیف کوم ، ماته نه ده ښکاره چه دا خان به وفات شوی وي او که نه ، خو هسې ګنم چه وفات شوی به وي ... »

پټه خزانه په ۲ - ۱۱۴۱ هق کښې تالیف شوی ده .

دعبد القادر ختک دغه آثار مونږ ته پاتې دي:

۱- د اشعارو دېوان: چې (د عبد القادر خان ختک د دېوان) په نامه، ۱۳۱۷ هـ ش د پوهاند عبدالحی حبیبي په مقدمه او زیار په کندهار کښې او په ۱۹۶۷م د همېش خلیل په ترتیب او تدوین په پېښور کښې او حدیقه ختک (د دېوان عبدالقادر خان ختک) په نامه په ۱۹۶۹م د سید انوارالحق په مقدمه او زیار په پېښور کښې چاپ شوی دی.

۲- یوسف زلیخا: د مولانا عبدالرحمان جامي د یوسف زلیخا منظومه پښتو ترجمه ده چې په ۱۱۱۲ هـ ق کال نظم شوې ده.

دا کتاب د لومړي ځل له پاره په کابل کښې د امیر عبدالرحمان په حکم او فرمان په ۴۵۹ مخونو کښې چاپ شوې دی. بیا په پېښور او نورو ځایونو کښې هم چاپ شوی دی.

۳- ګلدسته: دا د سعدی د ګلستان ترجمه ده چې پخپله عبد القادر خان ورباندې «ګلدسته» نوم ایښی او په ۱۱۲۴ هـ ق لیکل شوې ده.

دغه کتاب په ۱۹۶۱م کال د سیاعلي خیال بخاري د مقدمې او د مولانا عبدالقادر پېښ ندګلوی په پېښور کښې چاپ شوی دی.

٤- نصیحت نامه: خوږ او سلیس مثنوي د تجنیس په صنعت لیکل شوی دی. دا نصیحت نامه نه موندله کېږي او یوازې د سر پنځه بیتونه یې چه په یوه دیوان کښې لیکل شوي وو، پوهاند عبدالحی حبیبي نقل کړي او (د عبدالقادر خان خټک دیوان) کښې یې چاپ کړي دي.

٥- قصیده برده: دا د عربي مشهورې قصیدې پښتو ترجمه ده. یوه قلمي نسخه یې په برېټش موزیم کښې تر ۴۲۳۳ لمبر لاندې خوندي ده.

څېنو نورو پښتنو شاعرانو هم دا قصیده په پښتو نظم ترجمه کړې ده.

د عبدالقادر خټک، ملا شرف او محب الدین ترجمې د عربي متن سره یوځای په ۸۸ مخونو کښې د پېښور د قصه خوانۍ د کتابونو تاجرانو (چهجو سنګ او کهړک سنګ) له خوا د لاهور دانارکلي په مطبعه کښې چاپ شوې دي.

دا نسخه د محمد سعید په کتابت لیکل شوې او د هغه په پای کښې یې لیکلي دي چه دا نسخه له دوو شروحو او قلمي نسخو نه لیکل شوې ده. که څه هم له بده مرغه د پېښور او لاهور چاپ په دېرو پښتو چاپي کتابونو باندې نېټې نه وي لیکل شوې، خو په دې کتاب باندې بیا درې نېټې لیکل شوې دي؛

الف: دکتاب په لومړي مخ، چېرته چه دکتاب نوم بیه تزیني او هنري توګه چاپ شوی دی ۱۳۴۵ هق ۱۹۲۷ م.

ب: د قصیده بړده دمتن پای کښې د ۱۳۵۳ هق د ربیع الثاني ۲۶ مه (۸۵ مخ)

ج- دناشر یا کاتب له خوا (د قصیده برده داسنا دو) دختم او نقول کتاب پای. یوم شنبه میاشت درمضان (۸۸ مخ) معلومېږي چه دکتاب اول مخ کښې د اول چاپ نېټه ده، چه بیا په دوهم چاپ کښې هم ترې کارا خیستل شوی. او دوه ورستي نېټې د کاتب د کار نېټې دي، چه سمدستي بیا کتاب هم چاپ شوی دی.

۶- څلوېښت حدیثه: د پنځه سوو بیتونو په شاوخوا دحضرت محمد (ص) د څلوېښتو حدیثونو ترجمه ده.

داکتاب پوهاند حبیبي لیدلی او دري بیتونه یې د نمونې په توګه د عبدالقادرخان خټک د دیوان په مقدمه کښې چاپ کړي دي.

۷- آدم خان اودرخانۍ: دا د پښتو یوه مشهوره فولکلوري کیسه ده. انګرېزی ختیځ پوهاند مستر راورټي په خپل پښتو ګرامر کښې لیکي چه عبدالقادرخان دآدم خان درخانۍ کیسه نظم کړې ده او څه مثالونه یې هم ترې نقل کړي دي.

سربېره پر دغو کتابونو عبدالقادرخان خټک نور پښتو آثار هم لیکلي چه له بده مرغه اوس ورک دي. مستر راورټي لیکي چه ده (۶۰) جلده کتابونه تالیف کړي دي مګر اوس موږ ته ترپوره او دکتابونو نورڅه نه دي معلوم.

(دکلیدافغانی تعلیقات)

# صدرخوشحال

صدرخان خټک دخوشحال خان خټک زوی په ۵-۱۰۶۴ هـ ق
یا ۱۰۷۰ هـ ق کې زیږیدلی دی .

دخوشحال خان د وینا له مخې ، په ۱۰۹۱ هـ ق کښې یې د
دودې په هغه جنګ کښې برخه واخستله چه دخوشحال خان په
مشرۍ دخټکو او بنګښو تر منځ شوی و . خوشحال خټک وايي:

صدرخان لاچیرې جنګ لیدلی نه و
په دا جنګ یې نېزه سره کړه په خصام

صدرخان دجنګ دفن زده کړه دخپل پلار نه کړې وه
او دا اول جنګ و چه صدرخان پکښې ګډون کړی و .

په تاریخ مرصع کښې د مختلفو جنګونو په سلسله کښې دده
نوم یاد شوی دی او غالبًا د همدې قابلیت له مخې په الاچي
او بهرې کښې دفوځدارۍ په عهده مقرر شوی و او په ۵-۱۱۰۴
هـ ق کښې دالاچي فوځدار ثابتېږي .

دا هغه وخت و چه خوشحال خان مړ و . د تېرې ... د

فوځدارۍ د وخت کیسه افضل‌خان خټک په تاریخ مرصع
کښې داسې لیکي:

«صدرخان مې د ټېرۍ فوځدار کړ. فوځ مې ورسره کړ. نیم ماهه طلب مې د ده د خرڅ د پاره پیشکي ورکړه چه د روړمه بهرام خارج کړه او ته په ټېرۍ عمل کړه. د ابدبخت منافق چه هورې ورغی د بهرام سره یې اتفاق وکړ، زما فوځ ځني جدا شه..»

بهرام د خوشحال‌خان هغه زوی وچه ځنیل پلار سره وران و. صدرخان په ۱۱۲۰ یا ۱۱۲۱ هرق کښې د ټېرۍ فوځدار شو او په د غه وخت کښې یې د افضل‌خان پر ه پرېښود له او له بهرام سره ملګری شو.

صدرخان د پښتو ژبې ښه شاعر و، د اشعارو د دېوان خاوند و چه متاسفانه اوس یې پته نه لګېږي او وایې چه د نظامي ګنجوي مشهور رومان «خسرو شیرین» یې هم په پښتو نظم اړولی دی.

د صدرخان خټک دوه اثره چاپ شوي دي:

۱ـ دلی او شهی، په ۱۱۱۸ هرق کښې لیکل شوی ده. دې کیسې باندې سیا غلي خیال بخاري مقدمه لیکلې ده او د پېښور پښتو اکاډیمه له خوا چاپ شوی ده.

۲- آدم درخانۍ، د اکیسه په ۱۱۱۸ هـ ق کښې لیکل شوی
ده او د ښاغلي محمد نواز طائر په مقدمه په ۱۹۵۹ م کښې
د پښتو اکیډیمۍ (لخوا) چاپ شوې ده.

لکه چه معلومه ده دا دواړه کیسې د خوشحال خټک له
مړینې (۱۱۰۰ هـ ق) نه وروسته لیکل شوي دي.

۳- د صدرخان خټک بل اثر (معجزات) نومېږي.
یوه قلمي نسخه یې له ښاغلي حبیب الله رفیع سره ده چه ۵۸
پاڼې لري او ۱۴۰۰ بیتونه دي.

د دې نسخې اصلي وروستی پاڼه نشته او یوه پاڼه
په بل لیک، مگر په هماغه کاغذ ور سره موجوده ده. نو ځکه
د اصلي نسخې لیکونکی او د لیکلو نېټه یې نشته، مگر همدغه
نسخه د غلام محمد ګګیاڼي د یو بل منظوم اثر (تفسیر والضحی)
سره یو ځای په یوه ټوک کښې ګنډل شوې ده او دواړه په یو لیک دي.
(د تفسیر والضحی) په پای کښې د هغه لیکونکی ځان (خیرالله
ساکن بلده ټنه) او د کتاب د لیکلو نېټه د ۱۱۷۵ هـ ق د یېزرګۍ د
میاشتې ۲۹ مه ښودلې ده. د لیک، کاغذ او صحافت د یو ډول والي
له مخه مونږ د صدرخان خټک د معجزاتو د نقلونکی هم خیرالله
او د هغه د لیکلو کال پورتنۍ نېټه منلی شوو.

د معجزات د سر بیتونه:

حمد ثنا به د احمد کړم
چه په نعت یې د احمد کړم

چه کثرت خواهش احد کړ
له احده یې احمد کړ

او د پای بیتونه:

داکتاب چه آخر تم وه
ماه روژه وه دویشتم وه
دا تصنیف صدر خوشحال کړ
توفیق درب چه دی یې قال کړ

( د کلید افغانی تعلیقات )

# سکندر خان خټک

سکندر خان خټک دخوشحال خان خټک زوی دی.
دده د زېږېدلو او مړېنې نېټه لا نه ده څرګنده شوې
مګر دده له يو شعره دده د زېږېدو کال اټکلولی شو.
دی وايي:

زما دوه ویشت کاله ژوند دی
زر او نوي سن د هجرت دی

يعني دی چه په ۱۰۹۰ هـ ق کښې (۲۲) کلن وي نو ۱۰۶۸ هـ ق
۸-۱۶۵۷ م دده د زېږېدو کال ګڼلی شو.
په دې حساب به د ۶ کالو وچه د ۱۰۷۴ هـ ق دجما دی الثانی
جنوری ۱۶۶۴ م کښې خوشحال خان ونيولی شو او هندوستان ته
بوتلی شو. وروسته له هغه د بادشاه دافرمان و چه دخوشحال
کورنۍ دې ديرغمل په توګه هندوستان ته راوستلې شي، خو
د دوی کورنۍ ديوسفزو د علاقې سيکرې ته او بيا د بائيزو

د ټیټي سکګا و نوي ځای ته ولاړله . په دي وخت خوشحال خان
دخپلې کورنۍ په فراقنامه کښې سکندر داسې یا دوي :

هغه ملک وا یه ثمر دی
چه پکښې زما سکندر دی

د دې یادونې شاعرانه افاده دا ښوي چه شاعر حقیقتاً
خپل یو په زړه پورې ماشوم زوی یا دوي .

تر دې وروسته تر ډېرې مودې پورې د سکندرخان حالات
معلوم نه دي . کله چه له مغلو سره د جنګ په دوران کښې خوشحال
خان تیراه ته تللی و ، نو سکندرخان هم ورسره و (۱۰۸۵ هق)
په ۱۰۸۹ هق کښې له یوې مؤقتي سولې نه وروسته ، د صوبه دار
امیرخان په وینا خوشحال خټک کابل ته راغه ، مګر په لاره کښې د
ننګرهار د فتح آباد نه بېرته ستون شو ، په دې سفر کښې هم
سکندرخان ورسره و .

په ۱۱۰۰ هق کښې خوشحال خان مړ شو او تر هغه وروسته
نو دا فضل خان خټک (د اشرف خان هجری زوی دخوشحال خان لمسی)
او د بهرام (د خوشحال خان د زوی) تر مینځ اختلافات او جګړې
زیاتې وې .

په دغو اختلافاتو او جګړو کښې سکندرخان دافضل خان پره
کوله . سکندرخان په خپلو شعرونو کښې هم بهرام زیات غندلی دی.

د دې اختلافاتو په لړ کښې يې دېوې واقعې داسې بيان کړی دی:

په شلم د رمضان په جانه کړ کښېنې
افضل خان سره يکرنګ په اهتمام
که تاريخ د سن و سال غواړې له مانه
دابجد په حروف عين وغين ولام

يعني (۱۱۰۰ هق)

مخکښې موويل چه د سکندرخان د مړينې نېټه موږ ته نه ده ښکاره، خو دومره ويلی شو چه د ۱۱۲۹ هق د شعبان تر مياشتې پورې دده ژوند يقيني دی، ځکه چه په دې نېټه کښې دده دوه زامن: انورخان او منورخان ځوانيمرګان شوي دي او په هغه پسې يې له سوزه ډکې ويرنې ليکلې دي.

د سکندرخان يادونې د افضل خان خټک په تاريخ مرصع کښې هم راغلې دی او اشرف خان هجري هم د هغه د شاعرۍ ستاينه کړې ده. سربېره پر هغه قاسم علي خان، چه د شاه عالم ثاني په وخت د هندوستان په فرخ آباد کښې اوسېده او د انګريزي استعمار د سلطې تر ختمه پورې ژوندی و او د هغه په خلاف يې شعرونه ليکلي دي، په خپلو شعرو نو کښې د نورو ستر و شاعرانو په لړ کښې د سکندر نوم ياد کړی دی.

## د سکندرخان خټک آثار :

۱- مهر او مشتري : انګرېزي ختيځ پېژندونکي مسترراورټي دخپل پښتو ګرامر په مقدمه کښې د سکندرخان په باره کښې دومره ليکلي دي چه هغه ديو نظم مهر او مشتري ليکونکی او دغزلو ديوې مجموعې خښتن دی. د راورټي ګرامر په ۱۹۵۵م کښې چاپ شوی دی.

د مهر او مشتري د مجموعې په باره کښې پوهاند عبد الحی حبيبي په پښتانه شعراء لومړي ټوک کښې د کشف الظنون په حواله ليکلي دي چه : ((دا کتاب په ۷۷۸ هـ ق ( محمد ابن احمد العطار التبريزي په پنځه زره بيته نظم کړی و، چه څوتنو شاعرانو په ترکي نظم هم ترجمه کړی دی.))

۲- د اشعارو ديوان : د سکندرخان خټک د ديوان قلمي نسخه په ۱۹۵۱م کښې ښاغلي خان بهادر محمد رفيق خان خټک د کوهاټ د ((ګنبت)) کلي او سيد ونکي د پېښور نا متو ليکوال ښاغلي دوست محمد کامل مومند ته ورکړې وه.

دغه نسخه ډېره زړه وه او ښاغلي کامل په خپل کمال هغه لوستې او پاکنويس کړې او مقدمه يې پرې ليکلې ده او د ښاغلي عبدالخالق خليق په مرستې په ۱۹۵۲م په پېښور کښې د چاپ ډګر ته راايستلی دی.

د بنا غلي کامل مومند د لیکنې له مخه دا نسخه ډېره زړه ښکاري یو څو ځایه پرې د شهباز خان مهر وهل شوی دی. یو نیم ځای یې مهر ونو کېښې (۱۱۹۳ هـ) (۱۷۷۹ ع) او (۱۷۸۰ ع) کلونه لوستی شي.

ښاغلی کامل دا یې قایمو ی چه کېدی شي چه اصل نسخه د ۱۱۹۳ هق نه د مخه لیکل شوې وي.

د کتاب د پورتنۍ چاپي نسخې په (۲۶۵) مخ کښې یو قصیده داسې پیلېږي:

وایې تل چه د چا نشــته
شته د نور و د تا نشــته

پر دې ځای باندې کامل صاحب داسې حاشیه لیکلې ده:
(د دې قصیدې د پاسه لیکلي دي: «وجانه گم صاف قلمي شد شبان سنه غق» غق دا بجد په حساب ۱۱۰۰ جوړېږي.)

که د کامل صاحب پر دې حاشیې باندې یله حاشیه لیکلی کېدی شي، نو خد متگار به داسې ولیکي:
«جانه گم په تیرا کښې دا پرېښود او د آدم خېلو په علاقه کښې دیو ځای نوم او غق د قصیدې د لیکلو تاریخ دی چه (۱۱۰۰) ته یې راوړي.

په دغه وخت کښې سکندر خان ژوندی او د ۳۲ کلو نــو په شاو خوا کښې رسېدلی او فعال زلمی و. او په جانه گم کښې

د حُینو پښتو یا دونه یې په یو شعر کښې کړې دہ چه هغه مخکښې تېر شو او تاریخ یې (عین غین ولام ۱۱۰۰ھ) دی.
د شاعرانو دستور دی چه هر کله یا کله کله د خپل شعر د لیکلو ځای او نېټه هم ورسره لیکي.
د دې نکتو سره سمې ویلی شي چه د غه نسخه پخپله د شاعر د زمانې او کېدی شي چه د هغه په قلم لیکل شوې وي.
او که کامل صاحب شهادت ورکړي چه د پورتنیو ټکو او د کتاب لیک یو شان دي بیا نو دغه احتمال ښځي د یقین مرحلې ته رسېږي.
۳ د لیلی او مجنون مثنوي: دا کتاب د محمد عصام له لیلی او مجنون سره یو ځای په ۱۲۹٤ هق کال په دیلي کښې چاپ شوی دی. د سکندرخان د لیلی او مجنون یوه قلمي نسخه د دیلي په ملي موزیم کښې خوندي ده چه د ټونک د نواب له کتابخانې څخه د غلته راوړل شوې ده.
سکندرخان د لیلی او مجنون مثنوي په ۱۰۹۰ هق کښې لیکلې ده لکه چه وایي:

ماخپل عمر د شل دوو کالو حساب کړ
چه تمام مې د لیلی مجنون کتاب کړ

د لیلا او مجنون دکیسې میکروفلم له هند نه پښتو ټولنې ته رسېدلی دی او د پښتو ټولنې په کتابخانه کښې خوندی دی.
(د کلید افغاني تعلیقات)

# افضل خان خټک

افضل خان خټک د اشرف خان هجري زوی، دخوشحال خټک لمسی او د کاظم خان شیدا پلار دی. په ۱۰۷۵ یا ۱۰۷٦ هق کال کښې زیږیدلی او په ۱۱۸۳ هق مړ شوی دی.

کله چه خوشحال له اورنګ زیب سره جګړې کولې، نو د وخت حکومت افضل خان د یرغمل په توګه کابل ته واستی و.
د ۱۰۹۸ هق نه وروسته دوه کاله په کابل کښې و او په ۱۱۰۰ هق د خوشحال ترمړینې وروسته اول جلال آباد او بیا خټکو ته لاړ.
دخوشحال خټک ترمړینې وروسته اشرف خان هجري دهغه په ځای کښیناست، خو د بهرام د مخالفتونو په اساس هغه بندي او مړ شو.
په ۱۱۲۰ هق افضل خان د پلار نیکه په ځای قایم مقام شو او تر ٦۱ کاله پورې دخټکو مشر و.

پېښخانه او قومي مشرتوب بر سېره افضل خان خټک یو عالـم
لیکوال ، شاعر ، ادیب او ادب پالونکی سړی و .

د خوشحال خان بل زوی ګوهر خان د افضل خان تره
خپل اثر « قلب السیر » د تالیف سبب د افضل خان خټک تشویق
بولي او دده او دده پښتو پاللو او ادب روزلو ته داسې اشاره کوي :
« سن نورسل شل دی د پلار ینکه په ځای قایم مقام دی ، سه
سرداري لري . نظر یې په نیکنامۍ اباد اخر دی . په دا قحط الرجال
دی غنیمت دی . حق تعالیٰ دی شرم وساتي . نورمساعی کا
چه د پښتو کتابونه ، لکه چه فارسیانو کړي دی مرتب کړي ، د
نیکه شعر یې دا یه په بیاضونو ځای په ځای متفرق و ، دده یه
تلاش چه خومره په دا سعی کښې و ، له هر ځایه یې جمع کړه
دیوان یې مرتب کړ . بلکه کلیات د شعر یې جه څه و یه نظم نثر
لکه دستارنامه ، فراقنامه ، فضل نامه او د یوان وغیره کتابونه
یې وا یه په کاتبانو یه خوخوځل وکښل یه اطراف یه یې د شعر
د یاره وهرچا ته استول . حق تعالیٰ یې توفیق د نیک رفیق کړه .
په مجلس کښې به یې همیشه ویل که د چا یه طبیعت قوت وي
چه پښتو کتابونه لکه فارسیانو له عربۍ یه فارسۍ ترجمه کړل ،
څوک له فارسۍ یه پښتو ترجمه کا نی . وماته به اکثر اوقات
مخ راجاریوست . اګرچه زما قوت هومره نه و لاکن چه نظر

مې په تضييع د اوقات وكړومې ليده چه څه عمر ګرانما يه ضايع دې دروي. په هرحال مې دی محنت ته ملا وتړله .....»

د ښاغلي محمد اسلم خټک په روايت فياض شاعرهم د افضل خان د ادبي خدمتونو او اشعارو را ټولولو يادونه کړې ده.

افضل خان خټک د پښتو ښې شاعرهم و، مګر په نثر کښې يې زياتې ليکنې کړې دي، مثلاً :

## ۱- تاريخ مرصع :

د دې کتاب قلمي نسخې ځای په ځای پوره او نيمګړې شته. يو ه برخه يې د لته په کليات افغانی او يوڅه فصلونه يې د را ورټي په د ګلشن روه » کښې چاپ شوي وو.

دا کتاب په بشپړه توګه په ۱۳۹٤ هق ۱۹۷٤ م کال د ښاغلي دوست محمد کامل مومند په مقابله، تصحيح او تعليقاتو سره پېښور کښې چاپ شوی دی.

## ۲- تاريخ ابن اعثم کوفي :

دا کتاب د ابو محمد احمد ابن اعثم الکوفي (۳۱٤ هق په شاوخوا کښې مړ) تاليف دی چه د اسلامي دورې د خلفاؤ فتوحات او فعاليتونه د المستعين تر وفاته (۲۵۲ هق- ۸٦٦ م) پورې پکښې بيان شوي دي.

د غه کتاب په (۱۲۰۰ م) کښې محمد ابن احمد ابن ابی نصر

ابن احمد المستوفي الهروی الملقب بالرضی الکاتب په فارسي
ژبه اړولی دی .

افضل خان ختک په ۱۱۲۶ هـ ق د فارسي ترجمې له مخه په
پښتو اړولی دی . دکتاب دپای دوه بیتونه داسې دي :

په مدد د پاک سبحان     په اقبال د عالیشان
چه تاریخ اعثم کوفي     په پښتو شو له فارسي .

د دې کتاب یوه قلمي نسخه د ختکو د اکوړې د بناغلي فتح
محمد خان ختک سره وه چه د هغه د لیکنې له مخه دا یوه
زړه قلمي نسخه وه چه له نیکونو نه په میراث کښې ورته پاته
وه . نوموړې هغه نسخه د نقلولو له پاره کابل پښتو ټولنې
ته استولې وه . د لته نوموړې نسخه په ۱۳۲۵ هـ ش کال کښې د
مرحوم مولوي محمد شېر گل کاموي په قلم پاکنویس شوې ده او
اوس په ۵۵۸ محونو د اطلاعاتو او کلتور وزارت د قلمي
نسخو په کتابخانه کښې خوندي ده . مگر خدای ندی چه هغه
زړه نسخه چه فتح محمد خان ته د ده له نیکه افضل خان جمالګړي
نه پاته وه اوس به چیرته وي ؟

د اطلاعاتو او کلتور وزارت د قلمي نسخې د مقدمې نه داسې
معلومیږي چه دغه ترجمه د افضل خان په وینا بل چا محمد مظفر
د ملا اسماعیل قریشي زوی کړې ده .

نوموړی په مقدمه کښې د افضل خان تر ډېر وستاینو وروسته وايي:

«... په حکم او اشارت د هغه صاحب ... مې شروع په ترجمه د پښتو کښې وکړه ...» (د مقدمې ۲-۳ مخونه وګورئ)

مګر د کتاب په آخر کښې يو اوږد شعر درج دی چه په هغه کښې وايي:

هرچه صاف ترجمه وه هغه خان کړې همه وه
عبارت يې په ايجاز دی مطلب واړه پکښې سازدي

* * *

که قبول د خان صاحب شي مفتخر به يې کاتب شي
د لته نوموړي ځان کاتب ښودلی دی نه مترجم.

له دې نه څرګندېږي چه د کتاب ترجمه په ابتدا يې ډول افضل خان کړې ده او محمد مظفر شايد له بعضې اصلاحاتو او ترميماتو سره پاکنويس کړې وي.

## ۳- علم خانه دانش:

دا د ابوالفضل د کليله او دمنه (عيار دانش) د کتاب ترجمه ده چه يوه قلمي نسخه يې پوهاند حبيبي ليدلې ده.

يوه قلمي نسخه يې په برټش موزيم کښې ده چه د هغې په مقدمه کښې افضل خان خټک ليکي چه د غه ترجمه يې د خپل

ژوندانه په دری پښتو سم ګال کښې کړی ده .

د زیاتو معلوماتو له پاره وګوری:

- پوهاند عبدالحی حبیبي، پښتانه شعراء لومړی ټوک، کابل، ۱۳۲۰ هـ ش
- دافضل خان خټک تاریخ مرصع او پر هغه باندې د دوست محمد کامل مقدمه، پېښور - ۱۹۷٤م .
- فتح محمد خان خټک، د پښتو ځینې قلمي نسخې، کابل مجله، د ۱۳۲٤ هـ ش جوزا، ۳/ ۱۷۱ مه ګڼه .
- ج . ا ستوري، د پیر سید ښکا په لیتراتوره (فارسي ادبیات) مسکو، ۱۹۷۲م .
- تاریخ اعثم کوفي، پښتو ترجمه، قلمي نسخه، د اطلاعاتو او کلتور وزارت د قلمي نسخو د کتابخانې په منځ .
- محمد اسلم خټک، خوشحال خټک، رنا مجله، پېښور د ۱۹۷٦/۷ د جنوري - دسمبر ۷-۸ مه ګڼه .
- پوهاند عبدالحی حبیبي، د ګوهر خان خټک قلب السیر، د زیري د ۱۳۵۵ هـ ش د سلواغې ٦ مه - ٤٤ ګڼه .

(د کلید افغانی تعلیقات)

# کاظم خان شیدا

کاظم خان شیدا د افضل خان ختک زوی، د اشرف خان هجري لمسی او د خوشحال خان ختک کړوسی دی. په ۱۱۳۵ هـ ق کال[1] یا د ۱۱٤۰ (۱۷۲۷ م) په شاوخوا[2] د ختکو په اکوړه کښې زېږېدلی دی. د پلار له مرګ نه وروسته د کاظم خان شیدا مشر ورور اسدالله خان د پلار پر ځای د خانۍ پټکی په سر کړ او د خپل اقتدار د استحکام له پاره یې له خپلوانو او خپلوانو سره بده رویه غوره کړه. د اکارونه د کاظم خان شیدا خوښ نه وو او د نظر د دغه اختلاف له مخې یې هغه کور، کلی او وطن خپل مشر ورور ته پرېښود او د خانۍ او فیوډاله رقابتونو له دغه کرغېړن ماحول نه د آزادو انساني افکارو او احساساتو سره کشمیر ته ولاړ. څه موده یې د کشمیر په مدرسو کښې زده کړه کوله

(۱) د پوهاند عبدالحی حبیبي په روایت (پښتانه شعراء، لومړی ټوک).

(۲) د عبدالرؤف بېنوا او همیش په روایت (د شیدا د دیوان مقدمې).

بیا سرهند او په پای کښې رامپور ته ولاړ او هلته میشت شو
په دې وختونو کښې د رامپور د ریاست نواب محمد فیض الله
خان پښتون و او هلته زیات پښتانه میشت وو. نواب محمد
فیض الله خان د کاظم خان شیدا ډېر قدر کاوه او په درنه
سترګه یې ورته کتل. کاظم خان شیدا هم د نواب نه خوشحاله
او د هغه په دربار کښې یې کار کاوه او د میاشتې زر روپۍ تنخا
ورته مقرره وه. شیدا له خپل خواږه هیواد نه لیرې د وطن او
وطنوالو په یاد له سوز او درد نه ډک شعرونه ویلي دي.
اسدالله خان هیواد ته د هغه د بېرته راستنېدو زیات کوښښ وکړ
او خوشحال یې خپلوان او دوستان ورپسې ولېږل، مګر هغه د پښتو
په خبره د اسې کلک نښتی و چه په دې باره کښې یې نه د خپل
شاعرانه زړه احساساتو او تمایلاتو ته کتل او نه د وور و جرګو
مرکو ته.

آن ته دی چه یوځل له خپلو ملګرو سره د سیل او تفریح
له پاره ته حسن ابداله یورې راغلی و او چې خپلوان یې خبر
شول او ورپسې ورغلل چه کلي ته یې راولي، مګر شیدا ونه منل
او را نغی.

شیدا په سرهند کښې د نقشبندیه طریقې په لړ کښې د پیر
غلام معصوم مرید و چه هغه د خپل نیکه پیر صبغت الله او هغه

د خپل پلار خواجه معصوم او هغه د خپل پلار شیخ احمد سرهندي (مجدد الف ثاني) مریدو . که څه هم حضرت مجدد د وحدت الشهود د طریقې لاربنود و ، مګر کاظم خان شیدا باندې د پښتو د صوفي شاعرانو د بایزید روښان د ملګرو او پیروانو د وحدت الوجود د نظریې اثر شوی و او په شعر کښې یې د دې خبرو بلکه موندلی شو .

کاظم خان شیدا د خپل وخت په دیني ، تصوفي او ادبي علوموکښې وارد و او سربېره پر پښتو په فارسي ادب کښې د دېرې پراخې مطالعې خاوند و .

په پښتوکښې د دېوان خاوند دی او فارسي شعرې هم ویلي دي . کاظم خان شیدا لکه چه د خپل دېوان په مقدمه کښې لیکي د خوکنو د میا عمر صاحب د زوی ، محمدي صاحبزاده په وینا په ۱۱۸۱ هـ ق کښې خپل دېوان مرتب کړی او مقدمه یې وربانډې لیکلې ده . د دغه دېوان قلمي نسخه بیا وروسته میجر راورټي لاس ته ورغله .

د کاظم خان شیدا د دېوان نورې قلمي نسخې هم شته چه د لومړنه قلمي نسخې له مخه مستقیماً یا بالواسطه نقل شوې دي او په ټولوکښې د کاظم خان شیدا لیکلې مقدمه موجوده ده . دغه دېوان د لومړي ځل له پاره د درېوو قلمي نسخو له مخه

په ۱۳۳۱ هش کال د بناغلي عبدالرؤف بېنوا له خوا په اوسنۍ املا نقل، مردف او د پښتو ټولنې له خوا د بناغلي بېنوا د مقدمې سره چاپ شو. بیا په ۱۹۶۵م د یوې زړې قلمي نسخې او د کابل د چاپي نسخې له مخې د بناغلي همېش خلیل په ترتیب او تدوین او مقدمه په پېښور کښې چاپ شو.

په همدې وختونو کښې ډاکټر سید انوارالحق د دوو قلمي نسخو او یو مایکروفلم له مخې د شیدا د یوان له اردو منثورې ترجمې او مقدمې سره ترتیب کړ. دې کار باندې په ۱۹۶۶م مولانا عبدالقادر، په ۱۹۶۵م امیر حمزه شینواري او په ۱۹۶۴م کښې ډاکټر غلام جیلاني برق په اردو ژبه مقدمې لیکلې او له کتاب سره چاپ شوې دي.

ټول کتاب په ۱۰۶۰ مخونو. په لاهور کښې چاپ او دیونیورسټي بک ایجنسي له خوا په پېښور کښې خپور شوی دی.

کاظم خان شیدا د پښتو او پښتونوله دروحیې د لوړ کرکټر او عالي انساني اخلاقو، فضایلو او تقوی خاوند، د پښتو نازکخیاله او درد من شاعر، په ۱۱۹۴هق کښې مړ شوی دی.

د دې نېټې یوازې یو روایت ما ته رسېدلی او هغه دا چې بناغلي همېش خلیل د (دیوان کاظم خان شیدا) په مقدمه کښې لیکي:

«زما سره د قلمي نسخې په حاشیه د کاظم خان شیدا د وفات

تاریخ په یوه قطعه کښې داشان بیان کړی شوی دی :

د شیدا په آشیانه کښې جهان تریخ شو
دکباب غو ندې یې کون ومکان تریخ شو
درست بدن یې کو یا زړه دی په سینه کښې
«بې نظیر» هم د کاظم د مرګ تاریخ شو

خوداسې بریښي چه دا نسخه د کاظم شیدا د مرګ نه پس لیکلې شوې ده ، ولې دا معلومه نشوه چه دشاعر د مرګ دا قطعه چا لیکلې ده ؟ ››

د « بې نظیر » له عبارت لاندې ۱۱۹٤ لیکلی شوی ، حال دا چه له دغه عبارت نه د ابجد په حساب (۱۱۷۲) راوځي .

په داسې حال کښې چه کاظمخان شیدا تر ۱۱۷۲ وروسته په ۱۱۸۱ هق کښې خپل دیوان تدوین کړی دی او د حافظ رحمت خان د مرګ د تاریخ نېټه یې په یوه قطعه کښې لیکلې ده چه (یوکال ود قاتل ود مقتول) چه له دې ما دې نه (۱۱۹٤) راوځي او ددې له مخه تر دغه کاله پورې شیدا ژوندی و او کېدی شي چه په هدغه کال دې مړ وي اود همیش خلیل په سند کښې لیکلې نېټه صحیح وي ، مګر دا چه هغوی د «بې نظیر» عبارت په قوسینو کښې نیولی دا یې خپله د همش صاحب کار دی ،

د زیاتو تفصیلاتو له پاره وګورئ :
- د کاظم خان شیدا دیوان او په هغې باندې د عبدالرؤف بېنوا مقدمه ، کابل - پښتو ټولنه ۱۳۳۱ هش
- دیوان کاظم خان شیدا او پر هغه د همیش خلیل مقدمه ، پېښور ۱۹۶۵ م .
- دیوان کاظم خان شیدا مع اردو ترجمه و تشریح او پر هغه باندې د ډاکټر سید انوار الحق ، مولانا عبدالقادر امیر حمزه شینواري او ډاکټر غلام جیلاني برق لیکنې ، پېښور .
(دکلید افغاني تعلیقات)

# کاظم خټک

د پښتو په کلاسیک ادب کښې مونږ یو کاظم خان شیدا پیژنو او د هغه پیژندنه موکړې ده .

بل « کاظم » نومې شاعر د کاظم خان شیدا معاصر، عزیز او کلیوال پخپله د کاظم خان شیدا د لیکنې له مخې پیژنو. شیدا د خپل دیوان په مقدمه کښې دا خبره څرګنده کړې او د کاظم د اشعارو د شهرت یادونه یې کړې ده او دا یې هم ویلي دي چه د برخلاف د هغه شاعر (کاظم) شعرونه دده (شیدا) ګڼي. مګر کاظم شیدا د دې التباس مخنیوی کړی دي او نه یې دي غوښتي چه د بل چا شعرونه دده په نامه شي او د بل حقوق ضایع شي ، په دې توګه چه هغه شاعر د خپلو شعرونو په کسرونو کښې خپل نوم کاظم راوړی دی او کاظم خان شیدا له خپل تخلص (شیدا) نه کار اخیستی دی .

کاظم خان شیدا د هغه د یو مشهور شعر مطلع دا سې ښیي :

وبه مرمه عالمه په ارمان د تورو زلفو # کله به راورسي درمان د تورو زلفو

تر دې زیات نه د شیدا د معاصر کاظم په باره کښې څه معلومات تر لاسه شوي او نه یې کوم اثر لاس ته راغلی دی او نه د پښتو په کلاسیک ادب کښې بل کاظم نومې شاعر پیژنو.

(د کلید افغانی تعلیقات)

# کامګار

کامګار خان د نامدار خان خټک زوی د خټکو د اکوړی ( سرای ) او سېدونکی دی، دی وایي :

زه کامګار د سرای په کانو
د پېر مین تر ملک د شام یم

* * *

له انجامه يې خبر نه يم چېرته شي
د کامګار خټک په غم بنه اغاري

د کامګار خټک له دیوه بیت نه معلومېږي چه نوموړی په ۱۱۳۷ هق کال کښې ژوندی و. وایي :

دا غزل چه کامګار و وې
سن د هجر «زی غسس» دی

دابجد په حساب «زی غسس» توروڼه ۱۱۳۷ جوړیږي

که څه هم د اطلاعاتو او کلتور د وزارت په قلمي نسخو کتبي «زی غسس» يعني «د غ» پرځای «ع» ليکل شوی او معلومېږي چه د نقلولو په وخت له کاتب نه «د غ» ټکی هېر شوی دی.

ديو شعر له مخې چه د کامګار د ديوان د قلمي نسخې په پای کښې بل چا ليکلی دی، کامګار خټک په ۱۱۶۵ هـق کال کښې مړ دی. هغه شعر دا دی:

سن زر سل پنځه شپېته و
چه رحلت وکړ کامګار
پس له ده نه په درې کاله
پلار د ده فوت شو (پنام) نامدار

دغه قلمي نسخه تر ۱۳۲۴ هـش کال پورې له مباقلي فتح محمد خان خټک سره وه چه په ۱۱۸۹ هـق کال د شاعر تر مړينې ۲۴ کاله وروسته ليکل شوې ده او د هغې کاتب د کتاب په پای کښې ليکلي دي:

«تمت کتاب ديوان کامګار خټک ولد نامدار خان در دور پادشاه جم جاه ملايک سپاه تيمور شاه بادشاه. روز يکشنبه ماه محرم الحرم ۱۱۸۹»

د کامګار خټک د ديوان دغه نسخه په ۱۳۲۵ هـش کابل ته راوړل شوې ده او د پښتو ټولنې لخوا، اغلباً د مولوي محمد شېر ګل کاموي په قلم په ۱۳۵ مخونو کښې نقل شوې ده

او اوس د اطلاعاتو او کلتور دوزارت دخطي نسخو په کتابخانه کښې خوندي ده او دهغې په آخره کښې ناسخ ليکلي دي:

«در وقت نصف روز يکشنبه ماه محرم الحرام ۱۱۸۹ نسخهٔ اول تحرير شده بود. فقط تحرير ۲۱ عقرب ۱۳۲٤.»

د کامکار خټک د ديوان بوه قلمي نسخه د شيدا له ديوان سره په يوه پشتي کښې په برټش موزيم کښې ده، چه د مستر هيوز تر نظر لاندې له هغې نسخې څخه چه په افضل خان جمالګړي پورې اړه لري د پيښوري غلام جيلاني په قلم په ۱۸۷۲ م کښې نقل شوې ده. افضل خان جمالګړی د فتح محمدخان نيکه و چه بيا دغه نسخه فتح محمدخان پورې رسيدلې وه او د کابل نسخه هم د هغې له مخه نقل شوې ده.

د کامکار خټک ديوان په ۱۹۵۵ م کال د ښاغلي تسنيم الحق کاکاخيل په مقدمه او زيار او حواشيو په ۲۰۸ مخونو کښې په پيښور کښې چاپ شوی دی او له بده مرغه زما ګوتو ته نه دی راغلی.

د کامکار خټک په قلمي او چاپي ديوان کښې د هغه يو څه فارسي شعرونه هم شته.

(د کليد افغانی تعليقات)

# اسدالله خټک

اسدالله د افضل خان جمالګړي مشر زوی، د خوشحال خټک د کورنۍ شاعر و. د جمالګړي افضل خټک په ۱۸۶۲ م کښې ژوندی و. (۱)

د اکبر او اشرف په فراق کښې یې غزلې ویلي دي، چې لاندې دوه بیته لاس ته راغلي دي: (۲)

نن دې خلقه نن د دواړو ستر ګو په کریوان دی
خدای بود اشرف اکبر ماتم اوو د نیسان دی

نن د قیامت ورځ ده له قیامته لابد تره ده
تللي هغه سنه بوستان د میني په خزان دی

(پښتانه شعراء، څلورم ټوک، کابل - ۱۳۵۷ هـ ش)

(۱) پادري هیوز کلید افغاني، لاهور د ۱۸۷۲ م چاپ.
(۲) پوهاند رښتین، د خوشحال خټک کورنۍ او مکتب، کابل مجله، د ۱۳۴۵ کال زمرۍ ۵ - ۵۶۲ مخ.

# اکبر خټک

اکبر هم د افضل خان جالکړی زوی او د خوشحال خټک د کورنۍ شاعر دی. دا بیتونه یې له یو پخواني کتابه اخستل شوي دي: (۱)

د سحر باده ورشه یار ته زما د لوری

اکبر په غم کې ږړي مدام ستا هنګ تکوري

فلکه څه دي وکړه جدا دي کړم له یاره

زه کړم په قید کښې ګرزوان آشنا به ناست په کوري

خدایه دا شپه د غم کله به تېرېږي په ما

که به مدام راباندې بل د غم اوري

نه به بیا هغه مجلس جمع زموږ شي سره

نه به د خیال په بوستان چیرې بلبل وبنوري

د اکبر د دیوان قلمي نسخه د برټش موزیم د قلمي نسخو تر (۴۲۳۰) لمبر لاندې خوندي ده. (۲) خو دا معلومه نه ده چې هغه د دې اکبر د ه که د بل چا؟

( پښتانه شعراء غلام لوټک )

---

(۱) پوهاند رښتین، د خوشحال خټک کورنۍ او کتب، کابل مجله، د ۱۳۴۵ زمری ۵ / ۵۶۴ مه ګڼه.

(۲) راز محمد ولیس، پښتو کتابونه، کابل، ۱۳۳۷ هوش چاپ.

# سعادت خان ختک

سعادت خان هم دافضل خان جالګړی بل زوی
او د خوشحال د کورنۍ شاعر دی . د ده وینه په بیلتانه
کښې یې داغزل لاس ته راغلی دی: (۱)

خلقه نن مې په خاطر دغم ناری شوې
په بیلتون مې د زړه مراوې منجرې شوې

د زړګي خونه په غم زما تالا شوه
په نصیب مې دغمو نواجارې شوې

(۱) پوهاند رشتین ، د خوشحال ختک کورنۍ او مکتب ، کابل مجله ،
زمری ۵ / ۵۶۲ مه ګڼه .

نوی نوی غم را ځي زما په خونه
خبر نه یم د غم ماکره دیرې شوې

نه به بیا اکبر اشرف له قیده راشي
نه به کمې د ا زما خوار شوکیرې شوې

چه دا هسې نازپرور ورونه می لاړل
د وجود ولې مې څکه په اره شوې

شعر نه دی د اکبر اشرف ماتم دی
سعادت له خولې نه جورې دا مسرې شوې

(پښتانه شعراء څلورم ټوک)

# میا جناب کاکاخېل

نوم یې جناب، د میا محجاب زوی او د زیارت کا کا صاحب او سید ونکی دی. د زېږېدو نېټه یې نه ده معلومه، مګر دده زوی، میا ابو تراب کاکاخېل د لیکنې له مخه، غالباً د پنځه اتیا کلونو په عمر، د ۱۹۲۹ع د نومبر په ۹مه، د ۱۳۴۶ هق د جمادی الثاني په ۶مه مړشوی دی او خپل کلي زیارت کلي صاحب کښې د خپل باغ په ګوټ کښې ښخ دی. له پلاره نه یتیم پاتې دی او د خپل ژوندانه په موده کښې یې خپل ژوند په تجارت چلاوه. نیم قرآن شریف یې یاد و، خپل عمر یې په تبلیغ او تالیف او د خلکو ترمنځ په روغې جوړې تېراوه. په پښتو او فارسي یې شعر وایه. دده تالیفات په دې ډول دي:

۱- دېوان د میا جناب کاکاخېل: په ۱۹۷۰ع کال د

عبد الخالق خلیق په ذریعه، د ادارهٔ اشاعت سرحد، قصه خوانی پېښور له خوا په منظور عام پرېس پېښور کښې په ۳۲۸ مخونو چاپ شوې دی او دده زوی میا ابو تراب ورباندې مقدمه لیکلې ده.

۲- مدارج النبوة: تقریبًا دونیم سوه مخه، ترجمه.

۳- علاج الاطفال: منظومه پښتو رساله.

۴- دعای سریانی: په فارسي ژبه.[1]

د شعر نمونې:

(۱)

هغه څوک چه کښېنې دي پښه په سر د خار
هغه خار به یې کوي په پښه کښې غار

هغه کانی به په تاوکړې گزار هم
چې یې ته کړې په دېوار د چا گزار

چه د بل په کوځه ورشي ورته گوره
خود به سپی درپسې وکړي غیها ر

که خوله خپله د منصور حلاج په واک وای
و به ولی سور په وینو سر په دار

[1] میا ابو تراب کاکاخېل، دېوان د میاجناب کاکاخېل، مقدمه، پېښور ۱۹۷۰ع کال چاپ.

هرچه نه غواړي بوسه د شکر لبو
هغه نه سوزي د هجر په سور نار

د دریاب په غم به اړو غمکین نه شي
که خوامو د درو نه شي پروا دار

چه دانه دخوراک اخلي مارغه نښلي
کنې یو مارغه به نه کړي څوک ایسار

په ازار به دې څوک یاد نه کړي جنابه!
که تا نه کړلو بې هیڅ څوک ازار

«۲»

وښیه جبین د غره له سره ماه جبینه
لېږې کړه تیاره زماله زړه او له زمینه

رب چه ته لیلا کړې ما مجنون و ته دلبره
زه مجنون به څه کوم په بله لیلا مینه

زیاته کوهکني مې له کوهکن فرهاده وکړه
نه راځي په کوتو په هیڅ شان هغه شیرینه

سور ګلاب دمخ مې دستمبر د غم زیږ کل شو
مینې او به کړي ده زما دصورت وینه

سوزي مي د آه په سره لمبه باندي واعظه
لېږي د تنور له خولې نه کښېنه تماش بینه

غم دیار سبا دي ده بې دردان به بې غم بولي
هیڅکله کم مه شه دغه غم له دې غمګینه

سره کړه لاس په وینو ما مباح الدم حلال کړه
دا ناز به دې زه وړمه د خلقو ناز بینه

دا اخلاص زما شو نه لباس کوه رقیبه!
کار د روغو لاسو له تا نه کېږي استینه

ختې سا د مړو او د ژوندو ترمیانه پرته دی
مل د جناب نه شې یا الله العالمینه!



(د پښتانه شعراء څلورم ټوک)

# میا عبدالله کاکاخېل

د شیخ رحمکار صاحب (رح) په زامنو کښې یو هم شیخ ضیاء الدین دی ، چه د خوشحال خان خټک لور د اشرفخان هجري او بهرام خان سکه خور د نو موړي شیخ میرمن ده. د هغه په اولاده کښې میا عبدالله کاکاخېل د میا ابرار کاکاخېل زوی ستر دیني عالم، عارف او شاعر دی. میا مسرور ګل کاکاخېل د زیارت د شاعرانو په قصیده کښې هغه داسې یاد کړی دی :

د ملا میا عبدالله صاحب هر شعر
په دریاب د علم وفضل کښې سیلاب دی

میا عبدالله کاکاخېل د عربي فقهې مشهور کتاب در مختار په پښتو نظم اړولی او له « شامي » او نورو فقهي کتابونو څخه یې استفاده او اضافې کړې دي . او خطي نسخه یې ما د ۱۹۹۷ م کال د مې په ۲۹ مه د مردان په ساولډهیر کښې

د میا وکیل شاه فقیرخېل په کتابخونه کښې ولیدله . دد ې
نسخې په یوه پاڼه باندې دهغې د لیکلو نېټه داسې ثبت
ده :

" شروع کتاب درشب سه‌شنبه رجب ۱۳۰۳ هـ "

چه مونږ همدغه د شاعر دڅ وندانه، کار او فعالیت او
ددې اثر د نظمولو دوره بولو .
کتاب له بسم الله الرحمن الرحیم نه وروسته داسې
پیلیږي :

پس له حمده دخپل خدایه
چه ښکاریږي دی له ورایه

او له صلاته له سلا م
په نبي خیر الا نام

په اصحابو هم په آ ل
تل دې وي بې قیل وقال

ابوبکر په عمر هم
په عثمان او په حیدر هم

یوه ورځ مې په زړه یاره!
راغله دا واوره هوښیاره!

چه یو څو بابه د دین
پښتو کړم په شعر آئین

چه آسان شي پښتنو ته
هم سړو هم ار تینو ته

له کتاب به داوایم
نه له ځانه به یې نمایم

له کتاب دُر مختار ه
بیان کړم به بې غباره

هم کتابه د شامي
کړم به ځینې هم زیاتي

ځینې ځینې به زیاتي
هم له نورو درته شي

د ذکر شوي خطي نسخې له وروستیو بیتونو نه
څرګندېږي چه دا نسخه نیمګړې ده، موجوده وروستي
بیتونه دادي:

سلطنت دی د صبي
ضرورت کښې هم صحي

او سپارل دي د کارونو
دا تقرير واوري مهونو

یوه والی لره دی کړي
دی هلک ته دا شه دي

دا والــي دي ځان شمېري
له تابعانو د جبــي

وي ظاهر کښي به سلطان
هغه هلک هغــه مکان

حقيقت کښي به والــي
دغه ځای کښي سلطان وي

که والي سلطان نه شي
نو به کله شي صحي

د ده اذن په قضــا
دي وکړي واوره له ما

دا رنګ اذن به صحي
په جومعه د ده نه شي

دا کتاب لکه چه ګورو په لنډه انداز چه اين بحر کښي مثنوي ده. په نستعليق ليک په يورپي کاغذ په تور رنګ ليکل شوی او ځای په ځای سور رنګ هم کارول شوی او ۱۶۳ پاڼي لري.

د دې نسخي د پشتي په پاڼه د ميا عبدالله صاحب دا شکلی غزل هم شته:

دا دي سرې لمبې چه مې په زړه کړې بلېدل؟
یا دي فراقونه راته شوو په رسېدل؟

دا دي سرې سکروټې (۱) هله ویوستې ایرې کړمه
یا دي سرو لبان چه مې په زړه کړې کړېدل؟

دا دي تیره غشي زما سترګو کښې ښخېږي (۲)
یا دي تور باڼه چه کړې په زړه کښې ښخېدل؟ (۳)

دا دي دریابونه بیدل (٤) کاندي بې نهایه؟
یا دي زما اوښکې له فراقه کړې بېدل؟ (٥)

دا دي مرغلرې په دبلي کښې پېیوي شي؟
یا دي ستا غاښونه شو له ما په پېټېدل؟

دا دي ملایک له سپي تښتي په کروهونو؟
یا دي ګلرخان چه شوو له ما په تښتېدل؟

دا دي پتنګان چه پر بدل کړې شمع باندې؟
یا دي لطایف مې په جانان کړې پرېدل؟ (٦)

دا دي ښاماران چه ترینه زړونه رپېدلکا؟
یا دي ستا زلفان چه ترینه کړمه رپېدل؟

دا دي تور داغونه عبدالله باندې ږدینه؟
یا دي تور خالونه کړې صنم یې کېښودل؟

که د میا صاحب د درمختار منظومه ترجمه دیونقاد
په نظر هسې قافیه بندی هم وي، نو دا پورتنی غزل
خویې د ښه معیاري شعر په یو دیوان ارزي .
بو یه چه شاعر دغزلو دیوان ولري او چېر ته
ت لاسه شي .

یادونې :

- له میا وکیل شاه فقیرخیل څخه منه

(۱) په اصل کښې : سکروېې .

(۲،۳) : په اصل کښې : سرخېژی ، سرخېدل .

(۴،۵) بېدل : د بهېدل مخفف .

(۶) پرېدل : پرېدل ، الوتل .

(پښتانه شعراء شیرزم توک خطی)

# میا حمد الله فقیرخېل

جمیل خان یا جمال خان چه په فقیر جمیل بېګ شهرت لري د خوشحال خان خټک ورور دی. نوموړی عالم صوفي لیکوال او شاعر و. هغه د ژوندانه په وروستیو کلونو کښې د خانۍ د ګدۍ پر ځای د فقیرۍ مسند غوره کړی دی (۱). د خوشحال خان په شان دده په اولاده کښې هم زیات لیکوال، شاعران او د قلم خاوندان شته. یو له دغو څخه میا حمد الله دی.

مولوي میا حمد الله د کمال الدین زوی، د شهید الدین لمسی، د شیخ افرید ګل کړوسی، د فقیر محمد صدیق کوډی او د فقیر جمیل بېګ پرکوډی دی. (۲)

میا حمد الله فقیرخېل د سوابۍ په سره چینه کښې اوسېده او د کوټې د باباجي سید محمد امیر صاحب له مریدانو څخه دی، چه د خپل پیر په ستاینه کښې یې ځلېرښت قصیدې لیکلې دي. (۳) د خپل لوی نیکه فقیر جمیل بېګ په ستاینه کښې

هم شعرونه لري . هغه د خپل وخت متصوف شاعر، په دیني علوموکښې وارد ، متقي او پرهېزګار سړی و.

له نوموړي شاعر څخه د پښتو شعرونو یو دیوان پاته دی. ددې دیوان یوه خطي نسخه د میا تلاوت شاه په ذریعه میا وکیل شاه فقیرخېل ته سپارل شوې ده. هغه چاپ ته برابره کړې ، مقدمه یې پرې لیکلې او زما له یوې لنډې پېژندګلې سره یې چاپوي.

په دې دیوان کښې (۷۱) پښتو غزلې او یو شمېر-مناجاتونه ، نعتونه او منقبتونه او د شاعر دوه فارسي غزلې شته . شعرونه یې زیاتره عشقي ، تصوفي او اخلاقي مضمون لري.

مولوي میا حمد الله فقیرخېل د ۱۲۹۰ هق کال د صفر المظفر په ۲۴ مه د پښتونخوا د کوهستان د تانیکر په کمهی کوټ نومي کلي کښې وفات شوی دی او د همدې کلي د جومات تر څنګ ښخ دی. (٤)

د شعر نمونې!

د فقیرجمیل بېګ له منقبت څخه

د غفلت په دریاب ډوب یم  د هوا هوس مرغوب یم
په باطل عمل ناخوب یم  د شیطان لعین مرکوب یم
رامدد شه زما جده !

ډېر پښېمان په تېر ګناه یم — شرمنده هم روسیاه یم
سپک بې قدره ترګیاه یم — ستا نوسی زه حمدالله یم
رامه د شه زما جده !

## "٢٣" غزل

چه رایاد شي راته خپل خوانه یاران
د فراق اوښې مې څاڅي په ګرېوان

چه یې نه وینم جمال د مهرویانو
رضامندیم که شم ړوند په دوه چشمان

هسې ډېر غمونه راغلل په ما باندې
په تحریر، تقریر یې نه شم کړی بیان

آرزومند یم عمر ټول د دې خیس ی
دربغه ولیدی سپین مخ د یار عیان

خدایه کله به دیدن د دلبر وکړم؟
ډېر زبون کړمه غمونو د هجران

ژوند مې واړه بې آرام و نا قرار شو
هر ساعت یمه له غمه په لړزان

تل مې سوال له خدایه وصل دجانان دی
نه لرم په زړه کښې بل خیال و ارمان

د رحمان او دحمید غزل مشهور دی
حمدالله وایه غزل دخپل دیوان

## غزل "۳"

پخوانۍ مینه چه یاده د آشنا کړم
دواړه لاس په تندي کښېږدم ژړا کړم

یاره ستا جور و ستم زما قبول دی
صبر څنګ د رقیبانو په جفا کړم

هغه یار چه مرور کرځي له ما نه
نواښتي وله (۵) څه چه ېي پخلا کړم

په یوه دیدن به نه شي د زړه صبر
نه به هیڅ (۶) یې ملاقات وته بیا بیا کړم

سنګلی مخ که در ښکاره کړم نا ګهانه
باقي عمر به مجنون ته هم شیدا کړم

هر چه تېر شو هغه تېر د زړه نه هېر شو
پس له دې به درسره مینه وفا کړم

له هرچا سره چه زبوسه کنار شم
توره شبه به د صباح په شان رڼا کړم

حمدالله میا ! په دیدن به مې زړه موړ شي
داوعده درسره زه اوس په رښتیا کړم

ooo

---

یادوني :

(۱) دفقیر جمیل بیګ د پېژندڼې لپاره کتلی شئ :
- سرمحقق عبدالله بختانی، پښتانه شعراء، پنځم ټوک، کابل دعلومو اکادمي، ۱۳۶۷ هش لومړی مخ .
(۲) میا فردوس شاه فقیرخیل، شجرهٔ نسب فقیرخان خیل، ۱۹۹۲م، ۱۵٤ مخ .
(۳) عبدالحلیم اثر، روحاني رابطه او روحاني تړون، پېښور ۹۵۵ مخ .
(٤) میا وکیل شاه فقیرخیل، دیوان میاحمدالله فقیرخیل، خطي مقاله . په ننه .
(۵) وله : ورله - ورته .
(٦) په اصل کښي : هغه - هېڅه - هڅه - تلاش، وسع .

(پښتانه شعراء شپږم ټوک خطي)

# دمیا احمدالله فقیرخیل

## پر دیوان پېژندګلوي

د ۱۳۷٤ د ثور په درېمه ، د پېښور پوهنتون د دوو ورځو په تالار کښې ، د پټې خزانې د مؤلف محمد هوتک په باب سیمینار ته زه هم بلل شوی وم .

د سهار له علمي جلسې نه وروسته د دوهمې په وخت د سیمینار د یو غړي ښاغلي میا وکیل شاه فقیرخیل سره زما تعارف وشو . دې خټک ځوان ما سره ډېره مینه وښوده او په ټینګ ستړي د خپل کور تلو بلنه راکړه .

ما ورسره وعده وکړه . مردان ته ورغلم . په مجید آباد کښې د پوهاند رښتین صاحب په کور کښې زما او د ده بیا ملاقات وشو . د ثور په اتمه ( د ۱۹۹۵م د اپریل ۲۹مه ) دده په موټر کښې د دوی کلي شاول ډېر ته را غلم .

د شپې مې د دوه په کتابخانه کښې د هغه يوه نسخه ليکنې او څېړنې وکتلې، و پوهېدم چه په دې ستوري زمنه لاره سيده روان دي او کړ خير وي د کار، زيان، غور او د وقت په برکت د پښتونخوا دا دب څېړنې په آسمان کښې به ديو دانه ستوري په شان وځلېږي.

سهار يې د چشمې کلي ته بوتلم. د فقير جميل بيګ له جومات سره د ميا فردوس شاه فقيرخېل ډېره وه. هغه راته د پښتو خوشخطي نسخې راوښودلې. په پوره پکښې د ميا تجمل شاه پښتو منظوم طبي قاموس و. ما ترې د پښتانه شعراء شېږم بوټک له پاره يا د داشتونه واخيستل. بيا ولاړو د غره په جنوبي ډډه کښې د تنګاهو کلي سره نژدې د فقير جميل بيګ او صديق بابا په زيارتونو مشرف شوو.

د ميا وکيل شاه په کتابخانه او له هغه سره ديو شوارو ز مېلمه کېدو او کرځېدو راګرځېدو نه ما ته دا پته ولګېدله چه نوموړی د پښتو ادب له څېړنې سره بې اندازې مينه لري.
د ديوان خاوند صديق باندې يې خپله څېړنيزه مقاله راوښودله او فوټو ستېټ يې ما ته راکړ.

نه پروسږ کال اوړي کښې په کابل کښې وم، د نوموړي مياصاحب يو ليک راورسېد. ليکلي يې وه چه د مياحمدالله

فقیرخېل (د میا تجمل شاه پلار) د شعرونو خطي د یوان مې موندلی دی او کتاب ورباندې کوم. زه یې دې زېرې ېې انداز خوشحاله شوم. نو موږ یې د ذکر شوي نسخې او دغې د شاعر په باب خپله څېړنیزه مقاله هم راولېږلې وه. ما مقاله د لیکوالو د ټولنې (ژوندون) مجلې ته د چاپ لپاره وسپارله او په ځواب یې لیک کښې مې میا صاحب ته ولیکل چې تکړه شه، کتاب په ډېر دقت پاکنویس کړه، مقدمه پرې ولیکه او چاپ ته یې تیار کړه.

پرون بیا زه مردان او د شېخ له ده سره ساول ډېر ته راغلم. بیا دی و اوزه، تر نیمو شپو پورې د پښتو ادب څېړنې په باب خبرې اترې، خطي او چاپي کتابونه.

په کتابونو کښې د احمدین طالب د شعرونو څلور خطي او څلور چاپي نسخې هم وې. میا صاحب غواړي چې له ټولو نه یو کتاب راوباسي. دغه د پوښتنو په اثر د اکا ډېمیک متن د تیارولو په باب ما خپلې ځینې تجربې او ددې کار اساسي پرنسیبونه او روښونه ورته واورول. خدای دې توفیق ورکړي.

د میا عبدالله کاکاخېل د دُر مختار د پښتو منظومې ترجمې او د میا حمدالله فقیرخېل د دیوان خطي نسخې یې هم راوښودلې.

ترټولو اهمه خبره دا ده چه میاصاحب خو اوس د
میاحمدالله دیوان پاکنویس کړی او له یوې مفصلې څېړنیزې
سریزې سره یې د ښاغلي لطف الله په ذریعه خطاطي کړی
چه ژر به چاپ شي . ددې په لیدو د اشپه او ورځ په مسا
اختر شو.او ویوهېدم چه دپښتو ادب په خزانه کښې یوه
ارزښتمنه اضافه وشوه .

دی وایي چه نه یې په خپل لګښت چاپوم او د شعراو
ادب مینه والو ته یې وړیا نذې کوم .

زه وایم دغسې کارونه باید په اکاډمیو کښې وشي
او د دغسې کارونو کارمندان په معنوي او مادي وسایلو
و نمانځل شي ، دا د دنیا دود دی ، مګر افسوس چه زموږ
دافغانستان د علومو اکاډمۍ او د پېښور د پښتو اکاډمۍ
مالي او تخنیکي امکانات ډېر محدود دي . پښتانه وروڼه
که لږ دې او که ډېر ، زیاتره د پښتو او پښتونولۍ چغې وهي
ځانونه بیي او هر یو د بل نه ځان د مخه بولي چه د
اسراف او تبذیر په سویه ، په مېلمستیاوو ، دمړو او فاتحو
کوژدو او ودونو د ښځایه لګښتونو د سیالۍ او رقابت
په ډګر کښې یو د بل نه مخکښې کېږي ، مګر د یو لیکوال ،
شاعر او مؤلف دیو اثر د چاپولو مالي مرستند ویان یا

نشته ، یا ډېر کم دي .   هغه هم په زارۍ منت .
آخر دا فرهنګي کاروونه هم د سړي وخت نیسي او لیکوالان
او ادیبان زیاتره غریب زي او فقیرخېل دي . دوی او ددوی
بال بچ خوړه شي کولی چې د ماړه په شان خاوري وخوري .
وبخښئ ! د لته یوه تېره هېره خاطره را یاده شوه .
یوه ورځ مرحوم سردار محمد داؤدخان ، چې د
افغانستان صدراعظم و ، زموږ استاذ ، مرحوم مولانا
قیام الدین خادم ته وویل :
« ملک از شما است ، وطن از شما است ، خاک از شما است ،
خدمت کنید .... »
خادم صاحب وویل :
« خدمت خو به کوو ، مګر کښې خاورې وخورو ! ... »
رښتیا هم د پښتو شعر و ادب ، علم و فرهنګ د خادمانو
د هېواد زیاتره خلک شعر غواړي ، نثر غواړي ، علم او څېړنه
غواړي ، مګر د کتاب د چاپ له پاره خو مرسته نه کوي ، مګر
د خپلو لوستلو له پاره هم ورېا کتاب ته یې سترګې نیولې وي .
په سګرټو پیسې سوزوي ، خو په کتاب یې نه ورکوي . نو ځکه
میا صاحب له مجبورۍ نه وویل : « زه دا کتاب ، د میا محمدالله
دیوان نه خرڅوم .... »

داخو دده همت دی چه نیمړې نسخې لېټوي، هغه راټولوي
مقدمه پرې لیکي او په خپلو پیسو یې چاپوي، مګر خرڅوي
یې نه، ځکه....

ده ته به یو څه خاوند ایرې له پلاره پاته وي، مګر نور...
په نوره دنیا کښې د لیکوال، شاعر، ثروتمند دخپل قلم په څوکه
په لوړه سویه چلېږي، مګر پښتون شاعر د روزۍ د ګټلو
له پاره ځنځېږې کوي، ګنډې وهې راوړي، کراچه (ریړه)
چلوي، پردي نوکري کوي او یا د میا وکیل شاه پښتان
د (جي - پي - او) په دفترکښې اداري چارې سرته رسوي.
بیاهم آفرین شه پر هغو چه د پښتو ادب خدمت تړې
په نزه او میړانه اوږه ورکړې ده!

د میا صاحب په کار، رحمدالله په دیوان، د
انتقادي نظر وخت نشته، ځکه چه که دې یسې شم
د دیوان چاپ به وځنډېږي، نو ځکه زه سمدستي
میا وکیل شاه وردود ته د دیوان په چاپولو د زړه په
مینه او خلوص مبارکي وایم. دخدای پاک له درباره
ورته پوره دایمي روغتیا او زیات بریالیتوب غواړم
چه دغسې نور ادبي خدمتونه هم ترسره کړي او دې
یسې د احمدین طالب د

د اشعارو په تدوین او چاپ د پښتو ادب باغ و بڼ لا ښکلی کړي، ځکه چه زما په نظر :

دپښتو دباغ وبڼ تکړه مالیار دی
په مردان کښې فقیرخیل میاوکیل شاه

ومن الله التوفیق - والسلام

ساول پېر، پنجشنبه، د۱۳۷۶
دجوزا نهمه
د ۱۹۹۷ م د می ۲۹مه

# میا تجمل شاه فقیرخېل

میا تجمل شاه د مولوی میا حمد الله زوی دی چه د د فـ
متصوف شاعر پېژندنه تېر دی د مخه تېره شوه او د فقیـر
جمیل بیګ له اولادې څخه دی. د میا تجمل شاه په زامنـو
کښې محمد اسرائیل شاه فقیرخېل هم د پښتو شاعر دی او د
طب یو خطي اثر تري پاتې دی،

میا تجمل شاه د خپل وخت عالم، فاضل، حکیم او شاعر
تېر شوی دی. له هغه څخه یو منظوم طب پاته دی چه خطي
نسخه یې د ناظم په قلم، ما د ۱۳۷۴ هش د ثور په اتمه په چشمې
کلي کښې د فقیر جمیل بیګ جوماټ ته څېرمه له سنا غلي میا
فردوس شاه سره د لیز ساعت لپاره ولیده. دا اثر په راته
څېره ایز لنډ بحر کښې د خوشحال د طبنامې په شان نظم شوی ده
چه په یو ربچي کاغذ، لویه قطعه ۲۴۴ مخونه لری او له بسم الله الرحمن
الرحیم نه وروسته د اسې پیلېږي:

حمد شکر هم سپاس
دخپل خدای وایم بیقیاس

چه لایق یې د عرفان کرم
دخپل ذات یې ثنا خوان کرم

دکتاب د پای په بیتونو کښې، میاصاحب دخپل خان
او دخپل لوړینکه، فقیرجمیل بیګ داسې پېژندنه او یادونه کوي:

بس کړه میاتجمل شاه ته
فضل غواړه د الله بته

که نازل فضل په ما شي
بس عمل به مې کیمیا شي

زه په اصل فقیرخیل یم
ماهیت کښې زه خانخیل یم

جد زما فقیر بابا دی
دولیانو مقتدا دی

په اول کښې دی سردار و
دختکو شهریار و

دی دکل ختک سردار و
یو منصف، عادل رویدار و

په نظر د شیخ صاحب
دی ولي شو عجایب

په ظاهر ده ځان فقیر کړ
پاک الله باطن امیر کړ

د شیخ جي صاحب وزیر شو
په ثنا د رب قدیر شو

مناقب کښي نور بیان
ښه څرګند دی ګوره جان

په اووم نوعي د دغه ځوان یم
په اوه پښت کښي عیان یم

په رزړ کښي مي مقام دی
اکوخیل خاص زما قام دی

په سمه چینه کښي ور ورو!
دی زما سکونت ګوره!

سن د هجرت چه یاد بڼ ي
د یار لس سوه حساب بڼ ي

څلور نور دپاسه د پسه
پس له دې دې اوس بس وینه
(۲٤٤مخ)

څرګنده ده چه په پاسنیو بیتونو کښي له فقیر بابا
نه د شاعر مطلب د ده نیکه فقیر جمیل بیګ دی او له

شیخ ځنه د هغه مرشد شیخ رحمکار بابا دی، رز ړ
د سوابۍ مشهور کلی او سړه چینه د سوابۍ ضلع کښې
د دوبیا نو کلی ، چیرته چه کامګارخان خټک د پښتو شاعر
او سیده ، د میا تجمل شاه د اوسیدو کلی دی. او د
نوموړی د امنظوم طب په ۱۳۰۴ ورق کال بشپړ شوی دی.
میا تجمل شاه د کتاب په پیل کښې د هغه د لیکلو سبب
داسې بیانوي :
زمونږ د کوروکلي سنځې مخ پټې دی . کلک ستر
لري ، له کوره نه ووځي ، د ناروغۍ په وخت کښې هم طبیب ته
مخ او د لاس نبض نه ښیي . ورسره نه غږیږي . د ناروغو
سنځو د کور نارینه د هغو د ناروغۍ حالات طبیبانو ته
بیانوي. طبیب چه دارو ورکړي کله ولګیږي او کله نه، ځکه
چه د ناروغۍ سمه پیژندنه (تشخیص ) نه وي شوی، نو
ما فکر وکړ چه زه باید د طب کتابونه ووایم او ځان د خپلې
کورنۍ د سنځمنو د ناروغیو د درمان جوګه کړم ، نو!

زمونږ ځای کښې یو حکیم و
ډیر حاذق په ټولو حلیم و

ماله ده کتاب میزان
کړ شروع واوره بیان

ميزان ده څخه ماخلاص کړ
رښتيا داچه موږ کوز پاس کړ

چه کوم ځای به پاتي شنه
مابه ځان څخه بېل ښکونه

چه ميز ان خلاصېده وروره!
دهر لغات جمع شو ګوره !

ماوي پاتي ګران لغات شو
زده کول يې ضروريات شو

يوسفزی کښې حکيمان وو
مشهورچه څوک عيان وو

ماله هريو نه پرسان کړ
دوی به هريو دابيان کړ

دا لغات مشهور دهرګران دي
عربي ، فارسي يونانی دي

تر دې وروسته ناظم په نظم کښې وايي چه دې ښار
ته ، ښايي پېښور ته ، ولاړ ، هلته يې د رسيد لو استادانو
لټون وکړ. مګر هغو ته رسيدل ګران وو، بيا هم خدای
يو استاد پيدا کړ، نو:

خدای زما نصيب بهتر کړ
تر يې شروع مې طب اکبر کړ

علم طب را ته حاصل شو
طبابت ز ما کامل شو

رامات ماته مخلوقات شو
نعوذ مې خوړ په هرسمات شو

سایلانو را نه سوال
تل کاوه په دا منوال

یولغات که شي تیار
دهرچا به شي په کار

نیت مې وکړ خدای دپاره
یولغت تصنیف کړم یاره

په پښتو ژبه اسان
چه هرڅوک شي پرې پوهان

چه هرڅوک ترې بهره مندشي
په کامل مقصود خورسندشي

مادې هم په دعا باندې
یادوی که څوک سنه کاندې

بس کړه میا تحمل شاه ته
خپل مقصود کړه زر انشاء ته
(۸م مخ)

په پاسنيو بيتونو کښې، ميزان نه مطلب (ميزان الطب) دی، چه دا کتاب او (طب اکبر) دواړه د ملا محمد اکبر ارزاني تاليفات دي او په فارسي ژبه ديوناني طب درسي کتابونه وو. لومړنی مختصر او دوهم مطول دی.

د ميا تيجمل شاه د طب پوله زده کړه او دهغه د منظوم طب ماخذونه همدا دوه کتابونه "ميزان" او "طب اکبر" بنودل شوی دي. مياصاحب لکه چه پخپله هم ويلي دي دطبي لغاتو يو کتاب جوړ کړی دی. دهغه دغه طبي فرهنګ ياقاموس د دارو ګانو د نومونو دلومړيو توريو په اساس بابونه او هر باب د دارو ګانو د نومونو د دوهمو تورو په اساس فصلونه لري. د بابونو عنوانونه په فارسي او د فصلونو هغه په عربي دي.

مثلاً: "باب اول دربيان ادويه کرحروف اول آنها الف است

فصل الالف مع الالف".

بيا په همدې ترتيب د دارو ګانو نومونه، د پاڼو په څنډو (حاشيو) کښې او دهغو په باب تفصيل: د دارو نوم، دهغه مزاج او خواص او دا چه کوم ناروغيو ته ګټور او څنګه استعماليږي د نظم په متن کښې راغلی دي. د مثال په ډول:

فصل الياء مع الالف

**یاسمین** یاسمین گل دچنبیل دی
مشهور په گل چامبیل دی
رنگ یې سپین شبوی ترې لخینه
خار یا بس په دریم وینه
دري درهم ددې مقدار
په کتاب کښې دی اظهار

**یاقوت** یاقوت کاڼی دی پر اقسامه
سور، سپین، زیړ شین خړ نکنامه
مګر سور خالص بهتر دی
ګران قیمت کمیاب اثر دی
دی له کانه خېژی سل
وي مزاج یې معتدل
یو ماسهدې مقدار دی
قوتناک دارو بسیار دی

## فصل الیاء مع الیاء

**یبروج** یبروج لفظ سریاني یاد دی
دوه اشیاء جفت ترې نه مراد دی
په خلقت کښې چه دوه څیزه
برغ پیدا شي ای عزیزه

یبروج دغه ته و ا ینه
اصطلاح ددوی دا وینه

هر اشیاء دوه زوجه وروره!
چه پیدا شي وایم ګوره!

دسریان علم دا وایه
په یبروج ستایې همغایه

(۲۴۲ م مخ)

په چشمی کلي کښې اوس هم د سنځنوستر هماغسې کلک
دی او بنایې چه د دغسې آثارو ضرورت لا محسوس وي!

---

ماخذونه:

(۱) د میا تجمل شاه د منظوم طب خطي نسخه، د ۱۳۰۴ ورق لیکنه. د میا فردوس شاه فقیرخیل په ذریعه او د نوموړي میا صاحب شفاهي یادداشتونه، په مننه.
(۲) میا فردوس شاه فقیرخیل، شجرهٔ نسب فقیرخانخیل، ۱۹۹۲ م.
(۳) میا وکیل شاه فقیرخیل، دیوان میا حمدالله فقیرخیل مقاله خطي.

* * *

(پښتانه شعراء شپږم ټوک. خطي)

# غلام محمد ختک

غلام محمد ختک د خان بهادر فتح محمد خان ختک زوی، د پېښور د جهانګیرې او سپدونکی د ۱۹۱۹ ع د سېتمبر په ۲۱ مه په جهانګیره کښې د نړۍ رڼا ته راغلی دی.

لوستونکی او د مطالعې خاوند سړی و. په پښتو، فارسي او اردو کښې یې نظم او نثر لیکه. په شعر کښې یې (ختک) تخلص کاوه. اسلم کمالي په یو شعر کښې د ده یادونه او ستاینه کړې ده او دی یې (د خان غلام محمد خان ختک رئیس جهانګیره) په نوم یاد کړی دی.[1]

محمد زمان ختک د شاعر تر مړینې وروسته په ۱۹۲۳ ع کال کښې د ده د ورور او زامنو په مرسته د ده یو لږ

---

[1] اسلم خان کمالي، منتخبات کمالي، د مردان چاپ ۱۹۵۷ ع

پښتو، فارسي او اردو شعر ونه راټول کړي دي او د « رموز خطك (خټک) په نامه يې په همدغه کال په ٥٦ مخونو کښې د پېښور په شرقي مطبعه کښې چاپ کړي دي . (١)

د کتاب په پای کښې د شاعر د مړينې په باره کښې د شمس العلما مير احمد شاه رضوانی د اکبر پوري او مولوي فضل علی د جهانګيري فارسي ويينې هم چاپ شوې دي چې په هغه کښې د شاعر د مړينې نېټه د ١٣٣٧ هرق د لوی اختر ٢٦ مه ښودل شوې ده . چې پاسنه ميلادی سنې سره مطابقت لري .

په پورتنۍ مجموعه کښې د شاعر (١) پښتو قصيدې دي چې دوه يې د انګريز د استعماري حکومت د افسر (روس کيپل) په ستاينه کښې دي . په هدغو کښې د صاحبزاده عبدالقيوم نوم هم يادشوی دی . د پېښور د اسلاميه کالج د تأسيس ذکر پکښې هم راغلی دی .

د غلام محمد خټک په نورو شعرونو کښې د علم د تشويق مضمون اوري راوړي ، چې يوه نمونه يې دلته وړاندې کوو :

---

(١) محمد زمان خټک ، ديباچه کتاب (رموز خټک) ، پېښور ، د ١٣٤٢ هرق چاپ .

شګفته به وي مدام ګلزار دعلم
بې خزان دی په جهان بهار دعلم

هنګامه به وي دعلم همېشه ګرمه
روز افزون رونق لري بازار دعلم

عندليب يې چه هېڅرې خاموش نه وي
هغه دی تروتازه شاخسار د علم

چه په نوې اداء تل د لفريبي کا
داحسين دی بېګمان نګار دعلم

جولانګا چه يې ميدان ددرست عالم دی
هغه دی ګرم عنان شهسوار دعلم

چه ايوان يې د فلک سره سيالي کا
هغه دی بلند همت معمار دعلم

په پابوس يې افتخار چې خلق کاندي
هغه سردی چې لري دستار دعلم

چه په حرف سره او به یې لا زیاتېږي
دی دا بحر ناپیدا کنار د علم

د قلم توره په لاس راځه میدان ته
ای افغانه دی ننوځ پیکار د علم

اې خټکه شور کوه نا امید مه شه
عاقبت به واوري قوم اخبار د علم

* * *

(پښتانه شعراء څلورم ټوک)

# میا آزاد ګل (کاکاخیل)

میا آزاد ګل د میا مطهر ګل زوی په ۱۸۹۵ ع کال د زیارت کاکا صاحب په کاجي خېلو کښې زېږېدلی دی او د ۱۹۵۰ ع کال د فروری په پنځمه مه او د خپل کلي په هدیره کښې ښخ شوی دی. ښاغلي همېش په پښتانه لیکوال کښې دده په باره کښې لیکي:

ابتدائي تعلیم یې په خپل کلی کښې کړی دی. د اتلسو کالو په عمر د دیوبند په دارالعلوم کښې شامل شو.

په ۱۹۱۷ ع کال ډیلي ته ولاړ او هلته په طبیه کالج کښې داخل شو. د طبابت د سند له اخیستلو نه وروسته بېرته وطن ته راغی. د «تعلیم القران» په نوم یې دیوانجمن تاداو کېښود. دوه کاله وروسته یې په مردان کښې یوه شفاخانه پرانیستله. ددې په څوا کښې یې د «افغان» په نامه په پښتو او اردو یوه مجله جاري کړه. په ۱۹۲۹ ع کې پر ښکیا نو دغه مجله ددې

شعرونو له املـه بنده کړه :

اوس اجرا د افغان مانه شو له ګـــرانه
راپسې دي د پو لیســـ افسران پټ پټ

رنځ وغم د قـوم که مانه ګرځـیـا پېږدی
آه! پښتون و نه کړوځانله سامان پټ پټ

* * *

دده د شعر بله نمونه :

شته دی د پېرې مرغلرې په دریا
چه ښایست یې سمندر کښې شوتالا

ډېرې جونې سروقدې نازنینې
د لحد د تورو خاورو شوې فـدا

زیږ ګلونه عنبر بو یه په ځنګله کښې
خوشبویي یې شي برباده په بیدیا

په موسم د ژمي بدر په آسمان کښې
رڼایي یې شي برباده شایه شـــا

د غریب سړي ځواني له ډېره غمه
ضایع کېږي په تکلیف او په عنا

څوک چه وایي ته بلا دي بلاسختې
له هجرانه سخته نشته دی بلا

بې وقوفه په دنیا کښې خوشحالي کړې
د غم برخه یې لیکلې ده دانا

داکاروند د قدرت دي آزادګله
راز د خدای د معرفت دی هویدا

(د پښتانه شعراء څلورم ټوک)

# میا حبیب ګل (کاکاخېل)

میا حبیب ګل د زیارت کاکا صاحب او سېدونکی په ۱۳۰۵ هـ ق کال مړ شوی دی ، د زېږېدو نېټه یې نه ده معلومه. په خپله زمانه کښې به یې خلکو ډېر احترام کاوه ، شاعر، عالم او فاضل سړی تېر شوی دی.

په پښتو کښې یې تالیفات په دې ډول دي:

۱- دافع الغم ، د اصحاب کهف کیسه .
۲- قصهٔ عجیب وغریب.
۳- قصهٔ شمس وقمر، د فارسي مهر وماه ترجمه .
٤- زاد الفرح ، د مفرح القلوب ترجمه .
۵- ګلدستهٔ حکایات .
٦- بیاض .

ویلی شي چه د بیاض پنځه سوه مخونه دي . سربېره پر پښتو، فارسي شعرونه هم لري ، په پنځوس مخونو کښې د

معین الدین شعرونه دي . د بیاض ډېره برخه د میا حبیب ګل په شعرونو ډکه ده او د پښتو د لرغونو شاعرانو شعرونه هم شته چه ډېره برخه یې د دغو شاعرانو ده :

علي خان ، میا ګل ، معطی، نجیب ، هجري، عبدالوهاب ،
امید ، آدم ، رشید ، علي جنګ ، کامګار ، قاسم ، نادر ، احسن ،
شیدا ، فضیل ، شاه غریب ، شمشیر ، یونس ، عبدل ، صدیق
فاضل ، عصام ، کاظم ، سکندر ، صدر خوشحال ، اشرف ،
معزالله ، عبدالغفور ، عبدالعلیم ، عبدالصمد ، دولت ، نور محمد ،
شمس الدین ، دوست محمد ، قلندر ، طلب شاه ، میرزا ،
مهین ، حسین ، عثمان ، ابراهیم ، افضل ، خادم ، مزین ،
مسعود .

مونږ وینو چه په دغو کښې د خوشحال ، هجري او شیدا غوندې مشهور شاعران هم شته او د نادر او شاه غریب غوندې نادر او غریب کسان هم ؛ چه تر اوسه یې په تذکرو کښې تذکر هم نه دی شوی . لاندې بیتونه اغلبًا د میا حسیب دي چه د ده د شعرونو د نمونې په توګه وړاندې کېږي او له بیاض نه د صدیق یو غزل را نقل شوی دی[1]

(1) همیش خلیل ، پښتانه لیکوال ، د پېښور چاپ ، ۱۹۵ مخ .

د خاطر خوښي مې هر کله په داده
د محمود په سترګو ده سپلې ایازه

چه نوبت یې د اجل د پیالې راشي
د هوا مرغوڼه بند شي له پروازه

طالبان به یې د ذهن په مینه غواړي
که غزل د صدیق یافت شي له بیاضه

○ ○ ○

(پښتانه شعراء څلورم ټوک)

# علامه امیر علي

د جهانګیرۍ د ختکو د حسن خېلو په ټبر کښې ، امیرعلي یو ښه ادیب او شاعر تېر شوی دی .

د ده د ژوندانه د حالاتو او مړینې د نېټې په باره کښې زیات معلومات نه لرو . د ده یو اثر (سرحدکل) نومېږي .

د کتاب په نامه کښې د « سرحد » د کلمې نه څرګندېږي چه د نوموړي د ژوند زمانه پښتونستان له پاره د انګرېزانو له خوا د (سرحد Prontier) اصطلاح د پیداکېدو نه وروسته ده .

له دې شاعر نه اته کتابونه پاته دي چه د اوو کتابونو قلمي نسخې یې ښاغلي اجمل ختک لیدلې دي .

هغه نسخې په دې ډول دي :

۱- نره خوږه مسلمان . پښتو نظم د مسدس په ډول

چه ۹۰۰ بند و نه لري :

۲- کچکول . دامام وردی دقصیده لامیه پښتو منظومه ترجمه او پښتو شرح .

۳- په پښتو نظم او نثر کښې د اخوان الصفاء ترجمه ۳۳۶ مخونه .

۴- مقامات امیر . سفرنامه او د پښتو لغتونو او محاورو خزانه ده .

۵- ښې خبرې . د عربي د مشهور شاعر قلیوبي دیوې افسانې ترجمه .

۶- سرحدی ګل . د سرحد د نامتو مشر کاکاخېل دژوند حالات .

۷- خوږه وږوولي

۸- سحر نی ستوری . (هغه کتاب چه ښاغلي اجمل ختک نه دی لیدلی) (۱)

د ذکر شویو کتابونو له نوموړ څخه څرګندېږي چه:

- علامه امیرعلی د دیني علومو عالم و .

(۱) «اجمل ختک یولیک» «د کابل مجله او یوونکی» «تر کیلشي لاندې» کابل ، ۱۳۲۴ هوش ، دلو ، ۱۱/۱۷۹ مخ .

- په پښتو کښې شاعر او نثر لیکونکی و.
- په دري او عربي ژبو ښه پوهېده.
- د پښتونخوا په سیمو کښې گرځېدلی و او د خپل سفر په یاد ښتونو کښې یې د پښتو محاورو نه زیات کار اخیستی دی.
- دیندار او صوفي مشربه سړی و چه په قدماوو کښې یې د اخوان الصفاء ډله خوښه شوې او په متأخرینو کښې د کاکا صاحب اخلاصمند و.
- ټولې ذکر شوې لیکنې یې په پښتو دي.
ددې په باره کښې ښاغلی اجمل ختک وایي:
"د ژوند د پېړه برخه یې په هندوستان کښې تېره کړې ده هلته د یو راجا منشي و او د همدې امله په بابو امیرعلي هم شهرت لري. هلته یې خلکو ته د پښتو ژبې لوست او لیک ښوده."
د شعر نمونه:

دو دسته سلام جانان ته په صبا د سحر وایه!
د زخمي زړه ارمانونه د وفا په نظر وایه!

زه دردمن یم په فراق کښې د ظلمات شپه تېرومه
کوم وږمې ته به اخلې ای دلبره خبر وایه!

رقيبان زما منزل ته رسېدلي به مرا دي
هرقدم زما په ګل دی، تابکی دا سفر؟ وايه!

پل به پل سجدی کومه، لټوم تا سنګته پورته
په نظرمې ته را نغلې مايوسي د بصر وايه!

د نم زم په يوه څاڅکي جام لبرېز دی ما د پاره
لا به ولې زمانه شي ای ساقي د کوثر وايه!

علامه ما تول علمونه د عرفان په نور نثار کړل
ته تر عمره له استاده سبق زيد و بکر وايه!

د يو رتني شعر په پای کښې د ده د خپل نوم يا تخلص پر ځای
خپل علمي لقب او شهرت (علامه) ذکر کړی او له دې نه هم
څرګندېږي چه دی مشهور مذهبي عالم و.
د کسر له لوېرېه کړی نه دا راوځي چه علامه تول
رواجي علمونه لوستي وو، هغه مقام ته رسېدلی وچه دا تول
يې د تصوف او عرفان له رڼا نه ځارول.

(د پښتانه شعراء پنځم ټوک)

# شهباز خان خټک

د خوشحال خان خټک پلار هم شهباز خان نومېده، خو دلته مطلب شهباز خان خټک د محمد نواز خان خټک (۱۹۱۱- ۱۹۸۳م= ۱۳۲۹- ۱۴۰۴هـق) پلار دی. محمد نواز خان خټک مشهور لیکوال او شاعر و. د ده په روایت شهباز خان خټک (پلار یې) هم د پښتو ژبې شاعر و. هغه د خوشحال خان خټک له اولادې څخه د نوښار په شید و نومي کلي کښې د اولس د مشر او خان په توګه ژوند تېر کړی دی.

د هغه د شعر نمونه:

دا زما د ځان علت دی، که علت دی آسماني
کله لرشي، کله بر شي عجیبه ده حیراني

دخوبانو په بازار، موندی نه شي وفادار
ستمګار وجفاکار شولو وا په ارماني

قسم قسم شبه ځوانان، یا حاتم یا نوشیروان
پاته نه شو په جهان، چیرته یې نښته نشاني

ای شهبازه ګنهګاره څه ته بنه دځان دیاره
دنیا ښکره ده مکاره، نکښی شته ده پښیماني (۱)

(پښتانه شعرا، پنځم ټوک)

---

(۱) وګورئ :
زلمی هیوادمل د حقیقت ګلونه، مقدمه، کابل، د ۱۳۶۳ هش چاپ.

# محمد زمان خټک

محمد زمان په پنځم پښت افضل خان خټک ته رسیږي چه هغه د اشرف خان هجري او هغه بیا د خوشحال خټک زوی دی.

محمد زمان خان په ۱۸۶۱ م (۱۲۷۸ هـ ق) د خټکو په اکوړه کښې زیږیدلی دی. پس له ګیوالی د حکومتي خدمتونو په صله کښې د «خان بهادر» او «ا م . بي . ا ی» القاب ورکړي وو، خو وروسته یې بیا دغه القاب پرېښودل او د قام له خوا د «خان اعلی» لقب ورکړی شو. د پښتو، اردو او فارسي شاعر و. د اشعارو یوه مجموعه یې د «افکار خټک» په نامه په ۱۹۴۸ م کښې او بله یې د «اسرار خټک» په نوم په ۱۹۵۸ م کښې چاپ شوې ده. (۱)

---

(۱) همېش خلیل، پښتانه لیکوال، پېښور، ۱۹۵۸ م.

نوموړی د ۱۹۶۱ م (۱۳۸۱ هـ ق) په شاوخوا کې د سلو کلونو په عمر مړ شوی او په اکوړي کښې ښخ دی.(۱)

د شعر نمونه:

هره ورځ یو نوی شان وي
دیده ورو ته عیان وي

دې بدیع آسمان ته ګوره
او بسیط ځمکې ته ورووره

دا یقل ستوری د آسمان
ثوابت دي که روان

لمر سپوږمۍ هم خرامان
منازل ته خپل روان

کهکشان دی که پروین دی
د مسلک په سنه آیین دی

دا افلاک دا کُل اجرام
وقف کار دی په نظام

دا انسان د رزق په کار دی
چه مامور له کردګار دی

(۱) د اجمل خټک له یادښتونو څخه.

د موسمو تبدیلي
که باران وي که سیلۍ

د هواو رواني هم
دوربځو رواني هم

چاکري د مخلوق کاندي
د خالق د حکم لاندي

محمد زمان خټک د ۱۹۲۸ م د جون په ۲مه ، د خدائي خدمتګارو پښتون مجلې ته یو لیک استولی او چې هغه کښي یې دا مجله دا رنګه ستایلې ده : (۱)

د کړلاڼ او سره بن په خاندان کښي
د "پښتون" خبروخه لذت پیدا کړ

د افغان د خیالاتو آئینه د ٥
قیمتي وجود دې څه قدرت پیدا کړ

رساله ده یا نسخه د مسیحا ده
په مرده زړونو چه ئې نصرت پیدا کړ

---

(۱) پښتون مجله ، د ۱۹۲۸ م د جولای میاشت ۳مه ګڼه .

مبارک يې شه را تــله د روه ديارته
چه د قوم په نـنـز د يې د بر عزت پيداکړ

هر مضمون يې د حکمت سبه ګنجينـه د ه
هر هر لفظ يې يو تـازه رحمت پيداکـړ



( پښتانه شعراء پنځم ټوک )

# حکیم عبدالخالق خلیق

عبدالخالق خلیق د حافظ عبدالحق زوی په ختیه ختک د ۱۳۱۳ هـ ق کال د میاشتي ( ذی قعدة الحرام ) په ۱۷ مه ( ۱۸۹۵ م ) د پېښور د نوښار د مانکي په کلي کښې زېږېدلی او د ۱۳۹۸ هـ ق د صفری میاشتې ( صفرالمظفر ) په ۱۶ مه ( ۱۳۵۶ هـ ش د دلو ۶ مه ، د ۱۹۷۸ م د جنوری ۲۶ مه ) هملته مړ او ښخ دی .

زده کړه یې د خپل کلي په جوماتو کښې پیل کړه . عربي او دري ژبو کښې یې ادبي او دیني کتابونه ولوستل او د طب له مشهورو پوهانو څخه یې د یخوالي یوناني طب کتابونه ولوستل. په نتیجه کښې یې په خپل کلي کښې په ۱۹۱۷ م کال د طبابت دکان ( کتنځی او درملتون ) پرانیست . د دې له امله د حکیم عبدالخالق خلیق په نامه مشهور شو.

هغه له ورو کوټوالي نه له پښتو شعر او ادب سره مینه لرله

اود ځوانانو په موده کښې سیاسي ډګر ته ورګډ شو، په
انجمن اصلاح افاغنه کښې له باچاخان سره ملګری او بیا خدايي
خدمتګار شو او د ډېر وخت ترپایه پورې په خپله تاکلې لاره
سم روان و.

په ۱۹۳۰ م کال کښې یې د (خدايي خدمتګار) په نامه ډرامه
ولیکله. هغه ډرامه یې خان عبدالغفارخان ته واوروله. د هغه
خوښه شوه، دی یې د خدايي خدمتګارو د نشر اتي ارګان
(پښتون) مجلې د ایډیټر (مسؤل مدیر) په حیث وټاکه.
د باچاخان تر مستقیمې لارښوونې لاندې یې هغه مجله
تر ۱۹۴۷ م کال پورې په ښه پسې ډول او ښه معیار وچلوله.
همدغه راز کله چې په نوښار کښې د پښتو ادبي جرګې اساس
کښېښودل شو، نو خلیق صاحب د هغې جرګې صدر وټاکل شو.
په ۱۹۳۸ م کال خلیق صاحب د هغې کمېټې غړی شو چې د اولسي
مدرسو له پاره یې پښتو درسي کتابونه تیارول. د هغو د چاپ
کار هم د ده ته وسپارل شو.

کله چې د پاکستان تر جوړېدو وروسته په خدايي خدمتګار
سخت بندېزونه ولګېدل او پښتون مجله بنده شوه، نو خلیق
صاحب له خپل کلي نه د پېښور ښار ته راغی او د پښتو ژبې او
ادب خدمت ته یې په بله طریقه ملا وتړله.

صفحه د کتابونو د تجارت او چاپولو اداره پیدا نیستله.
دا د قصه خوانۍ په بازار کښې «اداره اشاعت سرحد»
د چاپ او خپرولو مؤسسه ده چه هلته یې زیات پښتو کتابونه
چاپ کړل او د کتابونو د تجارت له لیارې یې د پښتو ادب له
ترویج سره مهمه مرسته وکړه.
د اوسني لیکوال، لیکوال لیکي:
«خو افسوس چه استعمارچیانو د پښتو ژبې دا صادق
خدمتگار پرې نښود چه حتی د خپلې مورنۍ ژبې دپاره یوازې
ادبي او علمي خدمت هم وکړي او اوس چه دا کرښې لیکم
ښاغلی خلیق د دې پر ځای چه په اداره اشاعت سرحد کښې
د پښتو او پښتنو لپاره خدمت وکړي د پښتو او پښتونو له
په جرم د پاکستان د استعماري حکومت په تور زندان کښې راز
راز تکلیفونه، ربړونه او مشقتونه ګالي...»
ښاغلي همیش خلیل دده په باب لیکلي دي:
«هر قوم ته په خپله مورنۍ ژبه د ابتدائي تعلیم د نظریې قایل
دی او د خپل قام بچو دپاره یې هم د خپلې دغې مقصدي نظریې
په حقله په اکثرو جلسو او مشاعرو کښې قراردادونه پیش کړي دي...»
عبد الخالق خلیق تر نن کلا کابل ته هم راغلی دی.
د هغوله جملې نه یو ځل په ۱۳۲۷ هـ ش کال (۱۹۴۸م) د پښتو ټولنې

په بله د افغانستان د استقلال دد پرشمې کلیزې په جشن
کښې د ګډون له پاره د پېښور د لیکوالو په هئیت کښې کابل ته
راغلی او د پښتو لیکوالو په هغو غونډو کښې یې فعاله برخه
اخیستې ده چه د پښتو لیک دود په باره د پښتو ټولنې له خوا
دایرې شوې وې . همدارنګه یې په هغه پښتو مشاعره کښې
برخه اخیستې او خپل شعرونه یې اوروللي دي چه په افغانستان
راډیو کښې شوې وه .. (۱)

عبد الخالق خلیق د پښتو خوږ ژبی شاعر، لیکوال، ادیب،
ژورنالست او ډرامه لیکونکی ، د خدايي خد مګارو د ملي آزادی
غوښتلو په جنبش کښې پوره مرسته کړې ده او په د غه
روحیه یې د پښتو ادب ته د قدر وړ لیکنې وړاندې کړې دي.
په اداره اشاعت سرحد کښې یې هم زیات شمیر ارزښتمن ادبي
تاریخي پښتو کتابونه چاپ کړي دي .

د هغه خپلې لیکنې دا دي :

۱ـ خدايي خد مګار ډرامه ، ۱۹۳۰م کال .

۲ـ شهیده سکینه . چه د ښځو په حقوقو باندې تېرې
یکښې غندل شوی او د یوې مظلومې ښځې د اعتراض غږ یکښې

(۱) ددې موضوع د تفصیل لپاره وګورئ : ادبي جرګې ، کابل ، پښتو ټولنه ، ۱۳۲۷ هـ ش

پوره شوی دی .

۳- خوږ ژوندون : اصلاحي ډرامه ده .

( داوړي وایه ډرامې چاپ شوې دي )

٤- د آزادۍ جنګ : د انګریز د استعماري حکومت په مقابل کښې د پښتنو، په تېره بیا د خدایي خدمتګارو د مبارزو او مقابلو سترګو لیدلي حالات او پېښې پکښې لیکل شوي دي . دا پېښې له ۱۹۰۷م نه تر ۱۹٤۷م کال پورې اړه لري . دا کتاب یو ځل په ۱۹۶۱م کال او بیا په ۱۹۷۲م کال په پېښور کښې چاپ شوی دی .

۵- زه او زما زمانه : د ا اثر په پښتو منثور لیکل شوی دی او شاعر پکښې د ځان او خپلوانو پېژندګلوي کړې ده او بیا یې هغه پېښې یا دې کړې دي چه یا د ده له نظره مهمې دي او یا ده پکښې برخه درلوده .

دا پېښې د شاعر له پیدایښت نه تر ۱۹۶۷م کلونو پورې اړه لري .

- د خلیق صاحب مقالې او شعرونه په پېښور کې په پښتون ، آزاد پښتون ، زلمی پښتون ، نن پرون ، لار ، رهبر او د وژان مجلو کښې او د لته په کابل مجله ، زیری ، هیواد ، ورځپا نو او نورو کښې

چاپ شوي دي. (۱)

د شعر نمونې:

## د شهيدانو ياد

دا شعر د ۱۹۳۰م کال د اپريل په ۲۳مه د انګرېزانو د استعمارګر حکومت له خوا د قصه خوانۍ د قتل عام او خونړۍ پېښې په ياد د همغه کال دمې په څلورمه د شاعر له خوا د خدايي خدمتګارو او په زرګونو آزادۍ غوښتونکو خلکو په لويه جلسه کې اورول شوی دی:

(۱) د عبدالخالق خليق په باره کښې د زيات و معلوماتو لپاره وګورئ:
- هميش خليل، پښتانه ليکوال، پېښور، ۱۹۶۱م
- عبدالحليم اثر، عبدالخالق خليق، انصاف اخبار، پېښور، د ۱۹۴۹م کال خاصه ګڼه (دا ډېره دلچسپه مقاله ده).
- عبدالخالق خليق، زه او زما زمانه، پېښور، ۱۹۶۷.
- عبدالخالق خليق، د آزادۍ جنګ، پېښور، ۱۹۶۱م - ۱۹۷۲م
- د باچاخان ليکونه، کابل، د ۱۳۶۳ هـ ش کال چاپ.
- اوسني ليکوال - لومړی ټوک، کابل، ۱۳۴۰ هـ ش
- زلمی هېوادمل، ارواښاد خليق، زيری، د ۱۳۵۶ هـ ش د دلوی ۱۹مه.
- ارواښاد خليق د مؤلف او ناشر په توګه، زيری، ۱۳۵۶ د دلو نولسمه.

ای آسمانه! ولې نه شوې رانسکور؟
ای آفتابه! ولې نه یې د غمه تور؟

لویو غرونو! ولې ریز مریز نه شوئ؟
ونو، بوټو! ولې نه سوزئ په اور؟

ځمکې پرهٔ له دپره درده ولې نه چوې؟
ستا د پاسه څومره ویر دی، څومره شور؟

پښتونکښې په تاجوره کربلا شوه
یو ماتم دی، یو الم دی یو انګور

څوک غلبیل سینه پراته دي په میدان کښې
څوک وړک لټوي کرځي پلار او مور

ای ظالمه حکومته، راته وایه!
په غریب رعیت چا کړی دومره زور

تازمونږ لیډران ولې دي نیولي؟
جیلخانه کښې بندیوان دي په کوم تور؟

کوم په دوی کښې بد معاش او کوم خوني دي؟
څوک په دوی کښې زنا کار دی او کوم چور؟

دا یې بد وي؟ چه راځۍ چه سره بیوشو
اتفاق نمونږ پکار دی د خپل کور

دا ګناه ده؟ چه دوی وایي شراب مه څښئ
ګنهګار په هر مذهب دی شراب خور

صد لعنت شه ستا په داسې تمیز باندې
تور ته سپین وایې او سپین ته وایې تور

نن دې وار دی چه څوک وژنې او که نیسې
تل به نه وي ستا د ظلم باغ سمسور

ستا کاسه څو ورکه شوې معلومیږي
یقین نه دی چه ته وپایې څه نور

یوه ورځ به داسې راشي پیر نګیه!
ته به نه یې نه به ستا وي نور او شور

مګر پاتې د تاریخ به وي تل پتوري
ستا په دعو کارنامو د ظلم و زور

رابیدار شئ ای زما د وطن وروړنو!
د ملت له پاره وسوزئ په اور

پس له دې نه خو یا ژوند د آزادۍ دی
یا چې بند په تورو خاورو شو د ګور

○ ○ ○

## د ژبې ژوند

زهر قاتل د غیر د جام آب حیات کښې وینم
جادوګري د غیرو ژبو کرامات کښې وینم

نه مار خوړلی د عراق په تریاق نه رغیږم
نه روغ صورت د خپل یار وې په ملاقات کښې وینم

طبیبه! ته که دارو کړې زما د ژبې وکړه!
نه خپل ژوندون د خپلې ژبې په حیات کښې وینم

پښتو ده ژبه د زړګونو پښتنو قبیلو
نن یې یتیمه په خپل ملک، سمه اوسوات کښې وینم

چه دي مجبوره دیر دي ژبې په لیک او لوستو
هغه بدبخته یو پښتون په مخلوقات کښې وینم

ابتدائي تعلیم د هر یو قام په خپل زبان دی
مګر بچي د پښتون ګیر په مشکلات کښې وینم

اول تعلیم په داسې ژبه ورکیدی شي ده ته
چه هریو فرد ترې ناآشنا په خپل دیهات کښې وینم

چه پرديٰ ژبه ذریعه ده د پښتون د تعلیم
ځکه یې ناجانه په هر قسم کمالات کښې وینم

په عربي او انګرېزي به علامه وي د وخت
مګر امی بی (۱) د پښتو ژبې لغات کښې وینم

پښتونه ته که په دنیا کښې خوارې ژوند د عزت
او څه جذبه د ترقۍ هم ستا په ذات کښې وینم

یا څه خدمت د پښتو وکړه او خوره کړه پښتو
ګنې آخر به دې افسوس او په هیهات کښې وینم

## غزل (۲)

خلق وایي وصال ښه دی، نه وایم هجران ښه دی
مل د یو ګړۍ ښه دی، که مل د هر زمان ښه دی؟

---

(۱) بې : بې لې
(۲) د غزل ماخذ : تازه ګلونه ؛ د شېر محمد خدمتګار تدوین - خطي نسخه .

یار هغه ته وایه چه په غم کښې دې ملګرې وي
وصل د راحتې یار دی، دا کله په ځان سبه کړي

داچه فیصله شو چه خوراک به د زړه خون مې وي
هسې به یې څه خوند وي د افغېزن زړه مې بریان سبه دی

لاس چه په ګردن کښې د جانان مې حمایل نه شو
وس مې په چا نه رسي، نو لاس مې په ګریوان سبه دی

زه د اکو ښېښ نه کوم چه ورېږي ارمان زما
بیا به مل وي څوک زما؟ ملګری مې ارمان سبه دی

تا زلفې پرېشانې کړې زه دې پرېشانه کړم
دواړه چه پرېشانه شو، نو عمر پرېشان سبه دی



(پښتانه شعراء پنځم ټوک)

# محمد نواز خټک

محمد نواز خټک د شهباز خان خټک زوی دی چې خاني او شاعري ورته له نیکونو پاتې ده . دده د نسب لړۍ د پښتو مشهور شاعر عبدالقادر خان خټک او د هغه پر اسطه د توري او قلم خاوند خوشحال خان خټک ته رسېږي .

محمد نواز خټک په ۱۹۱۱ م (۱۳۲۹ هـ ق) کال د نوښار په شیدو نومي کلي کښې زېږېدلی دی او په ۱۹۸۳ م د فروري په نهمه (۱۴۰۳ هـ ق) کښې مړاو د شید و په هدیره کښې په درناوې خاورو ته سپارل شوی دی .

ده په اووه کلنۍ کښې په خپل کلي کښې په زده کړه پیل کړی دی . د پښتو او فارسي نظم او فقهي کتابونه یې د کلي له ملایانو نه ویلي وو ، ورسره په انګریزي مدرسو کښې هم شامل شوی او په ۱۹۲۸ م کال کې د نوښار (اسلامیه های سکول) له لسم ټولګي نه فارغ شو .

وروسته یې د ژوند تر پایه پورې یې ادبي، سیاسي او اجتماعي موضوعګانو کښې خپله مطالعه جارې ساتلې ده.

محمد نواز خټک له های سکول نه تر فراغت وروسته سرکاري ملازم شو. په دغه وخت کښې د برتانیې استعمارګرو قوتونو د هند په نیمه وچه، خصوصاً په سرحد کښې د ظلم او ستم بازار ګرم کړی وو. د سرحد پښتانه سیاسي مشران له دغسې ناتار سره په مبارزه بوخت وو. د خان عبدالغفار خان تر مشرۍ لاندې انجمن اصلاح افاغنه، چه وروسته بیا ترې «خدايي خدمتګار» حزب جوړ شو، د انګریزي استعمارګرانو په مقابل کښې یې میړانه مبارزه کوله او هڅه ئې کوله چه په پښتنو کښې د اولسي پوهاوي، د رسمونو رواجونو اصلاح او د تعلیم او زده کړې او کسب وکار د ترویج او تشویق له پاره هلې ځلې کولې.

محمد نواز خټک د خپل وخت د سیاسي، اجتماعي شرایطو لاندې په ۱۹۳۰م کال، رسمي ملازمت پرېښود او د مبارزې او سیاست لور ته ئې مخه کړه.

د هغه معلوماتو له مخې چه ما له باخبرو کسانو څخه اخیستې دي، محمدنواز خان خټک رسماً د کوم حزب غړی نه و، مګر د استعمار په ضد یې د خان عبدالغفار خان او د هغه د ملګرو ملګرتیا کوله. په دې مبارزو کښې یې ادبي استعداد هم غوړېدنې وکړې.

دهغه وخت په اخبارو نواو مجلو لکه: "پښتون"، "آزاد پښتون" او نورو کښې یې سیاسي، اجتماعي او انتقادي مضمونونه او شعرونه د «شیدوي خټک» په نامه خپرېدل.

شیدوي نوان خټک په ۱۹۳۲م کښې د استعماري حکومت په ضد دیو پاملیت د شایع کولو په شک ګرفتار او بندي شو. په ۱۹۳۷م کال د پښتون د سټرکټ بورډ په ضمني انتخاباتو کښې یې مقابلې کامیاب شو.

نوازخټک د نوښار دادبي جرګې، چه په ۱۹۳۳م کال د پښتو ژبې او ادب دخدمت لپاره جوړه شوې وه، له مؤسسو او فعالو غړو څخه و. نوموړي د ژوند په وروستیو کلونو کښې د مردان د «ادبي دوستان» په نامه د یوې بلې ادبي ټولنې سرپرست و. همدارنګه یې څینو نورو ادبي او فرهنګي ټولنو کښې د غړي په توګه پاته شوی دی. نوموړي په ۱۹۳۷م کال کښې د «وطن» په نامه یوه اوونیز جریده تاسیس کړه.

محمد نوازخټک د خپلې سیمې خان و، مګر د پښتونولۍ او انساني اخلاقو له مخې یې خلکو سره روابط ښه وو، دوستانه او د متقابل احترام او همکارۍ له مخې وو.

نوازخټک د پښتو ژبې شاعر او لیکوال و چه د دې ژبې د

پر بخټک او ادبي ترقۍ لوړه آرزو یې د ژوند، کار او فعالیت د لارې مشال و. شعرونه او مقالې یې لیکلې، مشاعرې یې جوړولې او چاپولې، ادبي جرګې یې جوړولې، ادبي څېړنې یې کولې، د سیمې د شاعرانو د تذکرو د ټولولو هڅې یې کولې او دا سې نور.

## د محمد نواز خټک آثار:

(۱) بنا غلی پښتون: ۱۹۴۰م، پېښور، د خوشحال خټک پر مزار د مشاعرې رویداد.

(۲) د تورې او قلم خاوند: ۱۹۴۹م، پېښور د خوشحال خان خټک د مزار د تعمیر د پرانیستو د ورځې د ادبي غونډې د شعرونو او مقالو مجموعه او د هغې د لیکوالو او شاعرانو پېژندنه ده، چې تراوسه درې ځله چاپ شوې ده.

(۳) د تورې او قلم خاوند: ادبي څېړنه، پښتون مجله، د ۱۹۷۱م کال د جون او جولايي ګڼه.

(٤) خوشحال خټک او حسن آورد؛ ادبي څېړنه، پښتو مجله، د ۱۹۷۶م کال د اپریل ګڼه (خوشحال نمبر)، پېښور، پښتو اکیډمي.

(۵) خوشحال خټک د پښتونوالي نماینده شخصیت، ادبي - تاریخي څېړنه، پښتو مجله، د ۱۹۸۰م د اپریل، مې، مارچ ګڼه (خوشحال نمبر).

(٦) د رحمن بابا په باره کښې ادبي څېړنه، اسلم مجله، ۱۹۵۰م کال

دا پریل، می گڼه ( رحمان لمبر ) .

(۷) د رحمان بابا شاعري ، لار مجله ، د ۱۹۵۷م کال دا پریل گڼه .

(۸) په مردان کښې د پښتو ادب د لیکوالو او شاعرانو تذکره ، (نا چاپ)

(۹) درې مشران : د عبدالاکبر خان اکبر ، عبدالخالق خلیق او مینوش د ژوندانه او آثارو په باره کښې ، پښتو مجله ، ۱۹۷۸م کال د جون گڼه .

(۱۰) د سوات صاحب پیر او مرشد : د یو شمیر پښتنو شاعرانو صوفیانو پیژندنه ، پښتو مجله ، ۱۹۸۲م فروری ـ مارچ گڼه .

(۱۱) وفات نامې او تاریخي وختونه ، تېره مجله .

(۱۲) د خیالونو پسرلی : د شعرونو مجموعه .

(۱۳) ما واخله : د شعرونو مجموعه .

(۱۴) دولې : د شعرونو مجموعه ( چاپ شوې ده )

محمد نواز خټک له علم او ادب سره د شعوري علاقې له مخه د خپل ژوندیه موده کښې د پښتو ، فارسي ، اردو او نورو ژبو زیات شمیر خطي او چاپي کتابونه راټول کړي او یوه لویه کتابخانه یې جوړه کړې چه ځینې ونکو تل ترې استفا ده کړې ده . په دې کتابخانه کښې د پښتو ادب نادرې او نایابې نسخې هم شته .

د محمد نواز خټک د علم، فضیلت، شاعرۍ، لیکوالۍ او درونـد شخصیت د نمانځنې له پاره ترمړینې وروسته د سیمې شاعرانو او لیکوالو پر مزار یوه درنه ادبي غونډه او مشاعره وکړه او د «عقیدت ګلونه» پې پرې وشیندل.

بناغلي اجمل خټک ته د مشاعرې د رارسېد لو کسیتونو له مخ «د عقیدت ګلونه» د ښاغلي زلمي هېواد مل له خوا بېرون نوېس او په ۱۹۸٤م کال په کابل کښې چاپ شوه، چې دده مقدمه هم ورسره مله ده .

## د نواز خټک د شعر نمونې:

# آزادي او غلامي

آزادي بلبل د باغ    غلامي زغن او زاغ
غلامي د بېلتون شپه ده    آزادي د یار سراغ
غلامي پیاله د زهرو    آزادي د ژوند ایاغ
آزادي کښې ښایست راځي    غلامي د ښایست داغ
غلامۍ کښې ځمکه تنګه    آزادۍ کښې ملک فراغ
غلامۍ کښې خیال کچه وي    آزادۍ کښې ښه دماغ
آزادي بهار ښوازه
سمسور کړي باغ و راغ

## غزل

شوله نن مې رسا جوړه
له موسکا مې ژړا جوړه

دنيا جوړه مې شوه ورانه
له رقيب کړه آشنا جوړه

آشنا جوړه چه کړه ورانه
شوه مې ورانه دنيا جوړه

د نيمګړي ژوند قصې ده
لګوله واوره له ما جوړه

دا ناروغه نصيبه مې
شي به ستا په موسکا جوړه

دا غزل نو ازخټکه!
شوه په ناز و اداء جوړه

## د غلامۍ اختر

د غلامۍ طوق د لعنت په غاړه
چه د چاوي هغه اختر څه کوي؟
په تاخو هر وخت محرم دي ژاړه
ستا په اختر به څوک باور څه کوي؟

# اتفاق

هغه ملک چه را پیدا کړي اتفاق
تکبر، حسد کړي لرې هم نفاق

سربالا به په جهان کښې وي نیکنامه
د تعریف نه به یې ډک شي ډېر اوراق

* * *

محمد نواز ختک په ۱۳۲۷ هـ ش (۱۹۴۸ م) د سنبلې په اوله د افغانستان د خپلواکۍ د دېرشمې کالیزې په جشن کښې د برخې اخیستو له پاره د پښتو ټولنې په بلنه، د پېښور د ادیبانو په هیأت کښې کابل ته راغلی او لس ورځې یې د لته فرهنګي مؤسسې کتلې، د پښتو لیک دود په باره کښې یې په جوړ و شویو جلسو کښې برخه اخیستې ده او په افغانستان راډیو کښې یې د پښتنو شاعرانو په مشاعره کښې ګډون کړی او د خوشحال ختک په باره کښې یې خپل شعر او له هغه نه د مخه یې د استقلال په باره کښې دا قطعه اورولې ده:

په هر کور کښې خوشحالي ده
جشن دی د استقلال
مبارک مو خوشحالي شه
ژوندو مو او سه په کمال
د ختک د غه دعا ده:
خوشحال اوسې کال په کال (۱)

(۱) په دې باره کښې وګورئ: ادبي جرګې، کابل، پښتو ټولنه، ۱۳۲۷ هـ ش.

# محمدشاه خیال کاکاخیل

محمدشاه خیال کاکاخیل د حاجي میا امیرشاه زوی په ۱۲۹۲ هـ ش (۱۹۱۳ ع) کال دپښتونخوا د اشنغر په کردو نومي کلي کښې زیږیدلی او د ۱۳۴۹ هـ ش د سنبلې په ۱۹ مه د لاهور په یوه دمغتون کښې مړ شوی دی او د خپل کلي په هدیره کښې ښخ شوی دی .

په ادب تاریخ ، جغرافیه، ریاضي او سیاسي موضوعاتو کښې یې په خصوصي توګه تحصیل کړی و . په انګرېزي ، دري او عربي پوهېده او د پښتو ژبې ښکلی لیکوال او شاعر و . سیاسي خیال په ورځوالي کښې په « انجمن اصلاح افاغنه » کښې د فخر افغان عبدالغفار خان سره ملګری شوی ،

په ۳۰ - ۱۹۲۹ ع کښې چه د آزادۍ تحریک شروع شو ، ده پکښې پوره برخه اخیستله .

کله چه « انجمن اصلاح افاغنه » په « افغان جرګه » ونومول شوه هم

ته ېکښې و. او کله چه په ۱۹۳۱ع کال کښې «افغان جرګه» دیوې دلې په حیث د هند له کانګرس سره یو ځای شوه، نو بنا غلي خیال له دې کار سره د نظریاتي اختلاف له مخه، برخه پکښې وانه خستله.

یو څه موده قرار کښیناست، بیا کابل ته راغی او د افغانستان تابعیت یې و مانه. په ۱۹۵۳ع کال د پښتو خوانۍ صوبه سرحد حکومت دی د تحفظ عامه د قانون لاندې و نیو او شپږ میاشتې یې نظربند وساته.

کله چه په افغانستان کښې اغتشاش و، په لاهور کښې یو اخبار د «افغانستان» په نامه خپرېده. ښاغلي خیال د دغه اخبار پښتو برخه چلوله. د افغانستان تباهي یې د ټول پښتنو تباهي ګڼله او په دې باره کښې یې مقالې خپرولې.

په پښتو ژبه دده تالیفات دا دي:

۱- تاریخ الامت، اته جلده، له اردو څخه ترجمه.

۲- تاریخ جاپان، له اردو څخه ترجمه.

۳- د دنیا سیاسي او اقتصادي جغرافیه.

د ښاغلي خیال د شعر په لومړۍ نمونه کښې چه دده هغه شعر وړاندې کړو چه څو کاله د مخه په کابل راډیو کښې، د پښتونستان د مشاعرې په لړ کښې په خپله ورولی و.

پاکه مې تو منه آریا په توک افغان یاد یږم
زوی زه هېڅکله دچا نه، پلار د جهان یادېږم

لوېدیځ، ختیځ واړه جهان مې په افغان پېژني
څه ورک خو نه یم چې به زوی داین و آن یادېږم

وینه رګونو کښې غورځنګ کړي د پښتون په صفت
پښتون په وینه ساتي خپل وطن اوګران ملیت

پښتونولي زما صفت پوره کړه په جهـــان
د امتیاز شمله لرم خپله سوره په جهـــان

که و دارا که سکندر زما صفت یې کـړی
دبا ني پت، کرنال قصه زما خوره په جهان

چې کړه خپله خاوره خیاله داپه دهست جهان نشته
نه تو کیه خلک شته خوساري دافغان نشته

* * *

دخیال دشعر نوري نمونې :

## زلمي ته!

هره شپه سبا کوم ستا په سودا کښېـــې
هره ورځ مې بېګا کېږي ستا په ژړا کښېــې

د هرچا کاروان جوړېږي په بازار کـړه دي
ستا په تپه ترږمی شپه بیدیا کښـــــې

ستا سکوت ، سکون جمود ته حیران وړی
اړخ په اړخ نه بدلیږي په غوغـا کښې

په نشه د دنا پوهیږ هسې ډوب پروت یې
چه د ې سترګې نه غړیږي سپین سبا کښې
خیال دې پښتو ته کله سرته دم د رهې کړې
ته پرېوتی د میږګو توره بلا کښې

## دیار سترګې

سترګې دیار مې دی سپایان مطالبه کوي
امبار داوښکو مې را سپړي اندازه یې کوي

سرتورې اوښکې مې داوښکو په بلـه دزړه مو
زړه مې په دار د اوربل ځنځیر نندارې یې کوي

دخیال داوښکو شهیدان په کربلا دګریوان
دیار بڼو دی صف تړلی جنازه یې کوي

* * *

او داهم د ښاغلي خیال د پښتون زړه نه وتلی فریاد دی :
که هرڅو مې فکر وکړ خیاله یلخه نه جوړیږي
اباسین دی منګرې هند کیان یوځوا افغان یلخوا (۱)

(۱) د ښاغلي خیال د ژوندانه په باره کښې د زیاتو معلوماتو له پاره وګورئ :

(۱) همیش خلیل ، پښتانه لیکوال ، پېښور (۲) عبدالرؤف بینوا اوسني لیکوال - کابل
(۳) ځیرندوی عبدالله خدمتګار بجتانی ، زیری ، د ۱۳۴۹ هش کښې .
(۴) پوهاند رښتین ، کابل مجله ، د ۱۳۴۹ هش کال ۷ مه ګڼه .
( پښتانه شعراء څلورم ټوک )

# سرفراز خان عقاب خټک

سرفراز خان عقاب خټک د حاجي محمد حیات خان مشر زوی د ۱۹۱۱م د اګست په ۲۸ مه (۱۳۲۹ ق) په چارسده کښې زېږېدلی او د ۱۹۸۵م په جنوري یا فروری کښې مړ او د بنو د غلام قادر کلي په هدیره کښې خاورو ته سپارل شوی دی.

د نوموړي پلار د هند د برتانوي حکومت په اداره کښې ملازم نو له دی لوده، تحصیلداري یې کړې دې او یو موده هم د بنو اسسټنټ کمشنر و. د عقاب صاحب د زېږېدنې په وخت پلار یې د چارسدې تحصیلدار و. دوی اصلاً د ککړک د ضلعې د یو کلي (ټټی نصرت) او سېدونکي وو مګر عقاب صاحب پخپله په بنو کښې اوسېده.

سرفراز خان عقاب ابتدائي زده کړه د پښتو نخوا په بیلابېلو سرکاري ښوونځیو کښې سر ته رسولې، اتم ټولګی یې په ۱۹۲۵م اولسم یې په ۱۹۲۹م په پنجاب یونیورسټۍ کښې پای ته ورساوه

او بيا په عليګړ مسلم يونيورسټۍ کښې شامل او په ۱۹۳۳م کال کښې يې هلته په اوله درجه ايم-اې وکړه.

سرفراز خان عقاب په ۱۹۳٦م کال د شپږ و مياشتو له پاره د پېښور راډيو انچارج و. بيا بېرته عليګړ ته ولاړ او په ۱۹۳۸م کال کښې يې له عليګړ يونيورسټۍ نه په اوله درجه د ايل-ايل-بي ډګرۍ واخسته. تر دې وروسته نهه مياشتې د قلات په رياست کښې ملازمتونه ور وسپارل شول. او ل د قلات په سکول کښې هايډماسټر و. بيا ورپسې په مکران کښې A.D.I.S شو. بيا يې له دې کاره استعفیٰ وکړه، بنو ته ولاړ. د دعوو په وکالت يې پيل وکړ او همدا يې پېشه شوه. په دې لړ کښې د پاکستان د هائي کورټ ايډوکيټ هم يا ترشوی و.

نوموړی په ۱۹۳۸م کښې د «اردو سبها بنو» صدر هم ياته شوی و او يو کال د بنو د پښتو ادبي ټولنې صدر و.

سرفراز خان عقاب د پراخې مطالعې خاوند، ښه ژبپوه او نقاد ليکوال و. د پښتو ادبي تاريخ په څېړنو برخو يې څېړنې کړې دي. په پښتو، فارسي، انګرېزي او اردو کښې ليکنې لري. په پښتو، فارسي، هندي، اردو او پنجابۍ کښې يې شعرونه ليکلي. او له پښتو او فارسي نه انګرېزۍ ته او له انګرېزۍ نه اردو او پښتو ته او له اردو نه پښتو ته يې ډېر مطالب په نظم او

او نثر کښې ترجمه کړې دي. په انګرېزي ادبیاتو کښې یې د شکسپیر د آثارو ډېره مطالعه کړې او د هغه ډېر آثار یې په نظم او نثر پښتو کړي دي.

سرفراز خان عقاب خټک د شعر په زیاتره واصنافو کښې حېله طبع ازموېلې ده. د ژوند بېلا بېل موضوعات یې په شعر کښې را نغښتي دي. پر رحمان او نورو یې انتقاد کړی دی. په غزل کښې یې د مینې او محبت خبرې پېیلي دي، د تصوف او عرفان باریکې نکتې یې پکښې ځای کړې دي، ادبي بدیعي صنعتونو نه یې هم کار اخیستی دی.

## چاپي آثار:

الف – پښتو ژبه:

(۱) رحمان بابا: د دوست محمد کامل مومند د (رحمان بابا ۱۹۵۸م) نوې اثر په خواب کښې، پېښور، ۱۹۵۹م.

(۲) خوشحالیات: د خوشحال خان خټک او د هغه د کورنۍ د ځینو ادیبانو په باره کښې د ۲۲ مقالو مجموعه، لنډیزې یې په ۷۲ مخونو کښې په ۱۹۷۵م کال په پېښور کښې چاپ شوی دی.

(۳) د وینس سوداګر: د شکسپیر د اثر منظومه ترجمه د ۱۹٦۲م چاپ.

(٤) کم اختر: ډرامه، په قند مجله کښې په ۱۹٦۰م کال

چاپ شوې ده .

(۵) قومي شاعر : ډرامه ، په "غنچه" مجله کښې په ۱۹۶۰م کال چاپ شوې ده .

(۶) حقونه (افسانه) ، شهباز ورځپاڼه ، ۱۹۷۱م کال .

(۷) غیرت : افسانه ، شهباز ورځپاڼه ، ۱۹۷۱م کال .

(۸) خوېندې لونه : افسانه ، شهباز ورځپاڼه ، ۱۹۷۱م کال .

(۹) شهیدان : افسانه ، شهباز ورځپاڼه ، ۱۹۷۱ م کال .

(۱۰) هی توبه : افسانه ، شهباز ، ورځپاڼه ، ۱۹۷۱م کال .

(۱۱) خوشحالنامه : دځلورو مقالو : خوشحالنامه ، تواریخ حافظ رحمت خاني ، دخوشحال اقتصادي نظریه او اخلاقنامه مجموعه ، دبناغلي زلمي هیوادمل په تعلونه ، سریزه او تعلیقاتو ، کابل ، دقومونو او قبایلو وزارت ، د ۱۳۶۵هـ ش کال چاپ .

ب ـ په اردو ژبه :

(۱۲) دپېر سباک او ځینو نورو تاریخي شخصیتونو او پېښو په باره کښې ، پېښور ، ۱۹۶٤م کال .

(۱۳) کاکا صاحب : دشیخ رحمکار په باره کښې ، پېښور ، ۱۹۶٤م .

(۱٤) غازي دلاسه خان ، ۱۹٦٤م .

(۱۵) تاریخ خټک ، پېښور ، ۱۹۶۵م .

(۱۶) اورنگزیب عالمگیر اور خوشحال کی کشمکش ، پېښور ، ۱۹۷۵م

(١٧) اشارات اصیل : ( دمرغبازۍ په باب رساله، ١٩٤٩م.

(١٨) اشارات مرغ خانه : دچرګانو د ساتنې په باب، ١٩٤٩م.

(١٩) معلومات مرغ خانه - دچرګانو دساتنې په باره کښې ١٩٥٠م.

## ج - په فارسي ژبه متنونه له انګریزي ترجمې سره :

(٢٠) مونس العشاق، دشیخ شهاب الدین سهروردی اثر، علیګړ، ١٩٣٤م.

(٢١) ثلاث رسایل، دشیخ شهاب الدین سهروردی اثر، دهلي، ١٩٣٥م.

(٢٢) عرفان : (اوله برخه)

(٢٣) عظیم جواهرات، دشیخ محمد علی حزین، رساله درچګونګی مروارید»، بن، ١٩٥٤م.

## د - په انګریزي ژبه :

(٢٤) شیخ محمد علی : تاریخي څېړنه، ١٩٤٤م.

## ناچاپ آثار:

الف په پښتو ژبه :

(٢٥) کلیات عقاب (دپښتو شعرونو کلیات) دحمزه شینواري له مقدمې سره.

(٢٦) دیوان عقاب : (داردو شعرونو مجموعه)

(٢٧) ژوبل ښکاري : (درامه)

(۲۸) لوی بوټیان : (درامه)

(۲۹) هملیټ : د شکسپیر د شهکارونو منثوره ترجمه.

(۳۰) میکبیټ - د شکسپیر دیو اثر منظومه ترجمه.

(۳۱) په نه خه دپی شواخون : د شکسپیر له آثارو نه منظومه ترجمه.

(۳۲) دولسمه شپه : دشکسپیر دیو اثر منظومه ترجمه.

(۳۳) طوفان : د شکسپیر دیو اثر منظومه ترجمه.

(۳۴) شکنتلا : دکالیداس دیو شهکار ترجمه.

(۳۵) ورکه ستن : د پښتو ادبیاتو دتاریخ په لړکښي د تحقیقي اوتنقیدي مقالو مجموعه.

(۳۶) وزیري نرخ : دوزیرو د نرخونو په باب څېړنه.

ب - په فارسي ژبه :

(۳۷) دافضل الدین خاقاني شرواني د آثارو دمشکلو لغتونو اوترکیبونو فرهنګ.

(۳۸) مراقبات شیخ رحمکار - له پښتو ترجمې سره.

ج- په انګریزي ژبه :

(۳۹) دپښتو ژبې تاریخ

(۴۰) د خاقاني دمشهورو فارسي قصیدو انګریزي ترجمه.

اودادبي تاریخ، شخصیتونو، فرهنګي موضوعاتو اوپښتو متونو

او لغاتونو په باره کښې په پښتو ، اردو او انګریزي ژبو په سلها وو څیړنیزې مقالې چه په پښتو ، قند ، غنچه ، لار ، رهبر او نورو مجلو او شهباز ، بانګ حرم او نورو ورځپاڼو کښې خپرې شوې دي.

د شعر نمونې :

«۱»

داسې تار په تار ستا د جمال نه پېغلې جونه شي
هار لکه چه پرې شي دا خواره واره لعلونه شي
تا چه کله وو یمه جوړ په ما عیدونه شي
تا چه کله نه وینمه جوړ په ما عمرونه شي

ښکلې سره پاسته لبان چه کله راښکاره کړې ته
هېر مې شي بخمل ، هېر مې وریښم ، هېر مې ګلونه شي

لوبې زړونو ما کتل تا مې زړه یوړ لــــو
شوګې چه کوې په سپینه ورځ وران په کاروانه شي

سترګې دې کېلې دي ولې اوس مې دزړه غوښې خوري
کوم وخشي چه روږدي شي بدل د هغې خوی ونه شي

هغه خوږ کلام دخولې دې زه چه په پایېږم مه
مه اوره رقیب هغه ، ځکه نه دې پې غوږ ونه شي

لاس کښې قلم واخلي عقاب یو نیم غزل ولیکي
کله چه حیران شي او په بار د یارغمونه شي

«۲»

د ما زړه به د پر خوشحال شي په دې باندې
چه رقیب مې شي په تورو خاورو لاندې

د ښایست د محلو نو د حُجلو نه
سپینې حورې په لاسونو راته کاندې

زه په سرو سترګو د تا د جوره ژاړم
ته په سره خولګۍ په څه راپورې خاندې؟

تا پخپله کړو د ما زړوزبر زړه
په حیرت یې ولې ګورې لاندې باندې

زه عقاب به په یارۍ کښې صادق نه وم
که اش په تا ونه کړې د ما ساندې

«۳»

په ظاهر که له مخلوق مې واسطه ده
په باطن کښې له خالق مې رابطه ده

که وږلو نه مې یار راشي لا سنه ده
دقربت د پاره غښته و سیله ده

نه خوږلت دوینې شته او نه د مینې
ځانځاني ده څه بې خوده زمانه ده

دَدنیا او دعقبی مقصود مې نه یې
رانه پاتې کلی کور او قبیله ده

دمجاز په پُل روان یم حقیقت ته
تصور مې دصنم یو حیله ده

دهرچانه معزز دی کوم سرې چه
کېږده اینبې د یار په استانه ده

عقاب ورک شو، لیونی شو او برباد شو
خلق وایي چه یې مینه مستانه ده

* * *

سرفرازخان عقاب خټک به خیلې لیکنې د خټکو
دکورنۍ په لهجه او لیک دود کولې. د ښه خط
خاوند خطاط او ښه رسام هم و.

## یادونه :

د زیاتو معلوماتو له پاره وګورئ :

- زلمی هیوادمل ، د « خوشحالنامه » سریزه ، کابل ۱۳۶۵ هـ ش

او د پورتني مأخذ د حوالې له مخې :

- اسد قریشی ، سویلي ستوري ، پېښور ، ۱۹۷۳ م

۱۸۸ - ۱۹۵ مخونه .

- ډاکتر چراغ حسین شاه ، موت العالم موت العالم ،

پښتو مجله ، کلیز نمبر - ٦ - ۱۹۸۵ م کال ۴۷-۵۴ مخونه

( پښتانه شعراء شپږم ټوک خطي )

# ژوند او فن

قلم را اوړئ، کاغذ را اوړئ څه لیکمه
د شعر ونو ګلد ستې ترې جوړومه

د پښتو د غیرت رنګ د نیا ته ښیم
د ښکلا د ښکر و شرنګ د نیا ته ښیم

چه فن وخاندي د ژوند په انګو کښې
حسن ګډ شي د پښتو په سرد رو کښې

د ادب لمنې غیږې د بهار شي
غراو سمه د وطن ګل او ګلزار شي

د ایشیا د زړه باغ و سپړی ګلونه
یو جنت شي د خوشحال او میرویس خونه
(اجمل ختک)

* * *

په دې ورو خوکښې یو کتاب زموږ ګوتو ته راغی چه
«ژوند او فن» نومیږي.

دا کتاب د پېښور ادبي ملګرو لومړی پېشکش دی چه د سیاغلي اجمل خټک په قلم یوه ادبي تنقیدي مقاله او یوځو انتخابي نظمونه او غزلونه لري.

کتاب په (۲۳۲) مخونو، په منځنۍ قطع په (شاهین برقي پریس پېښور) کښې په ډېر وچاپ شوی دی. خطئې ډېر ښکلی او چاپ یې په زړه پورې دی.

## د کتاب اوله برخه:

دا د سیاغلي اجمل خټک ادبي انتقادي مقاله ده چه په هغې کښې ادب او په خاص ډول پښتو ادب او ژوندانه سره د هغه ارتباط په یو تحقیقي روش څېړل شوی دی. په دې مقاله کښې ویل شوي دي:

«موږ خو وایو چه ادیب او فنکار ته د خپلې معاشرې پوره شعور په کار دی. او بیا د دغه شعور او احساس د فن او ادب په ښکلې او اثرناک رنګ کښې داسې اظهار پکار دی چه د معاشرې هر فرد کښې دغه شعور او احساس پیدا شي.»

ښاغلی اجمل د خپلې څېړنې نه داسې نتیجه اخلي:

«... د معاشرې او ادب، ژوند او فن خپلو کښې ډېر تعلق دی. کوم ادب چه د دغه تعلق شعور او اظهار وي هغه کامیاب او ژوندی ادب دی. او کوم ژوند چه د دغه شان ادب د

سیوري لاندې تېرېږي هغه ژوند به ارتقاء کوي، خوشحالۍ طرف ته به روان وي اوهم دا مبارک ژوند دی .....»

د سباغلي اجمل خټک مقدمه په پښتو کښې د ادبي انتقادي مقالو په لړکښې د ډېر اهمیت او قیمت خاوند ده اود ادب څېړونکو دپاره د مطالعې او استفادې وړ ده .

## دوهمه برخه:

دا انتخابي اشعارو مجموعه ده .

په دې لړکښې د ټولې پښتونخوا د (٦٩) تنو شاعرانو یوه یوه پارچه اخیستل شوې ده .

دا شعرونه د موضوعاتو په لحاظ ویشل شوي دي او په دې عنوانونو حاوي دي:

(شاعر، پلوشه، تحول، مزدوراو دهقان، غزل، دپښتو ډیوه، ژوند، نوې رڼا، خوند رنګ .)

بیا تر هر عنوان لاندې څو شعرونه راغلي دي .

دا کتاب د پښتو د معاصر شعر ډېره ښه نمایندګي کوي چه په کښې زیاته د مضامینو تنوع او تجدد او د وخت د ضرورتونو تقاضا تر نظر لاندې نیول شوې ده .

مونږ د پېښور ادبي ملګرو ته د دې کتاب په خپرولو ډېره ډېره مبارکي وایو او هیله لرو چه د دغسې آثارو په

خیرو لو زیات تو فیق و مومي. هو! د ا یوانې د هغو کارند دی، بلکه ټول له افغاني جامعه د ا وظیفه لري چه د دغسې ښو کارونو په ترسره کولو کښې برخه وا خلي.

څرنګه چه د دغه کتاب ټول اشعار انتخابي دي او هریو کښې یا د شکل او فورم او یا د دوا ړو او چتوالی لیدل کیږي، نو د هغوئ دیو یا څو شعرونو بیا انتخابول څه مشکلات لري، نو ځکه ذکرانو لوستونکو له یاره د مختلفو ځایونو نه یو څه نمونې وړاندې کوو. البته د پښتو ژبې د شعر او ادب مینان به په خپله کتاب ترلاسه کړي او خوند به تري واخلي.

شاعر:

ژبه مې تته شوله سندا یرې پښه ایښې ده
کوڅې د یار کښې اغیار را ته تنبه ایښې ده
چغې و باسمه د چا یرې غوږ نه ږدي
ظالم له د پرو قهر غوږ کښې پنبه ایښې ده
دا چه زما یه وینو آشنا کړې ه ایښې ده
ما فریا دې هم ورته په سر لمبه ایښې ده
درخواست په خپلو وینو به خدای ته زه و لیکم
زما عزیز آشنا زه درته څه و لیکم
(عبدالاکبر خان اکبر) لرشوغنه)

## پلوشه:

راځئ هی کړئ! مېتې ونغاړئ! راپاڅئ!
یوه داسې لار اختیار کړئ چه کامیاب شوو
هم سپرلی شي دخزان نخښې شي ورانې
هم مالي زموږ په شان شي بې حساب شي

(لطیف وهمي الرشوځم)

## تحول:

ای په حق مینو چه او دهٔ نه شئ
داوخت دخوبونو دآرام نه دی
شا بس! که منزل ته رسېده غواړئ
ورځ ده لا تیاره نه ده ماښام نه دی

(حافظ عبدالستار عارف خټک)

## مزدور او دهقان:

دا په دنیا د ټکي مانۍ. د ټکي بنګلې وګوره!
په کښې د شاتو، د شودو، او بو ولې وګوره!
چه پکښې اوسي دهغوی هغه شملې وګوره!
غسلخانې، بمبې، ګلونه او ګلې وګوره
دا مصنوعي جنت دچا په لاس سینګار دی
مزدور زنده باد!

(مرزا بلوچ محمد شاه بوستی)

## غزل :

بیا به زه همراز ته د جانان خبرې نه کوم
بس شوم بې اعتبار زړه نه د ځان خبرې نه کوم

ګیرچه تصور مې تل د زلفو پیچ وخم کښې دی
ولې به یارانو د زندان خبرې نه کوم

دا چه تاج محل د خاموشۍ یې نړولی دی
بیا به زه داو سنګو د باران خبرې نه کوم

سنه شو د « مجبور » غزل ګوليه نه چه خبر شومه
بیا به په سرحد کښې د ایوان خبرې نه کوم

( مجبور سوراني )

## د پښتنو دیوه :

ته هم د تیار و یې د محفل په خاطر
زه هم د دنیا نه تاریکۍ د استبداد ورک کوم

د خدای مخلوق ته چې ځان خدای کړې بندګي ترې غواړي
داسې نمرود ، داسې فرعون داسې شداد ورک کوم

ته هم دا غواړې چه تیارو کښې سر څوک و نه خوري
زه هم دا مېن طرفدار یمه فساد ورک کوم

ته هم هرچا ته په محفل مې یو ستر ګه کسوری
زه هم انصاف و مساوات لرم بیداد ورک کوم

خولنه‌ دا کـه‌ پام پرې وشي دواړه یو، یو سـره
دواړه یوځلنده سحر وته په دو یو سـره

(منتظر بېهتي)

## ژوند:

زه بل څوک نه یمه اولاد د غریبانو یـمه
سکنـۍ ورور د عاجزانو دخوارانو یـمه
یمه له‌ خاورونه پیدا، خورمه له خاورو پیدا
د لاس نیالګی د کاریګرو دهقانانو یمه
ما ته آغا، ما ته بادار، ما ته صاحب مه وایه
د بېر وبېرېدلی له نامه د صاحبانو یمـه

(محمل پاچا الفت)

## نوی ربنا:

دا د باشعورو ښځو غوارم چه آبا د ، وي
ورک دې شي بموڼه او جنګونه ملک یې ښاد ، وي
امن ، امن ، امن ، بس یه امن دې تلبناد ، وي
دا ځکه دا من دې رښتیا په امن یاد ، وي
ځار دې امریکه له روسه، روس دې ځار له چینه شي
غوارمـه چه ټوله دنیا مینه ، مینه ، مینه شي

(پیرګوهر)

د زیرې جریده، کابل، لېښتو ټولنه
۱۴ ګڼه، د ۱۳۴۶ د عقرب دوهمه، ۱۹۶۷
د اکتوبر ۲۵ مه

# ګلونه ټکلونه

د ختکو اکوړه د پښتنو هغه سیمه ده چه تل ګلونه پکښې رازرغونیږي او ټکلونه غورزنګ وهي.

د خوشحال بابا په دې مینه کښې د ګلونو تصلو سنو خاوند شاعر پیدا شوی او لوی شوی دی.

سترګې یې چه غوړولې دي، نو په پوله او پټي، بیدیا او کروندو کښې یې د ګلونو ننداره کړې ده.

چیرته چه یوازې پسرلی او مینه نه، بلکه ټولی هم ګل او ګلزار او اهار هم لاله زار دی.

ځکه دا شاعر د ژوند په پسرلو کښې د بلبلو په شان پر ګلونو مین شو او د هغو د نبلا سنګلې سندرې یې وغږولې.

زر یوه شو چه د بهار د زېړو ګلونو پسې د خزان سیلۍ او د سندربولو مرغانو پسې صیا دانو دامونه اودانې

هم شته او دا ښل پسرلی، دا ځواني او رنګ او دا طبيعي ښکلا د تالاښګرو ښکېلاکګرو تر پښو لاندې هم شوې دي او کېږي .

نو د خپل وطن ګلونه يې په سترګو کښې اغزي شول او د هغو د سمبالښت، خوندي کولو او ژغورنې تکل ورته پيدا شو.

دی شاعر او وطنپرست، نو د ګل وطن مين شو او ماليار، دې ته يې هم پام واوښت چه په ټول جهان کښې د هر ګل سره اغزي وي او د سرو ګلونو د هر ښېرازۍ ماليار دا وظيفه ده چه د جهان د ظلم او نفرت له خارستان نه د مينې، ددوستۍ او برابرۍ ګلستان جوړ کړي .

دې رنګه ښايسته ګلونو تکلونو سره پښه شاعر وختونه او ګلونه واوښتل . تجربه يې پخه شوه، د خپل اکوړي له کلبې څخه ووت، د لرو برو عزيزانو په د پرو، حجرو او جوماتونو ورپيښ شو . . . .

آخر نوې دنيا ته ولاړ، هلته يې په خپلو سترګو وليدل چه د نوي زيارکښ انسان په تکلونو څومره ښکلي ګلونه غوړېدلي او خاندي . داسې ښکاري چه هلته ده د ټول ژوند

دګلونو شاعرانه تخیلات د تګلونو له تصوراتو سره تر پخوا زیاته غاړه غړۍ شوو ، یو بل ته یې رنګ واخیست نوی رنګ یې راوړ ، «ګلونه تګلونه » ترې جوړ شو.

د رنګ او بوی له همغږي ښکلي جهانه او دکار او زیار له مغني ودانۍ نړۍ نه ښکه دا دګلونو تګلونوڅخه وند ، رنګین او ارزښتمند سوغات دی چې خپلو عزیزانو ته یې وړاندې کوي . دا سوغات ضرور د ذوق او شعور دخاوندانو سره به زړونو کښې د مینې او ښکلا ګلونه غوړوي او دهغوی مغزو کښې د ژوند او حرکت تګلونه راخوځوي .

زما دپاره نوره هم په کار دی. دایو لوی سند دی .ادبي او تحقیقاتي سند . د هغوی مقابل کښې چه ادب له ژوند او ژوند له سیاسته بېل ګڼي . را دې شي ودې ګوري چه «ګلونه تګلونه » کښې ژوند او ادب ، هنر او سیاست ، مینه او ښکلا څومره او څنګه یو په بل کښې سره نغښتي او تاوراتاو شوي دي ؟

کابل
د ۱۹۸۳ د جولايي شلورم

# ګل تکل

# اجمل غزل

مخکې تر دې چه د اجمل خټک په غزل، د هغه په ګل تکل، مزل او منزل د غږ پږ وپچیله د غزل په مزل یو څغلند نظر اچوو.

غزل د شرقي شاعرۍ یوه لرغونې نوع ده. که د معنا له مخه ورته وګورو، بیا نو هغه شعر چه یو د ول تغزل او د مینې درد ونیاز، سوز وساز او درد وګداز خبرې پکښې وي هغه باید غزل وبولو. کېدی شي چه د غزل د نوم اېښودلو په وخت کښې همدغه معنوي اړخ نظر لاندې و او بیا وروسته دیو خاص فورم او شکل په قالب اوچوکاټ کښې

محدود شوی وي چه سر (مطلع)، کسر (مقطع) او څو بندونه (بیتونه) لري. غزل د خپلو انکشافي مرحلو په تیریدو او دهغه مشخص چوکاټ په پخیدو، یوازې د عشق او حسن په رنګینو پیرایو کښې محدود پاتې نه شو او دژوند دمختلفو اړخونو تصویرونه او تمثیلونه پکښې داخل شول، یعنې د غزل فورم خو مشخص شو، مګر پخپله اصلي معنا محدود پاتې نه شو.

ستاسې توجه دې عجیبې نکتې ته اړوم چه نمونې په شعري فورمونو کښې لنډکۍ، لنډۍ، مثنوي، رباعي، غلوریزه د پارسي دوه بیتي (چارپاره)، مخمس، مسدس، مثمن معشر، ترجیع بند، ترکیب بند په فورمونو کښې یوازې دمصرعو شمیر ته توجه شوې ده. د پښتو سروکی، داستان، چاربیته لوبه، بګتۍ خو سندرې دي چه د موسیقي د آهنګونو بنودونه کوي. قصیده او غزل د خپلې شعري نوعې د ... مفهوم بنودنه او څرګندونه کوي. سره له دې چه د هغه معنا او مفهوم او دهغه رنګیني او ښکلا بیا د شعر په نورو ذکرشوو انواعو کښې هم افاده شوی او افاده کیږي.

په هرصورت د پیړیو په پوړیو کښې د غزل د پرمختګ او انکشاف په مراحلو کښې، د غزل قالب او شکل خواوس مشخص

دی . مګر په قالب او شکل کښې د محتوا د اړخه او خپلولو په وخت هغه مونږ په درېوو عمده ډولو نو کښې کتلی شوو:

- هغه شعر چه هم د غزل په متعارف شکل، فورم او آهنګ کښې وي او هم د عشق او حسن ښکلې اړخ ولري . په دې برخه کښې له رودکي نه نیولې تر لایق شېرعلی پورې، له دولت لواني نه نیولې تر کاوون توفاني پورې، له حافظ شیرازي نه نیولې تر اقبال لاهوري پورې او له خوشحال خان نه نیولې تر حمزه شینواري پورې د برو شاعرانو د بر غزل لیکلې ګڼ او د شعرونو مجموعې او دیوانونه تړې دک دي .

- بل هغه شعري ډول دی چه فورم او قالب یې د غزل دی، مګر محتوا یې تغزلي نه وي . که د غزل معنا نه وګورو، نو د غه ډول شعر یوازې غزل نه وي نور هر څه وي چه د غزل په فورم کښې افاده شوي وي . په دې فورم کښې تصوفي، اجتماعي، اخلاقي او سیاسي تړښونه، مفاهیم او موضوعات داخل شوی وی . خپلو دې ډول شعرونو ته هم شاعرانو غزلې ویلې دي او د کلیاتو د غزلیاتو په برخه کښې چاپ شوي دي . تکړه شاعرانو تل هڅه کړې ده چه د دې ډول غزلو د ښایست لپاره له ادبي بدیعو صنعتونو څخه کار واخلي او په کلام کښې خوږوالی، ښکلا او ابتکار

پیدا کړي. دا ډول غزل له پخوانه څخه تر اوسه پورې زموږ په شاعرۍ کښې رواج لري. مثلاً: د سنايي، مولوي، دولت لواڼي، میرزا خان انصاري او واصل روښاني په شعرونو کښې د تصوف په محتوا زیات غزل شته او د محمود طرزي، قیام الدین خادم، گل پاچا الفت او صوفي عبدالحق بیتاب په غزلو کښې سیاسي، اجتماعي مطالب ارایه شوي دي.

موږ د نن ورځې په اوسنیو د ځینې شعرونو کښې ډیر ځله د ویناخوږ والی او د بې تشبیهاتو او بدیعي صنعتونو د خبرو خوند یو په دوه کړی وی، خو کله کله مطلب د ومره بې پیرایې وي چه حتی په یو ځل لوستو او اورېدو هم نه ارزي.

- د غزل بل ډول چه د مضمون او محتوا له مخې زیات انکشاف موندلی او لوړ هنري ارزښت لري هغه دی چه شکل او فورم خولې د غزل وي، الفاظ یې ښکلي او رنګین وي او د غزل یعني د حسن او عشق تغزلي تصور او تصویر ارائه کوي مګر و رسره شاعر له ظاهري هنري رنګینۍ سره یا د هغې په پرده کښې یو بل مطلب، د خپل د زړه آواز او د خپل عصر پیغام هم اوروي. د خپلې سیمې ښېرازۍ

او سپیره توب ، سنګلاو نا سنګلیتوب ، د خپلو خلکو غم او خوشحالي ، سوبه او نا سوبي ، زوال او کمال او د خپلې زمانې د بهیر سبه او بد اړخونه څرګند وي . ددې د ولس غزلو شاعران هڅه کوي چه د هنر د رنګ او آهنګ له قافلې سره د ژوند د بهیر قافله هم مل کړي کړي . دوی غواړي چه د شعر او غزل له نغمو او آهنګونو سره د ژوندانه د کاروان بانګ دارا هم یوځای کړي ، داسې یوځای چه تری غبرګه سند ره نه ، بلکه واحده سمفوني جوړه شي .

دلته دی چه هر سهار د ادبي او هنري سمبولونو ګلان غوړېږي او خاندي . د مینې بلبلان ورته ژاړي او اوښکې یې د سهار د پرخې په شان پر ګلانو څاځي او د ګل په خندانه څېره کښې د ژړا یو تصویر انځوروي او هرمابنام د مینې په محفل کښې د حسن ډیوه بلېږي ، پتنګان تری چورلي . پرې ستي کېږي او ایره یې د لې پروالی باد ونه وړي . . . شمع سوزي ، پتنګ تری ځارېږي . د مینې د ساقیانو د مخمورو سترګو په اړولو را اړولو میخانې یې تابه کېږي او زړونه بایلي . په داسې بزمونو کښې د سترګو د جنګ - عاشقانه رزم هم جوړېږي او په دې یارانه کښې د پرځله بنکرې هم ماتېږي .

د شرقي شاعرۍ د تحول او تکامل په بهیر کښې د سمبولیکې شاعرۍ زیات ضرورت محسوسیږي چه شاعران د خوشحال خټک غوندې په ښکاره ناري نه شي وهلای چه خوله یې واکړه بلکه د حاکمو طبقو د ظلم، استبداد، اختناق او ریاکارۍ له لاسه:

ژبه بنده وي له زړه نه يې اختیار وه
ځي تر خولې له ناکردونه فریاد ونه (وزیر راز)

د شرقي اولسونو د افکارو د تکاملي سیر د تاریخ په لړ کښې دېر ځله کورو چه له مقدس قرآن او شریعت نه، د و خت استبدادي قوتونو د ځان لپاره بدې استفادې او له غرض نه ډک تعبیرات کړي دي. په دېر تعصب یې نه څه خبره باندې د یو اوبل مخونه تور کړي دي او هغه یې په خره سواره کړي دي، او کوڅه په کوڅه یې ګرځولي دي. د چاپې خوله ګنډلې، د چا یې ژبې پرې کړي، د چاپې سترګې ایستلي او د چاپې سترګې ښیښې کړې دي. هره سمه خبره یا لږ ترلږه ناسمه خبره لویه ګناه او کفر ګڼل شوې ده. د انساني ضمیر، شعور او احساس خاوندانو په یو رنګ او بل رنګ په دغسې حالاتو کښې هم خپله مبارزه د وخت له ناخوالو او ستمونو سره جاري ساتلې ده. د باشعورو شاعرانو له خوا دا مبارزه چېرته د رندې شاعرۍ په رنګینو هنري الفاظو او تغزلي ژبې سره شوې او کله بیا صوفي

شاعرانو يا شاعر و صوفيانو ، شعر د تصوف په لار روان کړی
يا تصوف يې د شعر په قالب کښې اچولی او له تعصب او رياکارۍ
سره يې کلکه مبارزه کړې ده.

دې خلکو شاعرۍ ته ځانله ژبه پخښلې ده چې په دې ژبه
کښې کله حقيقت د مجاز لباس اغوستی او کله مجاز د
حقيقت له ګرېوانه سر ايستلی دی. دا د سمبوليکې شاعرۍ
ژبه ده چې زموږ د سيمو په ملي ژبو ، په عربي ، فارسي
پښتو، ترکي، اردو او نورو کښې زموږ تر زمانې پورې
دوام موندلی دی.

په بشري ټولنو کښې د پرمختګ او ارتقاء ديوې مرحلې پسې
بله مرحله راځي او د ژوندانه شرايط تغير کوي. خو د
فرهنګي مظاهرو د تغير بهير لږ څه سست غوندې وي.
نوې خوانې سمبولونه په نوې دور کښې د زړه د آواز د را ايستلو
او د زړه راز د څرګندولو له پاره پکارولی شي او کله ناکله لا
يو تقليدي عمل ګرځي چې شاعر يې ترسره کوي ، مګر اوريدونکي
او لوستونکي ته څه خوند نه ورکوي او د شعر پېژندونکي د
اعتراض چيغه آسمان ته خېژي چې شعر مبتذل شو . . .
د هسا سوزېدونو او دراکو مغزو خاوندان با شعوره
شاعران د هر وخت شمال ، باد ، باران ، بڼلی ، سېلۍ ، جګړه او

طوفان پېژني له هغو څخه الهام او موضوع اخلي او د خپل استعداد په کروندو کښې د شعر متناسب کلان کري، روزي او غوړوي يې. دوی څه چهويني او څه چه اوري هماغه په شعر کښې وايي او ليکي. پخوانيو سمبولونو نه کارا خلي مګر د کارولو ځای، طرز او مقصد يې بېل وي. نوي سمبولونه هم ايجادوي او شعر ته بېخي نوې بڼه ورکوي. شاعر په غزل کښې له پخوانو او نوو سمبولونو نه کار اخلي، خو د مطلب تکی او د نظر نکتې او نقطې يې د نوې زمانې، نوي بهير يا د خپل دوران خپل پر ابلمونه وي.

په دې دول مونږ وينو چه د نوې زمانې يو شاعر په پخوانو سمبولونو اعتراض هم کوي او وايي:

تا بکی پیچیده ای در حلقهٔ زنجیر زلف
درس نو آموز بهر امتحان زندگی (ابر بهاری)

خو هم دغه شاعر په يل شعر کښې خپل زړه د زلفو په حلقه کښې بند بنيي، مګر په يل طرز، بله شېبه، بله افاده او بله معنا:

غيرتي او پښتون زړه مې په حلقو د زلفو بند شو
دا خو هغه زوړ مارنه دی دا يو نوی استعمار دی (ډګلوګر)

او بيا د دوهمې بېلګې د جوان يا ضرورت له پاره وايي:

چاوې راشه لنډه کړه د زلفو دا ږده کیسه
نه، نه! داسې نه ده خولې رنګ ورته بدل کړ (شفق)
په دې ډول له پخوا زما نوښته تر اوسه پورې د هر وخت

ارزښتونه او مسایل، زمونږ د پېړو پخوانیو او اوسنیو
شاعرانو په شعر ونو کښې هم د سمبولونو او هم د شعري
بدیعي صنعتونو، تشبیه ګانو، استعارو او کنایو په واسطه
په شکلي ډول تصویر شوې او تمثیل شوي دي. دا تصویرونه
اکثراً د غزل په دې نوعه کښې ګورو یا د دغو تصویرونو په
برکت دا ډول غزل منځ ته راغلی، پر مختګ یې کړی او پراختیا
او ژور والی یې موندلی دی.

مثلاً د خوشحال خان خټک په دې بیت کښې:

نوره چه تېرېږي خوګوزار لړ کنه
زلفې چه ولول شي خو خپل یار لره کته (د خوشحال خټک کلیات)

د نورې او قلم د خاوند د نوریالیتوب د تېرې نورې ارزښت
دیار له ولول زلفو سره تشبیه کښې څرګنده شوې ده.

یا په دې بیت کښې:

زه عاشق یم سروکار مې دی له درد
نه خلیل، نه داوؤد زی یم نه مومند (د رحمان بابا دیوان)

رحمان بابا خپل عاشقانه عالي انساني مقام ښودلی دی چه تر خپل

زي او قومي رشتونه پوره دی. دا مقام د سړيتوب له حقیقت سره د عشق د درد مقام دی.

دا چه عبد الحمید مومند وايي:

خان به مې د عشق په ځېل کړمه ناصحه!
وا به نه وړم ن ه حمید هغه پښتون یم (د عبد الحمید مومند دیوان)

شاعر ځېل کوی، نه اوړي او ځان وژني، دلیل دا وايي چه پښتون دی. شاعر د لته عشق، ځېل، ثبات او پښتونواله یو بولي او په یو مضمون يې افاده کوي.

په غزل کښې د پښتو او پښتونولۍ مضمون د غزل بابا امیر حمزه شینواري ځېل اوج ته رسولی دی:

ما کوڼ ورته ليمه کړه زما سر نه ټيټيږه
شايد چه په الفت کښې هم افغان پاتې کېږم

یا:

حسنه ته خود بين يې زه پښتون يمه
مانه ده بنودلې ګدا سترګو ته (غزوني)

دا مضمون نمونې د دې وخت د نورو شاعرانو په غزلو کښې هم په رنګارنګو افادو تاو را تاو شوی دی. د بېلګې په توګه:

په عذر او عاجزۍ او په زړه اکرم ننواتې
منظوري کړه، پښتون یم سېکنځا بښه نه ده یدل کښې (راز)

دل بتو دادم کفایت میکند دیگر مخواه
ناله وعجز وتضرع را از افغان اینقدر (ابر بهاری)

موږ ووېل چه په غزل کښې دراز رانر مفاهیمو ننه ایستل یا د غزل په ژبه د زړه د مطلب څرګول له پخوانه په شرقي شاعرۍ کښې رواج لري او زموږ تر وخته پورې یې دخپل انکشاف پوړۍ وهلې دي. دا د ایما ئیت، کنایو او اشارو شاعري ده. خو دې هنر دومره پرمختګ کړی او زموږ د ادبیاتو د علاقمندانو باریک بینۍ اونکته سنجۍ ته یې وده ورکړې ده چه عربي ادب پېژندونکي په رښتیا وېلي دي: "الکنایة ابلغ من الصریح".
یعنې کنایه له صریح نه زیات بلاغت لري.

زموږ د زمانې اکثرو شاعرانو د شرقي شاعرۍ دا لرغونی عنعنه چا په زاړه رنګ او زاړه سمبولونو ساتلې او چا ورته نوی رنګ هم ورکړی دی او نوې محتوا او نوی مضمون یې پکښې نغښتی دی.

مثلاً زموږ د هېواد دیواوسني شاعر د غزلو په لاندې بیتونو کښې ټولنیز حالت څرګند ېږي او هم په هغه کښې د سرو ګلونو د شاعرۍ په رنګ کښې د شاعر تګل او د هغه د زمانې د خواریکښو وچې او سپېرې شونډې.

خوښي را نه په څنګ ځي ما نيجنه غوندې ښکاري
خندا مې په سپېرو شونډو غمجنه غوندې ښکاري

په ګل چه پرخه ستاېي بخښتانه په خندا
حيران دې شم لېمه ته چه نمجنه غوندې ښکاري (راز)

* * *

د يار له غمه مې داملا ماته شوه
لکه د خوار چه شي د ګار لاندې (دګلوکر)

* * *

چه د باغوان په سپېره مخ ربنې خولې وو وينم
نکل د ګل او د بلبل د تصوير ونو کوم (دګلوکر)

* * *

تاسې وګورئ چه د پېښور يو معاصر شاعر د ګل او غوټۍ په تصوير کښې د خپلې ټولنې د او سنۍ زمانې څنګه ښه او ريښتيانې انځور ايستلی دی :

ګل باندې خه تېر شو، په غوټۍ باندې تېرېږي څه؟
حال نه وايي خلکه کښې ټول په حسن ته پېښه ده (شمس)

د شرقي شاعرۍ د غزل د دې تاريخي عنعنې د دوام او انکشاف په لړ کښې د ښاغلي محترم اجمل خټک غزل يو ستر روښانه مثال او د دې لياري ځلانده مثال دی. په خاص ډول «ګلونه تکلونه»

زه د خپلې دې دعوې د ثبوت لپاره د ستر شاهد په توګه وړاندې کوم:

اجمل خټک پښتون شاعر دی. د پښتو ادب عنصري څېره ده. د خوشحال خټک حسبي او نسبي، د مبارزو او لیکنو بالا ستحاق وارث دی. په اردو ادب کښې د پراخې مطالعې خاوند او د خوږو شعرونو شاعر دی. په فارسي ادبیاتو کښې یې ام. اې کړې ده او پکښې تحصیلي سند لري، د عربي ادبیاتو له ژبو واقف دی.

خپل ذاتي استعداد یې ډېر وند او ادب په داسې چاپېریال کښې وده او انکشاف موندلی دی چه خوږ ژبی غزل ویونکی او اوږ ژبی نظم لیکونکی ترې جوړ شوی دی. دوی خټک صاحب او نور پښتو ادیبان، هزل غزل یولې او نور شعر رته نظم کښې په هغه ویش، د خټک صاحب نظمونه هم د غزل رنګینې، ښکلا، هنرمندي او ښېګنې لري. تاسې به (د غیرت چیغه) او (ګل پرهر) لوستي وي. خو دده غزل بیا بل کور غزل دی. ګلونه شګلونه اوګوړ.

دا مجموعه د ښو مثالي او معیاري غزلو په توګه زما د پره خوښه شوې ده. کله چه چاپېدله، له مطبع نه د هغې څو پاڼې زما ګوتو ته راغلې، ما هغه ولوستلې، د کارونو د ګڼه والي او د وخت او فرصت له کموالي سره، بیا ته د شاعر او ناشر له غوښتنې او اجازه نه، ما پرې څه لنډه لیکنه وکړه چه ورسره چاپ شوه.

هلته مالیکلي دي:

«... آخر نوې دنیا ته ولاړ، هلته یې په خپلو سترګو ولیدل چه دنوي زیارکښ انسان په ټکلونو څومره ګلونه غوړېدلي او خاندي؟ داسې ښکاري چه هلته دده دټول ژوند د ګلونو شاعرانه تخیلات د ټکلونو له تصوراتو سره تر پښخوا زیاته ځاېر غوړېدلي شو. یو له بل نه یې رنګ واخیست، نوی رنګ یې راوړ، د ګلونه ټکلونه» ترې جوړ شو.

د رنګ او بوی له هغه ښکلي جهان او د کار او زیار له هغې ودانۍ نه، بېشکه دا د ګلونو ټکلونو د خاوند شاعر، ښکلی، رنګین او ارزښتمن سوغات دی چه خپلو عزیزانو ته یې وړاندې کوي. دا سوغات ضرور د ذوق او شعور د خاوندانو په زړونو کښې د مینې او ښکلا ګلونه غوړوي او د هغو په مغز و کښې د ژوند او حرکت ټکلونه راخوځوي»

هو! ګلونه ټکلونه د شاعر د هغو غزلونو مجموعه ده چه په نوې دنیا، شرقي اروپا، چکوسلواکیه، هنګري، دموکراتیک المان، پولینډ او شوروي اتحاد کښې ویلي دي، چه په کابل او دیلي کښې ویل شوي څو شعرونه هم پکښې شامل دي. پخپله شاعر «دا ګلونه ټکلونه» داسې معرفي کوي:

«... د دې ښکلي ماحول د ګلالي ښایست او کیف نه ډکې

تنهايي کښې د خپل داغلي زړه اوزخمي ذهن سره يوازې شوم ، تصوراتو او تخيلاتو په خپلو غېږو کښې واخيستم ، نو چې پوه شوم نو خپل کور ، کلي ، هېواد او اولسونو ، د هغوی ژوند ژواک ، فکر وعمل ، ارادو او جد وجهد ، ارمانونو او تکلونو او په دې لړ کښې د هغوی د محرومیتونو او قربانیو په هجوم کښې د خپل شعر دنیا ته رسېدلی وم او اشعار را باندې داوښېدل شروع شول .»

د حسن په ژبه د سیاسي فکر او ژوند ارمانونه ، د کلونو د سنګلاخ په جامه کښې د سیاسي ژوند د ولولو ، لړو ، ژړا ، دردونو داغونو او یادونو خد وخال . »

په همدې حساب د دغو غزلو د مجموعې د څو پاڼو په لوستو مایه خپله لیکنه کښې داسې را په ګوته کړې ده :

«.... دا یو لوی سند دی . ادبي او تحقیقاتي سند . د هغو په مقابل کښې چه ادب له ژونده او ژوند له سیاسته بېل ګڼي .

را ډېرې شي ، و دې ګوري چې ګلونه تکلونه » کښې ژوند او ادب ، هنر او سیاست ، مینه او سنګلاخ ، مره او څڼګه یو په بل کښې سره نغښتي او تاو راتاو شوي دي ؟ »

زه اوس هم په خپل نظر ټینګ و لاړ یم او د هغه د تشریح له پاره وایم : ګلونه تکلونه د غزلو یوه مجموعه ده چه هر غزل

يې د پښتو قوي او ښکلی غزل دی. د وزن او بحر خبره خو عادي خبره ده او له خټک صاحب غوندې شاعرانو نه نه خطاکېږي، ادبي بديعي صنعتونه لري او تشبيه ګانې او استعارې يې ډېرې ښکلې دي. د هنري ښکلا په باره کښې يې زه زيات څه نه وايم. هغه ستاسې ذوق او قضاوت ته سپارم. زما دعوه داده چه په دې معياري غزلو کښې خټک صاحب د خپل زړه، د خپل ذهن، د خپل نظر او د خپل ارمان خبرې هم کړې دي او د خپل تاټوبي، خپل هېواد او خپل جهان تصوير يې پکښې ايستلی دی.

تاسې ته اول يو غزل، د دې غزلو د هنري ښکلا د ښودلو د مثال په توګه وړاندې کړم، بيا به د همدې معيار هنري کلام، معنو، نکتو او ارزښتونو ته پام واړوو او له تاسې هر يو نه به هيله وکړم:

څنګه به خوږه پښتو کښې مينه د جهان ښکاري؟
غور به ګلونو تګلونو دا جمل کړه رشفق،

زما له خوا د ګلونو تګلونو، د هنري مثال انتخابي غزله دا دی:

مونږ مزل غواړو د سرو شونډو د ګلفام په شفق
دوی مو تېر باسي د يو تور غوندې ما ښام په شفق

اغزو کښې هم هوس د مينې د خندا پيدا شو
چه مستې د دوه ستر ګې ښکاره کړې د خپل بام په شفق

د انګوري میو نیشه لې عنبرینه کړلـه
چه ستا د خټو سیوري وشولو د بام په شفق

ماچه ستا سره لوښه ولیده په برګود رکښې
د اختر میاشت وه چه ښکاره شوه د مرام په شفق

خټک تا چه په پښتو کښې شاعري شروع کړه
یو سره لمبه دې را پیدا کړه د کلام په شفق

*　*　*

د خټک صاحب لوی کمال دا دی چه د پښتو د نور و
پخو پخوانیو او اوسنیو شاعرانو په څیر خیله ویناد فولکلور
داد خلکو د حکمت په مرغلرو سنبالې کوي، او شعر ته غنا،
قوت او جاذبیت بخښي. تاسي وګوري!
د پښتو متل دی چه: « په یارانه کښې بنګړي ماتیږي » د
خټک صاحب د غزل په یارانه کښې هم بنګړي مات شوي دي.
بنګړي نه، بلکه سر مات او سینه ژوبله شوې ده. خو
خټک صاحب په همدې متل د مزل یارانو ته تسل ورکوي:

غم مه خوره که سر مات شو، سینه ژوبل لیونیه!
بنګړي خو تل ماتیږي د مینو یارانو کښې
( ګلونه تګلونه ١٦ م مخ )

شاعر دهمدې متل د مضمون په تل کښې دحسن رنا وینې په هغه خوشحالي کوي او یوه مبله یې کښي:

بنګړي به نن ماتېږي او جامونه به کږنګېږي
دحسن په رنا زمونږ خونه کښې مبله د ٥ (١٨مخ)

بو یه چه د ده یارانه، جامونه او دحسن رنا به څه وي؟ زه یې نه وایم تاسې یې ووایئ.

د پښتو متل دی چه نمس په دووکوتو نه پټېږي.
ختک صاحب دا متل هم د ارسال المثل دصنعت په توګه کارولی دی. خو په "کلونه تکلونه" کښې د "نمر پر ځای "غر" چاپ شوی دی. ښا یې چه د دې متل بل وریانت دغسې وي یا ختک صاحب پکښې تصرف کړی وي او لا دا چه طباعتي تحریف وي.

مونږ دا څیړنه فولکلور پېژند ونکو ته پرېږدو او شعر لولو:

ما ختک ته وی چه ته څه مه وایه
غر د چا په دووکوتو پټېږي نه (٢٧ مخ)

د لته د هغه چا په مقابل کښې چه دی غلی کوي، چوپوي یې او په خوله یې ورته دسکوت مهر ږدي، دا متل راوړی او ځان یې دغره په شان یا د لمر په شان ښودلی

دی چې په دوو کوتو نه پټېږي.

د عربي ژبې مقوله ده چه «الخیر فیما وقع» پښتانه هم وايي «څه چې کېږي ښه کېږي». خټک صاحب دیو مین شاعر په شان خپله مینه او وفا کوي، خود طبیعي ضرورت او ضمیر د آرامۍ له پاره یې کوي، په چا یې نه زباتوي. په پیمانه یې نه تلي، ځکه چه په دکان کښې یې نه خرڅوي او قیمت ته یې د طمعې لمن نه نیسي. د مینې او وفا په نتیجه کښې چه څه کېږي هغه ښه کښې او «خیر» په «ما وقع» کښې ویني:

مونږ مینه او وفا په پیمانه تللی نه شو
مخمور یکښې روان یو چه څه کېږي ښه به کېږي (۴۸ م مخ)

لنډۍ د پښتو د شفاهي ادب یوه غوره مشهوره نوعه ده داسې ښکاري چه په ځینو شعرونو کښې، ځینې مشهورې لنډۍ د خټک صاحب تر نظر لاندې وې. د ساري په توګه، د پښتو یوه مشهوره لنډۍ ده:

په ګل ګلاب دې وو یشتمه
تر لاس دې جار شم رقیبانو ولیدمه

د معشوق له خوا د عاشق ویشل، که څه هم د ګل په پاڼه وي بورخو نوره اګیمه هم لري چه د رقیبانو زهره پرې چوي. خټک صاحب دې مضمون ته نور هم انکشاف ورکړی

دی. د پښتنو د ملک د دودونو له مخې چا بې وفايي پروا
بار، آشنا او ملګري ته د ګيلې په لهجه وايي چه که په ګل مې نه ولې
نو په پا نو خومې وولې. ځکه چه دا خو د پښتو ملک دی. که رابطه
چوره قطع شي نو بيا د پښتو د ملک او سپيدو ننګ به تا او يا به ما
پسې خبرې وکړي. نه يا ته او يا د واړه به ورته بې کسه بېکاره شو..
چه ګل نه وي، نو په پا نه خو مې ولـه
که وفا نه شوه نو ملک خو د پښتو دی (۸۲م مخ)

د خټک صاحب په شعرونو کښې د پښتني فولکلور له انګېرنو
نه هم ځاى په ځاى کار اخيستل شوى دی. د ښې ستړګې رپېدل
د ښه خبر د اورېدو يا د ښې پېښې او د کيڼې ستړګې رپېدل
د بد خبر يا بدې پېښې زيرى ورکوي. خټک صاحب د خلکو دې
انګېرنې ته داسې انعکاس ورکړى دی:
پوه شو مه نن دې نيت زمونږ کلي ته کړى دى
ستا د قدم زېرى مې د لته کښې ليمه رپوي (۲٦٤م مخ)
همدارنګه د لارې د ګېنو ملګرو د بې لارې کېدو په سببونو
کښې يو هم د دوى له نظره کېدل ښې چه دا هم د خلکو دا انګير نو
يوه جلوه ده:
مات شول، غرضيان شول، که بدل که د نظره شول
نه پرو شهسوارو د ميدان خبرې هېرې کړې (۱۱م مخ)

خټک صاحب په خپلو غزلو کښې د پښتو د مشهورې کیسې قهرمانان آدم خان او درخانۍ ډېر ډېر یاد وي او د خپلې تعلق او د وطن د مینې د قهرمانانو له پاره یې د مثال په توګه وړاندې کړي:

ناوې د رخو ناسته ده کو درکښې د سینګار سره
ولې خو زلمو د آدم خان خبرې هېرې کړې (۱۳ مخ)

د مینې د قهرمان آدم خان د رباب ټنګ د خپل عصر د آسمان له وړانګو اوري:

دا دلته غږ وې آدم د باب په کومو ګو تو؟
چه وړانګو د آسمان کښې را پیدا ورسره ټنګ شو (۸۸ مخ)

خټک صاحب د نورو اولسونو هغه فولکلوري قهرمانان چه په پښتو کیسو او داستانونو کښې مشهور دي هم په خپلو شعرونو کښې اړوي را اړوي. مثلاً په یو ځای کښې د مجنون او لیلا خبرې نه ې بولي او د نوي عصر مینان نوو رنځونو او خبرونه را بولي، دی نه وبید یا وو او لرغونو غرونو سره نوې مینه، یعنې په نوي شان مینه ترې غواړي:

خټکه! دې بید یا او غرته ورکړه نوې مینه
خبرې نه ې شوي د مجنون او د لیلا د ې (۲۱۳ مخ)

له نوو زلمو نه د سر په بیه د وخت د کلکو غرونو سورې کول

غواړي ، څو چه د غو د دوران فرهادانو ته د ژوند شېريني
په پښو کښې راولوېږي :

که تهٔ لکه فرهاد شې غر په سر باندې سوړکړې
د ژوند شېرينۍ به د غر ده په پښو کښې درلوېږي (٤٦ م مخ)

د استعمار او استثمار له توردېوه د وطن د ګل اندامې د
خلاصولو له پاره آزادي غوښتونکي بهرامان تېنګ تکل نوته را
بولي :

بهرام شه ملا دې و تړه تکل ورسې وکړه
له دېوه ګل اندامه په ناروکړ خلاصېږي (٤٤ م مخ)

خټک صاحب د شرقي فرهنګ او رواياتو د نورو څېر و
نومونه هم په خپلو شعرونو کښې د مثال يا تمثيل په ډول راوړي
او خپل شعرته يې احساس ، خوند او قوت بخښلی دی . وايي :

په زړه د خټک لګي د منصور خبرې سمې
د ده هډو د سره د قارون خبرې نه زده (٤٩ م مخ)

د سامري ، فرعون او قارون په مقابل کښې خو موسیٰ ع
(پيغمبر) ولاړ و . د ديني تاريخ له مخه د سامري د سروزر و -
خوسکی موسیٰ ع ، مات کړی دی او دهغه ډمبارې يې غلې
کړې دي . بخيل سرمايه دار قارون له خپلې سرمايې سره د
موسیٰ (ع) په دُعا په ځمکه ننه ايستل شوی دی او د وخت

د مستبد ځان منوںکی فرعون په زیره موسیٰ (ع) دماشوم توب
په وخت کښې لوبې کړي دي او بیا د رشد او کمال په سن
کښې یې هماغه فرعون د زمانې او تاریخ په رود نیل کښې
غرق کړی دی. په ادب کښې تل د موسیٰ (ع) د مبارزې د
سمبول په مقابل کښې، د سامري د زرو د جا دوګر، د قارون
د پیسو د مینې او د فرعون د چپل چارې مستبدې ښېرې
نمونه او سمبولو نه راغلي دي. مګر خټک صاحب بل ابتکار
کړی دی. د قارون په مقابل کښې یې منصور راوستی
دی. هو! خټک صاحب ضرور دا کښې چه قارون پیسې
تولولې او منصور کیسې. هغه په پیسو مین و او دی په حق.
هغه په وا پیسې، زما پیسې! چیغې وهلې، نو ځکه په نتیجه
کښې د خپلو سرو سپینو زرو په ډېرۍ ناست ژوندی په زمکه
ننوت او دہ د حق حق او انا الحق نارې وهلې د دار سره
وخوت او په سرلوړیه او سرفرازیه یې سا ورکړه. نو مونږ
د دواړو پاتې شوو. د یو هغسې او د بل دغسې. نو ځکه
خټک صاحب هم د وخت د منصورانو او قارونانو د محاکمې
په باب په بل ځای کښې وايي:

د وخت قاضي نه وړاندې بیا د حق مقدمه ده
منصود په کوم تال زانګي؟ قارونان په کوم تال زانګي

(۱۱۵ مخ)

د ختیځ خټک صاحب په خپلو شعرونو کښې یوازې د
روایتي شخصیتونو په ذکر بسیا نه کوني، بلکه د خپلې ټولنې
تاریخي شخصیتونه او قهرمانان هم ښیي. ده په مکرر
ډول د پښتو د ستر شاعر رحمان بابا نوم راوړی دی. ډېر
ځایونه یې د رحمان بابا له نامه سره عزیز خان هم یاد کړی
دی. ګویا غوښتي یې دي چې له خان عزیزخان نه د خانۍ
او نخوت او له ملنګ رحمان نه د سرېتوب او شرافت سمبولونه
جوړ کړي:

ډېر عزیزخانان دي اورنګان هم شي
خیرې د رحمان دوهمه سړي نه (۲۷م مخ)

هو! ده د نورو پخوانیو شاعرانو په شان له اورنګ
نه د ظلم او استبداد د سمبول کار اخیستی دی. په دې بل
بیت کښې بیا د خوشحال خان د زوی بهرام ناخلف توب ته
اشاره ده او د هغه له نامه سره د دې وخت د باګرام د بهرامانو
اورنګي قلم تړي او ماتېدل یې غواړي. هغه چې په پښتو ژبه
د پښتنو نه، بلکه د پردو خبرې لیکي:

مات شه د باګرام د بهرامانو اورنګي قلم
کوم چې په پښتو ژبه خبرې د پردو لیکي (۳۱ مخ)
فکر کوم چې اوس د باګرام د اورنګ او د هغه د بهرامانو اورنګي

قلم زيات وضاحت ته ضرورت نه لري او هرڅوک يې پېژني .

په تاريخي پېغلو او مېرمنو کښې ، خټک صاحب ملالۍ ته ، هغه دآزادۍ دميدان قهرمانۍ ته زيات توجه لري . هغه دپاکۍ ، عفت ، پښتونولۍ او وطن پالنې سمبول ، سرمشق او نمونه کښي . د وخت له پېغلو نه ملالۍ جوړېدل غواړي ، لکه چه وايي :

بې پته بې همته زلمي تېتې سترګې ګرځي
کوم ځاى چه د پښتو په نشه مستې جينکۍ وي

په مستو مرغلرو کښې ملالۍ پيدا کېږي
زلمي دې ګوري هر وخت لکه توري ابدالۍ وي

د پېټ نه ډکه پېغله د حيا بله د يو . وي
ځواني د ګلو لښته وي خبره يې ملالۍ وي (۵۷م مخ)

* * *

د هرچا خپل ښاييست وي ، خپل کالي وي خپل خپل رنګ وي .
ښاييست د پښتنې په روايت د ملالۍ وي (۵۸م مخ)

د ملالۍ له فطرت سره د خټک شاعر د مينې او علاقې له مخه :

هرشعر يې هېواد کښې د ملالۍ لوېټه شو
خټک د غزو د سره خپله نظمونو وته کوري (۴۵م مخ)

خټک صاحب یوازې د پښتانو په یا دکښې پاته شوی نه دی، بلکه اوسني یاران، دوستان او ملګري یې هم له یاده نه دي ایستلی. ګورئ په نوې دنیا د چکوسلواکیې په متلي او پر مختللي هېواد د پراګ په ښایسته ښار کښې چا خیالي یا عیني، مجازي یا حقیقي ښکلي ته چه د هغې د سرو شونډو خندا ته ښکلي سرې غوټۍ هم حیرانې یې وایې:

غوټۍ چه ستا خندا ته فکر وهي غوندې بښکاري
په خیال کښې مې ولاړه دستا په خوا کښې تورلالۍ دی

هو! تورلالۍ د خټک صاحب د ډېر وخت ملګرې .... چه هر وخت به یې په خوا کښې ولاړه و...

د شرقي اروپا د ښایست په ګلورینه فضا کښې وخت په خوشې دهر بل وطنپال شاعر په شان د خټک صاحب په زړه باندې د وطن یاران وریدلې دي او د پر ځلې داسې هم ویلي دي چه د دې یا دونو له امله د هغو ښکلو ملکونو په ښایست سم پوه شوی نه دی:

خټک ته رایاد شوي ښه یاران د اکوړي دي
والله که د برلین په ښایست یو ذره پوهېږي (۲۳م مخ)

کله یې ډلې ډلې یاران، کله یې دیارانو ډلې او کله یې یو یو یارا آشنا او ملګرې یا د شوی دی. وګورئ چه په (فرانسکولینزی

سنا توریم، چکو سلواکیه) کښې یې د خپل عمر وطندار ، په سمو
ټو دوکښې شریک پاته شوی آشنا ، د شعر او ادب د رنګینې دنیا
ټډي همزولی او ملګری، د پښتو ستر شاعر غني خان ،
د شعر او شعرویلو په حساسو شېبو کښې داسې یاد کړی دی:

سبه خو غني خان ګچه خم تش کړي نظم ولیکي
خوار خټک ته ګوره چه شعر ونه په او بو لیکي (۳۱مخ)

کرن خټک صاحب پېښور او له ادبي روحیې نه یې لیږدېږ
خبر یم، نو ځان ته حق ورکوم چه د دې شعر په باب ووایم:
شاعر هلته له وطنه لېرې ، د ملګرو او دوستانو په ښکلی
وطن او ارته دنیا کښې په ډېره آزاد ه ، خوشګواره فضا او صافه
پاکه معتدله هوا په کوم ښکلي پارک کښې ، چېرته د سیند په غاړه
ناست دی. شعر وایي. د سحر ستوري ته ګوري چه د نوو پېښو
کیسې او د سرېتوب د لیارې د لېونو دیرغې برات د لمر په پلوشو
لیکي.

د سبا ورېمې شاعر ته په غوږ کښې وایي چه ګل ستا سو د
وینو تذکرې لیکي او موسېږي . شاعر ته خپله میشوریاد یږي
چه د هغه د وفا زړې میڅوک ترې بېلولی نه شي، که څه هم
له نازه یا له مجبوریته خط په اشاره لیکي .

شاعر د سحر رنګینو خوبو نو کښې ډوب دی، خپله مینه

ورېبه یادشي ، دماضي غمونه او دحال جنجالونه یې زړه ونوکټوي.
ګوري چه قوم او اولس یې د مجبورۍ شپې ورځې تېروي.
هلته دخوشحال بابا په نغري کښې دوخت بهرامان په خپلو
اورنګي قلمونو په پښتو ژبه د پردو له پاره کارکوي، شعر
وايي او قصه لیکي. شاعرنه هرڅه یاته شي او زړه یې دوب
دوب شي. ناڅاپه دسیند دزموڅپو او نري شمال په اوږ و
سپور د ده زوړ یار پیدا شي، مخې ته یې ودرېږي. ودته ووايي
یاره څه چرت وهې؟ چرت مه خرابوه زه خودرسره یم.
شاعر بېخوده شي، تسنل شي، موسکۍ شي او خوشحالي
وکړي چه :

سبه خو غني خان دی چه ختم تش کړي نظم ولیکي
خوار خټک ته ګوره چه شعرونه په او بولیکي

خټک صاحبه! همداسې نه و؟ . . . .

ددې شعر په نتیجه کښې ددې وخت دپښتنو شاعرانو دوه
مخالف او متضاد کرکټرونه ، یود باګرام د بهراما نو داورنګي
قلمونو خاوندان او بل دغني خان د شاعرۍ د رمزاو راز
منکری را څرګندېږي.

په دوهمه ډله کښې بیا یو غني خان او بل اجمل خټک
او ورسره نور وطنپرست، ذمه وار او اولسي شاعران راځي.

نن د لته چه د غني او اجمل په یاد مباحثه ده، ماغونډې
یو سرې د ومره اضافه کولی شي چه:

غني خان، زمونږ د عصر او زمانې، زمونږ د ملي ژبې
یو زبر دست زورور، زړه ور شاعر دی چه هسې نه، بلکه
په شعر کښې هم، غني دی او هم خان.

غني په دې دی چه ډېر شعرونه، ښه شعرونه او ډېر ډېر
خږې شعرونه ویلي دي. شعرونه یې یوازې زیات کمیت نه، بلکه
لوړ کیفیت هم لري او یوازې لوړ کیفیت نه، بلکه تنوع او رنګینې
هم لري. دې ته زه وایم د شاعر غنیتوب چه د عمر هنري
کار او زیار، فکر او خیال یې پښتو شعر ته غنا بخښلې ده.

خان خو په دې دی چه نورو ټولو خانانو غونډې زورور
دی. د خوشحال بابا غونډې په ښکاره ناربې وهي چه خوله یې راکړه
او د فخر افغان بابا په شان له هر څه او هر چا سره یې کار دی. په
هیچا یې چرته ورانه نه دی. هرچا ته ان خپل پلار ته هم
خپله خبره کوي. د ادب، هنر، صنعت او ژبې قیدونه او
بستونه یې مات کړي دي. ژبه یې خپله ده. وزن یې خپل دی.
الفاظ یې خپل دي، شعر یې خپل دی، د چا پرې څه؟

دی خو د شعر په کمیت، کیفیت او تنوع کښې غني او د هغه
په تخنیک کښې خان دی. مګر زمونږ نیکمرغي په دې کښې ده

چه دی د شعر په محتوا او مفهوم کښې نه غني دی او نه خان ، دانسانیت دلیارې پوره سا آواز دی چه دزمکې ، غوایي او خوسي دهر بل خان له تصور نه پورته دخوړ له سپینو شګو نه محل جوړ وي ، له انسان سره د مینې اور پکښې بلوي او ما او تا او هر غني او فقیر بنیادم ته د سر پټوب بلند ورکوي .

هو ! اجمل ، اجمل لکه پخپله یې چه ویلي دی ، خوار ختک دی چه شعرونه یې اوبولیکي . په شعر کښې خوار نه دی ، دی هم غني دی ، مګر نظریه یې د خوارو خوارې کښیانو ده . د دې نظرې په لاره یې په خان باندې هم د دنیا خوارئ منلې دی . نوځکه له شرابو نه محروم یا پرهیز شوی دی او مجبور دی چه شعرونه یې اوبو ولیکي . دا مقایسه خوده پخپله کړې ده ، زه بېرته ورګرځم د اجمل ختک صاحب ګلونو ته : ختک صاحب په دې مجموعه کښې د تاریخي او یا افسانوي شخصیتونو او دخپلو یارانو ، دوستانو ، آشنایانو او ملګرو په خوا کښې خپل ځیني داسې ملګري ، چه موږ یې تر اوسه په نامه نه پېژنو او ده غرضیان بللي دي ، هم یادکړي دي . ګویا چه لاندې دا غزل یې دهغو ځینو ملګرو په باره کښې لیکلی دی چه ده ده په

وینا د مبارزې له لارې نه یوازې ته شول:

نور د منزل او د کاروان خبرې هېرې کړې
مونږه د کاسو او د جانان خبرې هېرې کړې

ځان یې د یوسف نه خلاصوو هغه یې خلاص کړو ترې
ورورو د کوهي او د کنعان خبرې هېرې کړې

مات شول، غرضیان شول، که بدل که د نظره شول
د پرو شهسوارو د میدان خبرې هېرې کړې

تا وې درخوناسته ده کودرکښې د سینګار سره
ولې خو زلمو د آدم خان خبرې هېرې کړې

ای د حسن خیاله ته خو راشه او س یوازې یم
خلقو خو دیت او د ګزران خبرې هېرې کړې

ما خو د با یې د ملنګۍ کچکول ترلی دی
تاکه د دوهي او د رحمان خبرې هېرې کړې

* * *

خټک صاحب زمونږ د لرغوني تاریخي هیوا د ځینو لرغونو، سیندونو او دریابونو، کلي او ښارونو هم په خپلو دې شعرونو کښې یا د کړې دي او لکه د بل هر پردیسي شاعر غوندې یې د یار او د یار یاد د شعرونو رنګ، ښکلا او خوند ورزیات کړی دی. وګورئ مثالونه:

تاتره : ته د تاتري لښکر کښې یې کړنه
دا د غرو بهیر په ځا کمېږي نه (۲۷م مخ)

* * *

اکوړه: شنه زړونه لوګي د سپېلنو شو ورته لاړې ته
کله به خټک د اکوړې په سیمه ورشي (۳۷م مخ)

* * *

اباسین: په ذهن مې د فکر اباسین په څپو راشي
څو زړه مې په ټوپونو شي د خلقو خوشحالي ته
(۶۵م مخ)

* * *

کونړ - پغمان - آباسین:

دکونړ سره چې راغي اباسین شو پښنه نیولی
رایا د ورته خټک شو په ګلونو د پغمان کښې
(۴۴م مخ)

* * *

یادا سي نور ....

خټک صاحب په دې شعرونو کښې د پښتونخوا د ټولو سیمو د ټولو او سېدونکو د ژوندانه د دود دستور او د پښتونولۍ ارزښتونه او ملي آولسي غوره دودونه او منعنې دغزل په ښکلو کنایو او اشارو کښې ځایوي ·
وګورئ :

**جرګه:**

يوه خوبه مني آخر راځي به چه پښتو ده
د ډېرو ارمانونو د جرګې ورپسې شمارم (۱۳۰م مخ)

راځئ چه خپل مراد پسې شريکه جرګه وکړو
خټک څه بابا نه دی چه سوالونه يې قبلېږي (۱۸۴م مخ)

**پښتو:**

غوڅې غوندې په سورکفن کښې بيا هم تاتر خاندي
خټک به لېونی وي خو پښتو باندې يو هېږي
(۱۹۰م مخ)

**اوسنی شمله پخوانۍ پګړۍ:**

خټک په پښتونو کښې يې لچکوله يو ملنګ دی
شمله يې اوسنۍ خو پګړۍ يې خوشحالي دی (۲۶۰م مخ)

په پښتو پګړۍ د اوسنۍ شملې او پخوانۍ پګړۍ خاوند ،
اجمل خټک د جرګې درنې عنعنې ته په درانه نظر کتلی دی . ځکه چه
جرګه د پښتنو خلکو د يووالي او اتفاق مرکز دی . په هغې پوه ولن
د خلکو يې اتفاقي ، ځانځاني او قبيلوي نسلي بېلتون نه مني . يعنې
له هر يو پښتون نه پت غواړي او نوم پسې نه ګرځي :

مونږ نوم نه غواړو پت غواړو دمينې په ميدان کښې
زما او ستا پرې څه شو که غلجي که ابدالي دی
(۲۶۰م مخ)

خټک صاحب پښتنو او هر زيار کښ انسان له پاره د شرافت ژوند
د ژوند سکلا او سر لوړ دکار او زيار په برکت غواړي . د کلو نو بنا يست

د محنت دخولو محصول کښي :

آسمان نه دا ګلونه په ټوکرونه راوربږي
نموتي خو په کیاروکښي دخولو نه راټوکیږي (۲٤٦ مخ)

* * *

منمه چه دګل په رنګ کښې حسن دفطرت دی
ښکلا د باغیچو کښې چه موسیږي نو محنت دی (۵۰ مخ)

* * *

خواریکښ انسان خپلې خوا پوري نیسي او ورته وایي :

خټک دستا دمتو دخوارۍ سندرې وایي
لږ خواته خولې کښینه چه دچاخبرې کیږي (٤٧ مخ)

* * *

نوځکه د زیارکښو انسانانو په ښکلو هېوادونوکښې دجنت له باغیچونه راوتلې دنیاګوري چېرته چه ګلونه او انسانان یو دبل تماشا کوي. انسان پکښې آزاد دی . څومره چه الوزي هغومره یې خپله دنیا ده. دخپل هېواد زیارکښ انسان ددې ښکلې فضا ته هڅوي او بلنه ورکوي :

تراشه ورته وګوره چه څه ښکلې فضا ده
راوتې دجنت د باغیچو نه دا دنیا ده
ګلونه دانسان، انسان دګل په تماشا دی
محنت نه جوړه کړې بنیادم یوه ښکلا ده

پر واز دانسان بند نه دی دزړه په پنجره کښې
چه څومره څوک الوزي خپل آسمان خپله هواده

(۹۹٤ مخ)

* * *

همدغسې حالاتو، تخیلاتو او تصوراتو سره، چه هلته دنوې دنیا جنتي ماحول ګوري او بیا یې دخپل هېواد دبې کته خلکو دوزخي ژوند ته پام شي، نو به خپل غزل کښې دانساني ژوند دتصویر دواړه اړخونه څرګندوي.

تا سي وګورئ چه په نوې دنیا کښې خټک صاحب دخپل لرغوني هېواد د . خلکو په بد قسمت ژاړي، دوطن په وچو میرو او ښکې توېوي، دخپل زړه دزخم په هینداره کښې، دګل دسیوري لاندې خپل ځوځان رایا دوي. سره دې کله چه دا ما سین دغاړې دګودرونو منګی ورپه یاد شي، نود نیوب دسیند دغاړې بې کچه ښایست ورته تو کې ښکاره شي.

داحساساتو په دغه متضاد توفا ن کښې دوخت دحریفانو دمعاملو یا دېې دیو نشتر په شان دنازک اوځوریدلي احساس په زړه او خېګر ولګېږي او مینه، مینه، مینه ناري وهي.
وګورئ:

شرنګ اوري دپایلو او کړنګ اوري دپیالو
په دا سې وخت کښې ورک یې لا په کومو مسلو

ستا ن لغو او ستا شونډو ته زیربړم دلته نه
دا زړه مې ثمروي قسمت د خپلو جینکو

دا ولې د غوټیو شونډې مړاوي مړاوې ښکارې
را والوت ورته با د چېرته زمونږ د میرو

لږ وګورئ زما د زړه د زخم آیینه کښې
د حسن د نغمو ډکو ګلرنګو جزیرو

د ګل د سیورې لاندې راته خپل خوږ ځان را یاد شولو
نن ځنګ ته زما مه راځئ پردو پردو وږمو

دا نورې هسې توکې دي ښایسته خو ښایسته دي
د مست اباسین غاړې ګودر ونه د منګو

خټک مینه منې، مینه کوي، مینه لې مینه
حیران کړلو د وخت د حریفانو معاملو

(۲۹۲م خ)

* * *

په دې ډول مقایسو کښې لا کله کله ښېښتون شاعر ګوري چه د دنیا د خلکو او لسونو د کاد او زیار په څوڅو ګلونه غوړیږي او زمونږ په درمندونو د بې وسۍ زه له وریږي، نو ځکه په یو شاعرانه تګل ځان له دې ډول وسوسو وباسي او خپل خلک د نړۍ په لوی میدان کښې د سیالۍ له پاره را بولي .

د ځلقور محنت خولې د سرو ګلونو برخې
زمونږ د بې وسۍ په درمند هغه شان رالې دي

ښکته دا وري دوسو سو خبري پر بر ده
وختونه د دنیا په لوی میدان کښې دسیالۍ دي (۲۰م مخ)

د همدې له امله د مینې د رهبر لمن نیسي ، دا انسان ارادو ته پام اړوي . دا انساني مینې په زور د ځمکې تنابونه لنډوي او دا انساني شاعرانه خیال د حسن د معیار له پاره مشرق او مغرب یو کوي .

د حورو او غلمانو د ډک جنت کښې یې خه و کړل
تکل چه د انسان په اراده کښې په غور ځنګ شو

د حسن په معیار کښې یې مشرق او مغرب نښته
دا ځکه خو ښتک کچکول را واخستو ملنګ شو
(۸۸م مخ)

ـ دا انساني مینې او ښکلا د کمال دا احساس له داسې تکلونو سره شاعر د ګان او د خپل هیواد د محنت کښو خلکو ته وندانه تکلوري تا کلی دی . چیرته چه وایي :

په لاره کښې موبل دې د سرو وینو مشالونه
د ژوند ښکلي کاروان ته مو تا کلي نښا نونه

ددې او چت منزل تر آسماني څوکو به رسو
سواره به هم ما تېږي هم غورځېږي به سرونه

دا چاویل د میني لار د ګلو په روش ده
په هر یو قدم د لته کښې پسیږي ګرځنګونه

دا مونږ ه لیوني لکه جرس مخکښې روان یو
زمونږه په وهلو به سرکیږي منزلونه

دغم کچکول په غاړه دفا په لاره ځغلي
راځي خپه د خټک سره یوځای کړي قدمونه

(۳۲م مخ)

* * *

هو! خټک صاحب چه وایي: "په لاره کښې مو یل ګې د سرو وینو مشالونه" دا د آزادي بخښونکي نهضت لاره ده چه تل پکښې د سرو وینو مشالونه بل دي او دهغو په رڼا کښې دلاري دلاروي کاروان د غلو غدیو له خطر څخه بچ کیږي ...

هغه ګلونه تکلونه چه په هر غزل او هر بیت کښې یې زمونږ دوچود ښتو دیو للمي ګل خوشبویي، زمونږ د دنګو واو رښتو غرونو په کلکو تږو کښې دیو غوریدلي ګل ښکلا یا زمونږ د ښاریو په کیاروکښې د رزل شویو ګلونو موسکا او پکښې د دطود ښتو، غونډیو، غرونو او ښاریو د خوځیدلو بیوزلو او سپید وښکو دراتلونکي ښکمو غه ژوند له پاره دنوي مترقي نړۍ دوروولۍ او برابرۍ په اساس دآبادۍ او پر مختګ د هوسا او ښا هو

ژوند یو تکل کوږو چه له تحرک او ډینا میزم سره په مثبت او ژوندي ډول د شاعر د فکر اندیښني، هیلو او آرزوګانو د تکلونو عکاسي، د هغه د هنري صلاحیت، استعداد او تجربي په برکت د غزل په نازکو، تاندو، سرو او ښکلو کلیا بو کښي شوي ده.

دا شعر وته زموږ د هیوا د د کلانو په شان رنګین، ښکلي او نازک او زموږ د لویو لوړو غرونو د تورو تږو په شان کلک او زموږ د آمو او اباسین د څپو په شان په غورځنګونو دي. نو ځکه د هغو د چاپ نه وروسته زموږ په خلکو، شاعرانو او ادیبانو یې زیات اثر وشو. ټولو د هغه استقبال وکړ.

دې کښي شک نشته چه د غزل په فورم کښي اجتماعي سیاسي مطلب تعقیبول د هغو زمانو لوړني تخلیق دی چه هلته شاعران مجبور وو چه په سوري کښي آذانونه وکړي. مګر زموږ د شرقي شاعرۍ دې فورم داسي دومره ارتقاء کړې ده چه د هغې په کمولي یا نشتوالي زموږ د شاعرۍ په کلبن کښي ستره خلا محسوسیږي.

د پیړیو په پوړیو کښي د شعر دې اشارو کنا یو هغه مقام موندلی دی چه له صراحت نه یې زیات بلاغت ورپه برخه شوی دی او هر وخت ورته ضرورت محسوسیږي. له غزل نه زموږ

دشاعرانو دیوې نسبي خاموشۍ په وخت ګلونه تکلونه چاپ
شوو، دا بنه په موقع کار و.

موږ باید دغه یار کښې انسان څېره د هنر د تولو ګلونو په
پانو کښې څرګنده کړو... موږ باید دو دوریه او برابرې پیغام
له هر دریځ نه هرچا ته ور سوو. په دې لړ کښې دغزلو
ضرورت محسوس دی.

د اجمل خټک د مجموعې په خپرېدو دې ضرورت ته
د پښتنو شاعرانو توجه زیاته شوه. ډېر شاعران تقریبًا له سره
په غزلو واغلل... غزل لږ څه ډېر شو، لږ څه چه بنایسته ډېر شو.
اوس ځینې شاعران د غزلو په ګلونو تکلونه نغاړې. د غزل
دلرغونې هنري صنعتې په قالب کښې نوی روح پو کوي. شابس.
ځینې شاعران پوازې د غزل له پاره غزل وایي. رنګ یې
ښکلی او آهنګ یې خوږ وي، خو باید دا ښکلی غزل انسانې
پیغام هم ولري او له زمانې نه بېرته پاتې نه شي. بلکه شاعر باید
هڅه وکړي چه زمانه پرمخ بوزي او د هغې له مثبتو تحولاتو
سره ملګرتیا ولري.

- ځینې شاعران د غزل په فورم زموږ د ټولنې نوي مسایل
په ډاګه طرح کوي. دوی باید د غزل د ښایست خواته هم پام واړوي
تخیل او تصویر ته توجه وکړي او له رنګینو الفاظو کار واخلي...

- ما ورته غزل لږ څه نه، بلکه بېخي ډېر شو. دومره ډېر چې زه ځاربږم چې مونږ بټول غزل غزل نه شو او تکل اومزل زانه يانه نه شي. مونږ هڅه کوو چې شعر له بې وزنه څخه وساتو، نو بايد هر وخت ځان هم له بې موازنګۍ څخه وژغورو.

دا يوه مشوره ده، مونږ بايد هڅه وکړو چې په هره وسيله د شعر او ادب د هر فورم په ذريعه د عقل، خير انديشۍ، ښېګڼې، مينې، دوستۍ، ورورۍ، برابرۍ او پيرزوينې تخم د خلکو او لسونو په زړونو کښې وکرو.

دا د ادب يو تعريف د هر څه حد ساتل دي. مونږ بايد د غزل حد وساتو، هم د هغه حق اداء کړو.

له دې لياره د وطن او ټولنې حق هم اداء کړو. له دې پېښنها د سره زه خيلې خبرې پای ته رسوم او محترم اجمل خټک ملګري او ورورته وايم: په ګلونو ټکلو نو دې برکت شه!

: د غني او اجمل ياد ه له کتابه
د غني او اجمل د سيمينار مقاله - د افغانستان
د علومو اکاډمي - کابل - ۵ ۱۳۶۶ هـ ش

دا اجمل خټک وارث د خوشحال خان دی
چې د توري او قلم لوی قهرمان دی
د خپل عصر له اورنګ سره یې جنګ دی
د "غیرت چغه" یې غږ د دې دوران دی

خدمتګار

# رنګین غونډی عذاب

د هندوکش د لوړو غرونو په آسمانڅکو سرد روکښې چه واورې وېلې شي، نو رودونه ترې بهېږي، څه اخوا ته ځي او څه دې خوا ته راځي. د شتل او اولنډ، د کلیهار او پنجشېر، د لوګر او سرخرود، د کونړ او لغمان . . . له درونو را وتلو رودونو، خوړونو او سیندونو نه د «کابل سیند» جوړ شوی دی، چې په مزه مزه له اورسک نه اوړي او چې آبا سیند ته ورلنډ شي، بیانو «لنډی سیند»

يې بولي .

دغلته د سيند په جنوبي ګلکځونو کښې يو ښارګوټی «اکوړه ختک» نوميږي . خوشحال خان ختک هم دلته زيږيدلی او لوی شوی دی . د هغه پلار شهباز خان او نيکه ملک اکوړی خان هم دلته ميشت وو او هم دلته ښخ دی .

دختکو د مشرانو د عنعنوي ګډه په دې تاريخي ښارګي کښې په ۱۹۲۵ کال د حکمت خان ختک په کور کښې محمد اجمل نړۍ ته سترګی پرانيستې دي . دا د افغانستان د استقلال اووم کال و . د هند په نيمه وچه او له ابا سيند نه را دې خوا تر تورخمه پورې د انګريزانو استعماري سلطنت و .

ماشوم اجمل لا د دريم ټولګي شاګرد و چه ديتيمۍ ځپيريې ورته خوله کړه کړه . د ژوند او چاپيريال ترخو شرايطو له امله يې بايد درس پريښی وای . مګر ګواکې د ماشوم محمّد اجمل او د هغه د کونډې مور په زړونو کښې د پښتو پت يو پټ اوغلی احساس حکم کاوه چه د خوشحال ختک د کورنۍ بچی ، که نازولی او نادار هم وي ، بايد نادانه ، بې علمه او بې سواده پاتې نه شي

او هر څلک چه کېږي یو څه خودې و لولي .

ماشوم په ډېر لږ عمر کښې چه ورته یادېږي هم نه
یوځل له خپلې مور سره د خوشحال بابا زیارت ته ورلاړ .
په واپسۍ کښې یې د بابا د مزار په باب څه نظم غوندې
الفاظ سره وپېیل . کال بل کال ته چه د بابا په مزار رشار
کېد له، یو ماشوم شاعر هم پکښې خپل کلام وا وراوه :

راځي چه ترې خوشبو تل د غیرت او شجاعت
اجمل د تن بلبل په دغه ګل نثار لرې

په دې زمان او زمین ، انجمن اصلاح افاغنه ، فعال
و . په شعراو شاعرۍ او مشاعرو ددې انجمن تاثیر محسوس
و . د هند په ټوله نیمه وچه د آزادۍ تحریک ګړندی
روان و . د نړۍ په ګوټ ګوټ کښې د آزادۍ تلاش ته
په غور ځنګونو وو . د ځمکې په سیاسي نقشه کښې یو لوی
بدلون د تکامل پړاوونه وهل .

په داسې ماحول کښې یتیم اجمل لوېږده او لویېږده .
درسونه یې ویل ، ترهغه چه په فارسي کښې د «منشي فاضل»
په اردو کښې د «ادیب فاضل» او په پښتو کښې د «هانرزان پښتو»
برې لیکونه یې د پنجاب له پوهنتون نه واخیستل او په سبوونځیو
کښې د شرقي ژبو ښوونکی شو .

شعراو ادب ترې مخ وه ، دخپرونو دنیا ته نژدې شو . په ادبي جرګو کښې شامل او فعال و. ددغو جرګو غړو د لیک او وینا ، نظم او نثر ، تالیف او ترجمې په ذریعه د پښتو ژبې خدمت خپله لومړنۍ وظیفه ګڼله .

د خدائي خدمتګار حزب د فخر افغان بابا په لارښوونه په ډېر جوش او خروش فعالیت کاوه . ځوان تعلیمیافته اجمل خټک د دغه ملي ، سیاسي ، اجتماعي او فرهنګي کاروان سره په مینه روان و . د هغه ژوندانه د دغه دوران دکمیت او کیفیت له مخه بې اندازې سرګرمۍ د هغه د شخصیت د جوړېدو یاخه دېوالونه شول .

دې پوړیو ته ختل ، د ژوند له کړاوونو او عذابونو نه ډک وو . مګر د پښتون زلمي په زړه کښې د علم او ادب د مینې او د خلکو د خدمت د جذبې د غوټیو له سپړېدو سره د هیلو او ارمانونو رنګینه دنیا جوړه شوې وه .

په ښوونځیو کښې درسونه ورکول ، د سیاسي ، فلسفي ، اجتماعي او ادبي آثارو مطالعه کول او ځان رسول ، په ادبي ټولنو کښې فعاله برخه اخیستل ، د ژورنالیزم (صحافت ) په نړۍ کښې پرمخ تلل ، شعرونه ویل ، مقالې او طنزونه خپرول په سیاسي او ټولنیزو ډګرونو کښې په مېړانه منډه او له هڅو لګو

● د هغه دژوند ته مخکښې کېدلو کامیاب کوښښونه رنګارنګ مشغولیتونه وو چه د هغه له طبیعت سره سم رنګین ماحول یې ورته جوړ کړی و ، دې سره د رزق او روزۍ تلاش د نفقې پیدا کول ، د تېل او مالګې غم او هم د ارینګ جیلخانو ته ورتګ او هلته د تصور نه پورته ستونزې تېرول ، هغه عذابونه وو چه د انسان د آنادۍ دلارې د غښې قهرمانانو زغملې شول . دچا په زړونو کښې چه د آزادۍ ، آبادۍ ، پرمختګ او د مینې محبت ، ورورۍ او برابرۍ په اساس د یوې نوې معاشرې د جوړولو رنګینو ارمانونو غوړونې کولې او د عذابونو ستوغه او ستونزې منه لاره یې ورته اواروله .

د غښې کل چه د هند د نیمې وچې د آزادۍ له اعلان سره پاکستان مینځ ته راغی ، نو تر دغه وخته پورې له اجمل خټک خټه سرګرمه متفکر ، برجسته سیاسي کدر ، دانشمند ادیب ، ماهر ژورنالست ، تکړه لیکوال او ډېر ښه شاعر جوړ شوی و . د وخت دغه دلوړې پایې شاعر د خپل اولس یو مشهور ملي ، سیاسي او فرهنګي لوی شخصیت و .

هغه به د خپل تاریخي هېواد ، د ماضي ، حال او مستقبل د عینیت سره مطابق د خپل سیاسي فکر ونظر او علمي ادبي صلاحیت سره سم د سولې ، آزادۍ ، ترقۍ ، دموکراسۍ

او بتولنيزې دروره او برابره د نړيوال نهضت سره په همنوايه کښې خپل شعرونه د نوښت او ښايست په ښکلي رنګين لباس کښې وړاندې کول او په دې لاره کښې د عروج او ارتقاء سرمنزل ته سيده او ګړندۍ دوان و. « د طبيعت آواز، د بشر آواز او د حوا د نوو آواز چې سره يو ځای شي هغه شعر دی. د سترګو او ښکې، دزړه وينې او د روح اضطراب د شعر نومنه او د شاعر سرمايه ده. » (الفت)

هو! همدغه د رنګين غوندې عذاب سرمايه ده. له دغسې سرمايې سره د ښه او لوړ شاعر په منزلت کښې د اجمل خټک « د غيرت چيغه » په ۱۹۵۸م کال له چاپه ووته او په ټول جهان کښې خپره شوه. د دې شعري مجموعې په رنګينو شعرونو کښې، شاعر د خپل اولس د دردونو او غمونو او ديو سمپل يا نمونه يې وسيلې په توګه د ټولو خوارو ځپلو محرومو، محکومو اولسونو د انسانانو د عذابونو ماهرانه انځورګري کړې ده.

د غيرت چيغې لويه هنګامه برپا کړه. شعر سانسور شو، مګر د شاعر نغمه سره نه، بلکه لا سره شوه. د نوي دور د پښتو شاعرۍ د ارتقاء په لاره کښې مناسب نوی قدم او په دې لړ کښې يو مثالي اثر و. څوک چې په پښتو پوهيږده او

شعر سره یې مینه وه ، دغیرت چیغه به یې وار په وار لوستله . ځوانو شاعرانو به هڅه کوله چه خپل شعرونه په دې لاره روان کړي . په بهرنیو ژبو کښې یې د ډېرو پارچو ترجمې او خپرې شوې ، تبصرې پرې وشوې . پښتنو لیکوالو نقادانو په خلاص مټ او د زړه د اخلاصه لیکنې پرې وکړې . د دې کښو انعکاساتو دوه درې نمونې :

منقد دانشمند ایاز داود زي د غیرت چیغه باندې مفصل هراړخیز تقریظ او انتقاد لیکلی دی ، یو دوه پرګرافونه یې لولو :

« د اجمل صاحب قامي شاعرۍ له وارو لوی خصوصیت او انفرادیت دا دی چه د هغه د نظمونو فضاء روماني ده . یا به داسې ووایو چه بوده که یې د حقیقت پسندۍ د شهلو پېښو ده ، نو تنسته یې د رومانیت له رنګینو ، مهیښو او پستو وربښمو جوړه ده . جذبه یې دومره تنده او دومره سوځېده چه د تصنع شک قدرې هم پرې نه شي کېدی . لهجه کې یې هر څومره سخته ده ، خو ترخه نه ده او په سختۍ کښې د خوږ والي اپیل « د زړه خوږلو » قایم ساتلو د پاره هم د پښتو په نظم کښې په نوو تکتیکو نو کامیابې تجربې کړې دی . »

اياز داوُدزی صاحب په بېلو بېلو نظمونو ځانله نظرېږي هم قايمي کړي دي او « بې قراري ، احتجاج ، زه هم زلمی يم ، ان ضياع روح افغانی بترس ، بين مارته ، جنت ، پېغله ، کوچېر او کوچۍ » نظمونو باندې يې عالمانه څېړنې کړې دي ، مثلاً : د اجمل « پېغله » ، د اجمل « کوچېر » ، د اجمل « کوچۍ » د عامو پېغلو ، د عامو کوچيانو او عامو کوچيانو نه بېخي په بېل رنګ دی . ولې بيا هم مثالي کردار ونه دي ، ژوندی بنيادم دي ، عام انسانان دي ، خو د فنکارۍ جادوګرۍ د اسې خصوصيات وربخښلي دي چه په بهيرونو ، بهيرونو بنيادمو کښې يې خوشې کړه ، نو ځکه د په پکښې سنګاري . د فنکارۍ ساحري که په رښتيا څه څيزوي نو دغه د دې ساحرۍ ښې نمونې دي . »

(لار مجله ، پښتون ، د ۱۹۵۸ م اګست او ستمبر ګڼه)

څېړندوی ليکوال بيناغلی همېش خليل ليکي :

« د بيناغلي اجمل شعري قوت ، اور لګوونکو جذباتو ، قومي احساساتو ، لوړو تخيلاتو او په پای کښې د ده د اندروني او روحي سوزوونکو آلامو د يوه هېډلو ډياره کافي دي چه د ده « د غيرت چيغه » څوک ولولي . هو ! « د غيرت چيغه » هغه افکار او اشعار دي چه په پوره معنا د اجمل شخصيت لوستونکو ته

ورپېژني » (لېښتانه ليکوال)

دا د سکې د يو مخ يا د تصوير د يو اړخ خبرې وې،
اوس به وګورو بل مخ او بل اړخ ته .

مرحوم عبد الرحمان پژواک ، کله چې د ملګرو ملتونو
په مؤسسه کښې د افغانستان د دايمي استازي په حيث خدمت
کاوه ، د ۱۹۶۳م کال دمې په لسمه، له نيويارک څخه کابل ته دا ليک استولی دی:

« پروما ګرانه سليمی !

تا ته معلومه ده چې زه شاعر نه يم ، ولې دا کومه ګناه نه ده .
که نه بتول ننني شاعران ګنهکاران دي .

دا جمل خټک يو غزل مې چې په غيرت چيغه، کښې نشر
شوی خوښ شو. دده په استقبال مې يو غزل جوړ کړ که ته زما خواهش
منې، دا صلاحاتو وروسته يې زما دا حساساتو په ترجمانۍ وومنه.
د نشر اختيار يې ستا په لاس دی. »

مرحوم محمد ارسلان سليمي چې هغه غزل ولوست ، نو سمدستي
يې پرې غزل وليکه . همدا رنګه استاد قيام الدين خادم، ما (خدمتګار)
نصرالله حافظ ، امان الله سيلاب ، مجاور احمد زيار، عبدالقدوس
پرهيز، برکت الله کمين او نورو د هغو پيروي وکړه . د خيالي ګلونو
رنګينه ګېډۍ تری جوړه شوه . په کابل راډيو کښې ترخيريډو وروسته
د مرحوم امان الله سيلاب په زيار (د اجمل په ياد مشاعره) چاپ شوه .

د اجمل د هغه غزل سر داسې دی:

ساقي چېرته پياله نيمه شراب لري که نه؟
په خوا کښې چېرته چنګ او يا رباب لري که نه؟

او يو واک صاحب د خپل شعر په سر کښې د خټک صاحب يوه مصرع تضمين کړې ده:

بېګاه اجمل خټک راته په خوب کښې وې يو واکه!
«رندانو ته رنګين غوندې عذاب لري که نه؟

هو! رندانو ته رنګين غوندې عذاب ....

داسې ښکاري چه د غيرت څېښتن شاعر، د خپلو خلکو او ولس او عام انسانيت د دردونو، غمونو، داغونو، عذابونو او کړاوونو له پرله پسې اظهار نه که ستړی شوی نه وي هم، نو فکر ته به يې ورغلي وي چه لوستونکو ته يو څه د مه ورکول پکار دي، نو د ستړيا وو د عذاب د کمولو يا د يوې شېبې د هېرولو له پاره يې دا او داسې نور غزل هم په مجموعه کښې شامل کړي دي.

د دې غزل په سر کښې شاعر د اجمل وچې شونډې، د خُم بې عزتي کښې، نو ځکه يې له ساقي نه د پيالې نيمه شراب غوښتنه او پوښتنه کوي. ګويا غواړي چه دژوند پرله پسې بې شمېره عذابونو ته يو څه رنګيني وبخښي.

نو د دې له پاره هغه څه غواړي چه شاعران يې رنګين بولي او خپل

کلام پرې رنګین کوي . صوفي یې « ام الخبایث » رند شاعري « اشهی واحلیٰ من قبلة العذارا » او طبیب یې د روحي او جسمي رنځونو او عذابونو علت ګڼي .

کوم شاعر چه دژوند له ستونزو او عذابونو نه د تښتېدو او پټېدو هڅه کوي نو ټول ځایونه رنګ وویني بیانو له رنګونو نه ډکې وراني میکدې ته پناه وړي او درحمان بابا غوندې ناره وهي :

خرابات دې خدای آباد لري تر ډېره

په همت د دې له فیضه رندانه یم

او اجمل خټک د عذابونو او کړاوونو شاعر ، د همد غسې خرابات له ساقي نه د رنګین غوندې عذاب سوال کوي او فیض ترې غواړي .

هو ! شعري شراب یا شرابي شعر له لرغونو زمانو څخه یو رنګین شعري بهیر دی . د دې شراب د حقیقت او مجاز په باب څه نه وایم چه بیا خبره اوږدېږي ، ځکه چه هغه څه ته چه د خاورو وخټو د نړېدونکې نړۍ خلک وایي حقیقت وایي هغه بیا د آخرت مؤمنان مجاز ګڼي . او یا بالعکس . او د هر شاعر په هر شعر کښې د حقیقت او مجاز بېلول او نښه کول یوازې د شاعر په نیت او مراد پورې اړه لري . ځکه چه د شعر اصلي معنا د شاعر په زړه کښې وي ، نه زما او ستاسې په ذهن کښې ، او د زړونو مالک پروردګار دی .

مګر دومره خبره ده چه د شرق شاعري سمبولیکه عنعنه لري. د شیرازي خواجه حافظ، د عمر خیام او کله د رحمان بابا د شعر شرابي رنګ یا خراباتي توب زیاتره د دریا کاري زماني په نیرنګونو ملنږي دي.

دې سره د شعر ځینې مبصرین د جام او باده معنا او حقیقت یوې بلې خوا ته هم بیايي. د مثال په توګه د عرب د اسلامي دورې د لوی او مشهور شاعر عمر بن الفارض دا رباعي:

رَقَّ الزُّجَاجُ وَرَقَّتِ الْخَمْرُ
فَتَشَابَهَا وَتَشَاكَلَ الْأَمْرُ

فَكَأَنَّمَا خَمْرٌ وَلَا قَدَحٌ
وَكَأَنَّمَا قَدَحٌ وَلَا خَمْرٌ

چه فارسي ترجمه یې داسې شوې ده:

بادهٔ صاف بین به جام صاف
امر مشکل نه آنقدر ساده

گوییا این نیست، نی مینا
یا قدح بوده است بی باده

د وحدت الوجود او فنا د ثورې نظریې فلسفي تصوفي مقام ته لوړوي او داسې نور...

زه نه پوهیږم خو دومره ویلی شم چه د اجمل خټک د شعر د شراب رنګین غوندې عذاب هم د هغه د ځان او ټولنې د معذبو انسانانو د درد، غم، رنځ او عذاب د تصویر له رنګین کولو سره اړخ لګولی او د دې حقیقت یو مجازي تصویر کېدلی شي. بیا هم: معنی الشعر فی قلب الشاعر. د اسپیناوي به پریږدو د شعر څېړنوالو ته او بېرته به را وګرځو د خپل رنګین خیال او رنګین کلام شاعر د ژوند ته د رنګارنګو دردونو او رنګینو عذابونو بهیر ته.

د پاکستان په جوړېدو، د زرګونو وطنپالو خدایي خدمتګارو په شان، د اجمل خټک د اوږ وېښتې سپک نه، بلکه لا دروند شو. د قیدونو او بندونو سن اکالي ورته ډېرې شوې. د پښتو د بڼ عندلیبانو که پخوا ځانونه په قفس کښې محسوسول او په پنجروکښې یې چغار کاوه، او س نو په لوموکښې بند یا لي نښتي وو. بند او بند او بند، جیل او جیل . . .

کله چه د اجمل خټک رنګین غوندې عذاب د غزل په قافیه کښې د افغانستان راډیو په څپوکښې خوندوره رنګینه مشاعره خپرېدله، نو په خپله اجمل د پېښور په جیل کښې د اعصابو د رنځور تیا په عذاب اخته و، ځکه نو د مشاعرې ځینې بیتونه داسې هم وو:

اجمل ګوزڼ وهلی دی په جیل د پاکستانکښې
نن چیغو د غیرت ته څه ځواب لري که نه؟

«دانه پاګل وم؟» د شاعر د همدې جیل خاطرات دي. کله چې خټک صاحب آزاد شو، د یره موده پس ما ولید؛ نو راته یې وویل: «ستا سو همدې د ول شعرونو مونږ ته په جیل کښې د زیره قوت راکاوه او دهغه عذابونه یې را ته رنګین کول.»

ډیرې اوږدې شولې زما دازمایش سلسلې
امتحان تیر نه وي چه زه بل امتحان لیټوم
(طوفان)

دڅو ند د آزمایش په همدې سلسلو کښې اجمل خټک په مهاجرت مجبور کړی شو، کابل ته راغی او څو کلونه پاته شو. له هغه ځایه یې بهر نیو هیوادو نو ته هم لنډ سفرونه وشوو. د کابل، دیلي، مسکو، پراګ، بودا پست، برلین او ... د سفرونو دځینو خاطرونه یې د غزل ګلونه جوړ کړل. «ګلونه تکلونه» یا دوم. دا هم هغه «د غیرت چیغه» ده، خو په بل رنګ، بل آهنګ، بله لهجه، بېل سور وتال او ځانله سوز وساز او د رنګینو عذابونو د دردونو ښکلې تصویرونه.

«ګلونه تکلونه» دا جمل د هد فمند تغزل لویه پوړیه ده.

دلته هم شاعر په ډېره رنګینۍ او ښکلا سره له عذابونو څخه غږېږي. دلته هغه رومانیت چه ښاغلي ایاز داوډزی صاحب شودلی و، یوه دوه شوې دی. ورسره مقصدیت او افادیت هم ملګری مره، بلکه تر هغه زیات افاقیت موندلی دی.

چا وې راشه لنډه کړه دزلفو دا اوږده کیسه؟
نه، نه! داسې نه ده، خو لږ رنګ ورته بدل کړه

خنګه په خوږ، ښېښو کښې مینه دجهان ښکارې
غور په ګلونو تکلونو د اجمل کړه!
(بختاني)

په «ګلونه تکلونه» زما لنډه لیکنه ورسره چاپ شوې ده او په هغه مې د «ګل تکل او اجمل غزل» تر عنوان لاندې بله مفصله مقاله هم لیکلې ده. دلته هم دومره اشارت کافي بولم. ملګري دوستان کړلشوا به ېې کولی شي زما دې لیکنې پسې هغه مقاله «دغني او اجمل یاد» په کتاب کښې ولولي او د رنګینو عذابونو په باره کښې زما دزړه مطلب ته ځان ورسوي.

هلته او دلته حالات بدل شول، دنړۍ سیاسي فضاء کښې هم لوې بدلون راغی. اجمل خټک پښتونخوا ته ستون شو، د مشرانو د جرګې (سنا) غړی او د اپوزیشن له دریځه په پوزیشن کښې شو. مګر دې سره دازمایش سلسله لاهم روانه ده، مګر لاکرانه او مغلقه. دا دنیا دآزمایش محنه ده.

« خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلاًه »

د دې دنیا دآزموینې سوالونه ډېر سخت او ځوابونه یې لاګران دي.

دا جمل خټک د رنګین غونډې عذاب د پېچلي مضمون فایل آزموینه لا مخکښې ده . دې آزموینه کښې به ډېرې پوښتنې وي، دیوې پوښتنې شرح داسې ده:

وړم کال نه او خټک صاحب دده په موټر کښې له پېښوره اکوړې ته روان وو. په روان کاډي کښې زمونږ دا رنګه د یالوګ روان و،

- ماغوښتل چه د سیاست په ډګر کښې خپل کارونه کم کړم، نو ښې مشر خان عبدالولي خان زما په خبره خپه غونډې شو او ویې ویل که ته یې پرېږدې، نو زه به یې هم پرېږدم. د پارټۍ کارونه بې له تا نه کېږي.

- د دې خبرې څه ضرورت و؟

- زه غواړم چه د سیاست په ځای ثقافت او ټولنیزو چارو ته توجه وکړم - شعر، نثر، کتاب، څېړنې، تصنیف، تألیف او د باچا خان په طریقه داسې اجتماعي خدمتونه.

- لکه چه په سیاست کښې منډې ترړې ډېرې په عذاب او ستړې کړې یې؟ نو ځکه د فرهنګ رنګینې بزمې ته مخ اړوې.

- هو! د شعر او ادب رنګینه دنیا ده، د دې دواړه هم پکار دي. د سیاست خلک ډېر دي او د دې کم. که هغه پرېږدم

دا نړ کېږي .

- رښتیا په دې وخت کښې فرهنګ ډېره توجه غواړي .

- نو بیا څه رایه او مشوره ده؟ زه څه وکړم؟ سیاست که ثقافت ؟

- زه خو وایم دواړه . خوشحال بابا په ټول ژوند کښې د تورې او قلم خاوند ، یعني د سیاست او فرهنګ مېړنی و . نه د هغه وارثي . هغه وایي :

« هر سړي پیدا دي خپل خپل کار لره کنه »

زما رایه دا ده چه د سیاست په ډګر کښې به هم نور ډېر غښتلي کسان وي او د ثقافت په میدان کښې به هم . مګر د معنویاتو د نیا دومره ظریفه ده چه هلته هر شخص خپل مقام لري او څوک یې هم یو د بل مقام نه شي نیولی . نه اجمل خټک یې او نه تول نه بل اجمل خټک نه لري . اجمل او غني دواړه زمونږ د فخر وړ شخصیتونه دي ، مګر هر یو یې بیل بیل خپل مستقل مقام لري او په هیڅ شان له اجمل نه غني او له غني نه اجمل نه شي جوړېدی . همداسې نور . نه داسې څوک یې چه له ځوانۍ نه ترسپین ږیرتوبه پورې دې نړۍ د فضا ګانو په وسعتونو کښې د سیاست او ثقافت په دواړو وزرونو دې د برلوړ پرواز ونه کړي دي . دا دوه څیزونه ستا معنوي او صوري شخصیت له پاره ، لکه د یو انسان دوه سترګې دي . سترګې خو دوه دي ، مګر نظر او منظور یې یو دی . د سترګو خاوند هر شی په دواړو سترګو ګوري

او د دوام او سترګو د بصارت قوت (د ید) یې د اسې سره ګډ وي چې د منظور پرمخ، د نړۍ هیڅ ذره بین یې بېلولی او تشخیصولی نه شي. نو چېرې ته هم ادب د سیاست له پاره او سیاست د ادب له پاره پرېښودی نه شي. ستا ادب سیاست، او ستا سیاست ادب دی. تر یې پخپله هم پولې او کرښې ښودلی نه شي.
تا چېرې هم "رنګ" یې له "عذابه" نه دی کتلی او تا چېرې هم "عذاب" یې له "رنګه" دی پرېښی. نو ته د خپل ژوند هم دې رنګین عذاب ته دوام ورکړه! ...

په همدې کښې اکوړې ته ورسېدو
ځکه نو ما چې د اجمل خټک صاحب د ژوند او شخصیت، د ادب او فن، د فکر او عمل، ذهن او ضمیر، د غیرت د چیغو، د کلونو تګلونو... د ښودلو او معرفې له پاره کوم عنوان ټاکلی و، هغه بیا تکراروم او یو ځل بیا وایم:
رنګین غونډې عذاب!
والسلام

ننګرهار - سره رود - بختان کلی
د ۱۹۹۷م کال د اپریل ۲۷مه

د (۱) اجمل خټک ژوند او فن) له کتابه
او په دغه موضوع چې سیمینار مقاله چې د خوشحال ادبي ثقافتي جرګې له خوا په اکوړه خټک کښې جوړه شوې و.

څوک په رضا له ملکه نه ځي
یا ئې ستي زور شي یا دیار له غمه ځینه

# ملّي افغاني روحیه

انسان په خپلو هلوځلو، د تمدن او پرمختګ د پر پړاوونه تر شا پرېښي دي. په آخره زمانه کښې، د ساینس پوهانو، په پرله پسې تجربو او د خلکو په همکاریو، په اروپا کښې ماشیني صنایعو ترقي وکړه. د غو، د څپو، د اجسامو د جاذبې د قوې، د برېښنا د مثبت او منفي ارخونو په پېژندلو، د الجبر او ریاضي په پرمختللو او د ژوند پېژندنې او ساپوهنې په انکشافاتو، د بشر د درنو غوږ ونو له پردو څخه د نادانۍ خیرې پاکې او له سترګو نه یې د غفلت پردې ایسته شوې او په دې پوه شو چې باید د ژوندانه په لاره کې حسابي قدمونه واخلي، ځکه چه:

دلته دم او قدم دواړه په حساب دی
پل غلط له لارې مه بده بې حسابه (رحمان بابا)

دعلومو له انکشاف، دصنایعو له پرمختګ او دبخار دماشین له اختراع سره ، دبشر د تمدن ګاډی ، دزمکې پرمخ ګړندی روان شو. لوېې وچې یې تر پښو لاندې شوې . آرام او نا آرامه سمندرونه ورته رام شول، او د زمکې پرمخ روان انسان ، په هواکښې د الوت په هوا، په هوا شو ....

نو د انسان پر ژوند ، د زمکوالۍ د وروسته پاتې عنعنوي کليوالي ژوند د روابطو پرځای د پانګوالۍ عصري ښاري بازاري روابط مسلط شول. تجارتي لین دین او راکړه ورکړه پراخ شو....

دصنایعو دغول پیکرو ماشینونو دچلېدو لپاره ، او موادو ته ضرورت و او د پخو مالونو دخرڅلاو لپاره بازارونو ته هم ، نوځکه اروپايي پانګوالو، پر افریقايي هېوادونو داستعماري یرغلونو په نتیجه کښې پراخې زمکې تر پښولاندې کړې.

دې سره خوا په خوا ، یا د هغه په بطن کښې، دمزدک د زور، زر او زمکې داشتراک دنرې مفکورې، پرمختللی شکل په لومړی سر کښې د یوې روې یا بکوې په شان داروپايي پانګوالو دعیش او راحت آرام خوبونه نا آرامول. که د کټې او پانګې تند حرکت د سمندرونو دڅپو په شان په تقله نړۍ، د پرېغ شک

په حال و، نو اشتراکي فکر هم له مغزو نه ثبو، کاغذونو او مخا فلو ته او د متفکر انو له جرګونه د عامو خلکو پر ګنو ته سرایت کاوه او ورو ورو په صنفي او حزبي تشکیلاتو، برنامو، فعالیتونو، جلسو، جلوسونو، اعتصابونو، لیکنو، ادبیاتو او خپرونو بدلیده، څو چه په بشري تاریخ او جغرافیه کښې اشتراکي دولتي تشکیلات را مینځ ته شول. (۱۹۱۷ م)

تر دې دمه پوره کړه د کلیو د کوڅو او پس کوڅو له دوکانونو او ورو سرو بازارونو نه نیولې د بنارونو، هیوادونو او لویو چو په سطح تر لویو لویو بازارونو او مارکیټونو پورې رقابتونه او د هغو په اثر تاوده او ساړه، لوی او واړه جنګونه روان وو، او س نو، د هغه په خوا کښې د بشري تولنې د تول تېر تاریخ د تضاد د تجسم په ډول، په نړیکه کښې دوه لوی قوتونه یو تر بله سره مخامخ شول، او د دواړو تر مینځ فکري او نظریاتي، عملي او علمي، سیاسي او اقتصادي سوړ جنګ پیل شو.

د تاریخ د ذکر شوي بهیر په مهال کښې، زمونږ ګران لرغوني تاریخي هیواد هم، د نړیوالو رقابتونو او د هغو په وجود کښې، د مفکورو، سیاسي او نظامي تأثیراتو او ټکرونو څخه بې برخې پاته نه شو. د امیر دوست محمد خان او رنجیت سنګه تر مینځ د جګړو له پیل (۱۸٤۳ م) څخه نیولې د افغانستان د استقلال تر اعلانه (۱۹۱۹ م)

پوړې ، زموږ ملت د هېوا د دخاورې دتماميت ، ملي حاکميت
او خپلواکۍ نه دفاع کوله ، او په نړيواله سويه په همدې موده
کښې ، زموږ دخاورې په ارتباط د روسيې د ځارانو او د برتانيې
د شاهانو ترمنځ سياسي او ديپلوماتيکې رقابت کله تند او کله
سست ، کله پټ او کله ښکاره ، مګر فعال شکل درلود .

تر استقلال وروسته ، په لومړي سرکښې ، دوخت دشرايطو
دايجاب له مخه ، زموږ د مستقل هېواد دولتي ديپلوماتيک روابط
له نيوارخ سره يوځه تا وده غوړېدې او له بل ارخ سره يوځه ساړه غوندې
وو . د دولت په سويه ، ديو بدلون پسې ، وضع تقريباً بالعکس
او بيا ورو ورو متعادله شوه . د متعادلې ديپلوماسۍ ، په وخت
افغانستان ورو ورو ، مګر متوازن پر مختګ کاوه او د نړيوالې
ديپلوماسۍ د مکارو د نيرنګونو په رنګين محفل کښې بر دولتي
مقاماتو پوره هڅه کوله چه د دوارو شنو سترګو طلايي ځنځو
محبوبا و په زړه ونو کښې ځای ونيسي او ديوې سوړ سالو د بلې
د شنې لوپټې ليا ره او بالعکس له لاسه ورنه کړي . په همدې
دوران کښې دمېرمن پروين په خوا ره عزکښې د اسندره دهر محفل
رنګيني زيا تو له او دهر او رېدونکي سترېي زړه ترېي دمه ورکوله چه :

يو طرف مې يار لونګين مې په دابل پلو
دا وروکي دي پلو ! وا ! وه !

دې سره یار او لونګین، دوا رو به هڅه کوله چې تعادل د ځان په ګټه او «دا ورو کی «ځان» طرف» ته واړوي. په لوبو لوبو کښې، دیو حریف په لږ څه ناز او تغافل، بل ته څه زیاته غوندې موقع پیدا شوه چې په دې ناز او تغافل یا غفلت کښې، د سهوې او عمد تشخیص هله کېدی شي چه د معشوقو دپردو او حجابونو ترشا اسرار او اسنا د څرګند شي.

کله چه د تعادل او توازن یوه پله درنه او بله سپکه شوه، نو په لومړي سر کښې موږ د هېواد د سریعو تحولاتو شاهدان وو، خو ورو ورو د پېټې مینې کیسه او په پټه د پېټې پلټنه د اسرارو له پردو څخه را ووتله او معشوقې بې حجابه شوې - بیا نو د دوران زور دروو په سنګاره ناربې وهلې چه خوله یې راکړه! - او دیو طرف بې حجابه سیاست یا د سیاست بې حجابي زموږ د عفیف ملت دیني او ملي جذباتو ته چیلنج هم شو او دې سره په دې یارانو کښې بنګړي څه چه دېر لاسونو مات او دېر سره نه د ل شول.

د تېرو دوو پېړیو متمدني (؟) نړۍ د پرمخ تللو پوځي صنایعو د تجربو هدف موږ خواران شوو. د شخصي او اشتراکي اقتصاد او د فرد او ټولنې د اصالت د فلسفو ترمینځ د پېړیو سره جګړه، زموږ په خاوره کښې توده شوه. یو طرف بالکل مات شو. د سیاسي، اقتصادي او پوځي مداخلو، د خالتونو او تکرونو په تېرو

تورو، دایشیا زړه زخمي زخمي زاولسن او ناسور شو. د خو د سرو تها جماتو او تصا د ملتو په نتیجه کښې، له یې سره افغانستان ختم ویجاړ افغانستان جوړ شو.

وشو څه چه وشو او تېر شوو څه چه تېر شوو، جنګ او جګړه ورانۍ او وارنګي، درد او رنځ، ولږه او مصیبت، پریشاني او بده ورځ، فقر او فلاکت ....

مجاهدین وایي چه دوی یونیم ملیون تنه شهیدان ورکړي دي او که له بلې خوا هم دومره وګڼو، نو ویلی شو چه درې ملیونه ځوان افغانان یوازې د ۱۳۷۱ هش د ثور تر اتمې نېټې پورې د جګړو په ډګرونو او سنګرونو کښې وژل شوي دي. د وروستیو څلورو کلونو جنګي تلفات که تر دې زیات نه وي، نو کم خو به هم نه وي. سربېره پر جګړه مارو په ملیونونو ملیونونو عادي او لسي خلک د وسله والو قوتونو په بمونو، راکټونو، مزائیلو، توپونو، هاوانونو او ګولیو لګېدلې، ژوبل او شهیدان شوي دي. په زرګونو کسان، د وسله والو له خوا، د شپې له کورونو ایستل شوي، نیول شوي، بیول شوي او بیا دې او هغه نامه، د نیستۍ کندو کښې غورځول شوي دي. په سلګونو کورنۍ، د خپلو کورونو د چتونو او دېوالونو لاندې چیت پیت او چخپیت شوي او له کورونو ځنې یې کورونه جوړ شوي دي. هغوی چه د بې امنۍ په فضا کښې، غلو وژلي —

یا دګوندیو او ټوپګنیو په اور لولپه شوي نه یا دوم. د ملیونونو ملیونونو آواره او مهاجرو په جمله کښي په لکونو کسان، د ژوند د سختو شرایطو: سړو، تودو، ولږو، ناروغیو، د خوراک، پوښاک او هوساک د نشتوالي، کموالي او خرابوالي له امله ناروغان او په ناڅاپي یا تدریجي مرګ مړه شوي او په پردو هدیرو کښي، په عزت یا بې عزتۍ ښخ شوي دي. د جنګ او جګړو د هغو قربانیانو برخه وایم چه بې جنازې، بې کفنه، بې ګوره پاته شوي او د کلیو او ښارونو د کوڅه ډبو بې خاونده سپو، د دښتو د ماڼونو د وحشي ځناورو، د هوا د کارغانو او د سیندونو د کبانو خوراک شوي دي.

د ډېرو ځوانانو، نرو او ورو په مړینو د ډېرې میندې بورې، خویندې ورارې او ناوې کونډې شوي دي. د ډېرو پلرونو ملاګانې د اولادونو په مړینې ماتې شوې او د ډېرو ماشومانو خولې د یتیمۍ خپېړو کړېې کړې دي. او س داسې کسان ډېر دي، چه نه پلار لري او نه اولاد، چه دې ته د قرآن کریم په تعبیر «کلاله» وایي.

مونږ د بې در دۍ په وسلو وژل کېدو، څه چه ترې بچ پاته یو د دردونو، کړاوونو او محرومیتونو نه ډک ژوند تېروو. په کور او بهر کښې ډېر افغانان مجبور شوي دي چه ځانونه ووژني،

خود کُشی (انتحار) وکړي او ځړوندېیتي له اوږو وغورځوي.
ساپوهان وايي: خودکُشي بزدلي ده. مګر افغانان خودفروشي تر
خودکُشي ذليله بولي او د مجبوريت په مقام کښې، خودکشی،
اَهْوَنُ الشَّرَيْن، ګڼي.

د سږکال د جون په ۲۲مه، په اکوړه خټک کښې، (داجمل
خټک ژوند اوفن) د سيمينار په تالار کښې مې، د هماغو ورځو
د (وحدت) د ورځپاڼې يو خبر ولوست، چه ګويا د اکوړه خټک
دافغاني مهاجرانو په کيمپ کښې د پر مهاجرين د سرسيورى نه لري.
د سړو تودو نه بچ نه دي. د پر واړه او زاړه د ژمي له يخنۍ
او داورې له ګرمۍ نه پکښې مړه شوي دي... که نوروکيمپونو
ته ولاړ شو، همدغسې يا تر دې بدتر، صورت حال به وګورو.
په ځېلو اصلي مېنو کښې هم د ميشتو خلکو ژوند د اطمئنان او
اميد وړ نه دی. قحطۍ او قيمتۍ، نادارۍ او بې روزګارۍ،
انفلاسيون او مفلسۍ، ناروغۍ او نا اميدۍ خوله لګولې ده. په دې
ويره نړه کښې هيڅوک پوښتنه نه کوي چه ولې؟ او که کوي هم، نو په
هغه سوېه وي چه بايد ورته ووايو:

سرشک از رخم پاک کردن چه حاصل؟
علاجی بکن کز دلم خون نیاید

که رښتيا ووايو، زموږ د زمونو د پرهرونو علاج خو څوک

نه کوي، هغه له سترګو نه موهم او سنګې نه پاکوي. او د دې پرځای اوسنۍ ظالمه دنیا لګیا ده د هماغو د حال او مآل غم کوي چه دا غمونه یې کړلي دي او په دې توګه زمونږ پر پرهرونو مالګې دوړوي. د دنیا له دې بې تفاوتۍ سره مونږ هم عادي او بې تفاوته شوي یو، نوځکه له مجبورۍ، مایوسۍ او نهیلۍ په عالم کښې وایو:

زما د زخم علاجونه په مرهم مه کوه!
طبیبه! مالګه دوړوه پرې نور یې غم مکوه!

(اجمل ختک)

او یوازې او یوازې په دې الهٰی تلقین باندې د زړه تسل کوو:
"وَلَعَلَّ اللّٰهُ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ أَمْرًا"

په داسې حال کښې چه په دې تیه تورو شپه کښې، د سولې او سوکالۍ د هیلې شین آسمان، د جګړو د غمونو په کڼو ګورو تورو لوګیو پوښل شوي دي، د لوګیو د تورو وریځو نه آخوا، یو تت غوندې ستوری هم ښکاري او مونږ ته زیری راکوي چه په دې تیه تیارو کښې یو رڼا هم شته، مګر ډیره تته رڼا. خو نږیوهیږو چه دا رڼا به کله پوره وځلیږي او کله به په پرکا راشي؟
د تت ستوري دغه رڼا: "ملي افغاني روحیه" ده چه د خدای په فضل په ډیرو افغانانو کښې لاژوندۍ ده، او د دوی د ژوند پیښو په هره سانحه کښې د صبر او زغم، خودۍ او

خود داریه، وقار او مناعت، تپ او تلاش، پت او عزت النفس، ننګ او غیرت او نورو لوړو افغاني اخلاقو او ملي خصایلو ځلانده او روښانه مثالونه موندلی شو. هو! په ډېر لږ شمېر افغانان د نهايي بېوسۍ، بې بسۍ، بې کسۍ او مایوسۍ پهوخت کښې به ځانونه په خودکشۍ یا خود فروشۍ مضطر او مجبور کړلي وي، مګر کښې او قاطع اکثریت دهغو دی، چه انشاءالله تعالیٰ د زړه او ضمیر له تل نه یې، له هرې سا سره د ا زمزمه پورته کېږي:

ما د اور څپلې په پښو کړې ور روان شوم
چا وې داچه دعشق لاره ده اغزنه ؟

(احمدشاه بابا)

مونږ پوه او رسېدلي لیکوال او شاعران لرو. مګر افسوس چه په ځینو باندې، دهنر دښایست یا دښایست دهنر پیریان او ښاپیریان لاناست دي. نو د ښاپیرو په ژبه غږ بږي او دهغو په شان ښایسته شعرونه جوړوي. ځینې بیا د تراژیدي ژوند دظلم آباد په دې غمستان کښې هم دشعر و ادب راحت آباد لټوي او په داسې حال کښې چه زمونږ دګڼه ژوند سا په سلګو ده، دوی په ګڼه ګړه سترګې پټوي او په حیات آباد کښې یې پرانیزي او ځینې بیا هرځای ترڅان رسوي او دهرچا له حاله ځان خبروي.

تاسې وګورئ! ښاغلی محترم اجمل خټک خو پېژنئ چه دپښتو

د معاصر ادب ځلانده څېره او جګه شمله او د سیمې مشهور دانشور سیاسي اجتماعي شخصیت دی. هغه ټول عمر د ادب او سیاست په ډګرونو کښې فعال پاتې شوی دی او یا له دواړو نه یې یو ډګر جوړ کړی دی، نو ځکه دا خبره مونږ ته ډېره ګرانه ده چې هغه سیاسي ادیب وبولو که ادیب سیاسي؟

هغه د پښتو ژبې لیکوالۍ د مختلفو څانګو: نظم او نثر، شعر او داستان، ادبي نقد او طنز، ادبي تیوري او تاریخ، ادبي خاطرو او سفرنامو ... په ساحو کښې خپل قلم ازمویلی او په هر اړخ کښې د قدر وړ آثار لري. هغه د ژورنالیزم په نړۍ کښې هم ښایسته وختونه تېر کړي دي او کښې آثار یې لیکلي دي. د هغه په آثارو کښې ټول ښایست، جدت او ابتکار لیدل کېږي. خصوصاً په نظم کښې د اجمل خټک «د غیرت چغه» او «ګلونه تشکلونه» او په نثر کښې «دا زه پاګل وم؟» او «کچکول» د هغه له نوښت نه ډکو یې جوړې آثارو لوړې نمونې دي.

څرنګه چه زه له څو لنډو شېبو نه وروسته، تاسو سره، د اجمل خټک دیوان نوي منثور اثر په باب غږېږم او د هغه "دا زه پاګل وم؟" او "کچکول" له دې نوي اثر سره څه ګډ اړخونه یا مشترک وجوهات لري، نو ځکه د دغو دواړو په باب هم څه اشارې لرم:

دا ژه پاکل وم؟ په ۱۹۵۸ م کال چاپ شوی دی. دهغه یوه نسخه د خدمتګار په کتابتون کښې شته چه د سر سپینه پاڼه یې د لیکوال په قلم، په دې الفاظو ښایسته شوې ده: «خپل وینې، خوږ مین او منوږ ځلمي ورور عبدالله بختاني ته، چه هر وخت رایا دېږي. او چه کله رایادشي پاڅه شم چه شکر دی پښتانه ځلمی دروښانه فکر اوڅوندو ولولو خاوندان شته، او که خیر وي نه به "پښتو" سرتوره پاته شي او نه به پښتون ولې بې کوره - اجمل خټک - ۱۱ جنوري ۱۹۶۷».

دکتاب دچاپ نه ځلوینبت او دپاس ټکو دلیکلو نه دېرش کاله تېر دی، او په دې موده کښې ما کتاب څو ځله لوستی دی. په هغه کښې د لیکوال د بندي توب خاطرې دي. لیکوال هغه ظلمونه او مظلومیتونه، ده مشت نمونه خروار، په توګه یکښې بیان کړي دي چه په پېښور جیل کښې ورباندې تېر شوي دی. دا بیان ډېر ساده، روان او عام فهمه دی. مګر دومره ساده هم نه دی، ډېر هنري دی. او د الفت صاحب خبره «د سادګانو لمفکره او فهمه ډېر لوړ دی.»

کتاب شپاړس عنوانه لري. هر عنوان لاندې یوه ځانله خاطره یا لنډه کیسه ده چه کېدی شي «اوچیرک» یې هم وبلو

کیسې خو بیلې بیلې دی، مګر خیلو کښې سره تړون هم لري او په مجموع کښې د یو سیاسي قیدي د قید شپې او ورځې تمثیلوي. کتاب د استاني ژبه، جوړښت او خصوصیت لري. مګر کیسې رښتیا نه، د لیکوال سرګذشت او سترګو لیدلي او په ځان تېر شوي حالات دي. د لته د خاطرې، داستان او چیرک یو قوي هنري امتزاج رامنځته شوی دی. همدا د دې اثر هنري ابتکاري اړخ دی چه د هغه ارزښت یې یو په دوه کړی دی.

کچکول، د «بانګ حرم» د ورځپاڼې، د پښتو پاڼې د کچکول د کالم ړومبۍ مجموعه ده چه د ړومبۍ کا لیزې په ورځ، په ۱۹۶۰ م کال خپره شوه. لیکوال د کال په ترڅ کښې د «کچکول» تر کلیشې لاندې، او د دغه ادبي کالم له پاره د «ملنګ» په مستعار نوم، د ادبي راپورتاژ یا سرګذشت او یا سترګو لیدلی حال، په لهجه، ځانله ځانله، پرله پسې لیکنې کړې دي، چه هره لیکنه یې ځانله مضمون دی او ځانله موضوع، او ټولې د یو زنځیرد کړیو په شان سره تړلې هم دي. هره لیکنه بېله کیسه او بېل او چیرک دی. نکا هي طنزي لهجه لري. کیسې یې کښې واقعي نه، مګر د ټولنې د عیني حالاتو ماهرانه عکاسي ده. په د وانو ټولنیزو چارو ادبي انتقادي اثر دی.

د انتقادي ریالیزم ډېره ښه نمونه ده.

دکتاب د پای په سپینه پاڼه، په هماغه وخت ماڅه لیکلي دي. اوس هم په هماغه نظرئیم او بیا وایم:

"... دکچکول خاوند ډېر ښه کار کړی دی. د دې پر ځای چه ځان وزیر او رئیس کړي ځان یې ملنګ کړی دی. په کلیو او کوڅو، په ښارو میرو، په باڼډو او ښارو ښو، په دېرو او حجرو، په مدرسو او جوماتونو، دخان او امیر په بنګلو او دخوار او فقیر په جونګړو ګرځېدلی، دقام ټېټه او پاس، دوږې او ماړه، دواړه او ړاړه، دپوه او ناپوه نه یې ځان خبر کړی دی.

در په درګرځېدلی، له هر کوره، له هر ځایه او له هر چا نه یې یو څه اخیستي، په کچکول کښې یې راټول کړي دي. کله چه پښتون اولس ویښ او متحد شو، د ملنګ دکچکول هره ټوټه به د مرغلرو نه زیاته وګڼي. دکچکول ټول شیان مې له نظره تېر کړل. ځینې مې ونه پېژندل، یعنې کله به چاپ ښه نه و، کله به لغت زمونږ په محاوره سم نه و، خو ډېری برخې یې دومره ښې دي، چه دهغو په لرلو، ملنګ، ملنګ نه دی او کچکول، کچکول نه دی. ملنګ لوی سرمایه دار دی او کچکول لویه سرمایه ده. کله چه قام دکچکول په قیمت پوه شو، نو نه ما

ارمان به هم تر سره شوی وي اوهغه دا دی :
د ملنګانو سره مل وای
ناست په څنګل وای چه مې ليدای غمونه
ملنګ مل -۱۰/۳/۱۳۴۲

دا اجمل ختک بل هنري ابتکاري نوی اثر (افغانی ننګ) نوميږي .

سږ کال د مې په ۲۵ مه ختک صاحب په خپله دېره کښې، د خپلو ليکنو څو کاپۍ ماته راکړې . څو عنوانونه يې په نخښه کړل ، چه نه يې ولولم او څه پرې ووايم . ما هغه ولوستل . ختک صاحب ته مې يو لنډ غوندې يادداشت وسپاره :
« هغه داستانونه چه دافغاني مهاجرينو او افغاني موضوعاتو پورې اړه لري ، هم يې مضمون نوی دی ، هم يې د ليکلو طرز . تر هرڅه د مخه غوره ګڼم چه ليکوال يې يو - يو په خپل قلم پاکنويس کړي ، چه هم د خطاط کار اسانه شي او هم يې لفظي ښکلا زياته شي . دا کار څومره چه ممکن وي بايد ژر تر ژره تر سره شي . د دې دچاپېدو نه وروسته به پښتنو ليکوالو ته ، د دې ډول نوي طرز داستانونو پراخ ميدان تر لاسه شي . موضوعات ډېر دي . دچا ورته پام نشته ، يا يې چل نه ورځي »

زه ننګرهار ته راغلم . او بيا چه د ( اجمل خټک ژونداوفن ) سيمينار له پاره اکوړه خټک ته ولاړم ، نو د جون په ۳۱مه ، خټک صاحب راباندې زېرې وکړ او ويې ويل : ليکنې مې هېوادل صاحب ته سپارلې دي چه د سناغلي هاشمي په ذريعه يې خطاطي کړي او ته يې خپله ليکنه ژر ولېکه چه ورسره چاپ شي.

زما د دې ليکنې په پيل کښې د هېواد د تاريخي سوابقو په باب ، د اشارو په سويه ، زما کوتاهې ليکنه د همدې ليکنو د اساسي موضوع ( افغان مهاجرين ) د تاريخي عللو د پس منظر د ښودلو له پاره وه . او س د ( افغاني ننګ ) د مجموعې د مضامينو د منځ ته راتلو د پس منظر د څرګندولو لپاره ، د هغې د ليکوال د ژوندانه د يوې برخې په باب د ډېرو لنډو معلوماتو نه وروسته بر اصلي موضوع ته ورداخل شم :

ښاغلی اجمل خټک ، په خپل ژوند کښې ، څو ځله کابل ته راغلی او بيا بېرته تللی دی . کله په شخصي ډول ، کله په ادبي وفدونو کښې ، کله د خوشحال خټک د سيمينارونو د برخه وال په توګه ، کله د افغانستان د خپلواکۍ د جشنونو ننداريې ته او کله هم د ملي سياسي فعاليتونو په لړ کښې ، او هر ځل يې د لته د معزز ميلمه په حيث ، څو شپې ورځې تېرې کړې دي .

هغه په وروستي ځل ، شپاړس کاله ( ۱۹۷۳ - ۱۹۸۹ ) په کابل

کښې پاتې شو. او له دې ځايه يې بهرنيو هېوادونو ته هم لنډ سفرونه وکړل. کابل ته دهغه د مهاجرت دغه دوره د اعليحضرت محمدظاهرشاه د سلطنت په وروستيو شپو ورځو کښې پيل شوه او د سردار محمد داوُد دواکمنۍ له پيل نه د ډاکټرنجيب الله دواکمنۍ تر نيمايي وخته پورې يې دوام وموند.

هغه تر دې د مخه سفرونو کښې هم لږ و ډېر، او بيا د دې اوږده اقامت په دوران کښې په پراخ ډول، دافغانستان د ډېرو نوړو تاوجنو حالاتو، پېښو او بدلونونو ننداره او مطالعه وکړه او د وروستي سفر په ټوله دوره کښې، دلته په کابل کښې، ديو وتلي نوميالي سياسي پښتون اديب په حيثيت د دولت ډېر محترم ميلمه و. هغه دلته په ډېر عزت اوسېده، مګر کوم څه چه د هغه په ذهن او ضمير باندې، د روند پېښې و، هغه د روانو تحولاتو په تړخ کښې، دکور به دکور د وړانېدو دعواملو او پېښو ننداره وه. چه په دې سره به زموږ د روند ميلمه، حساس شاعر او دردمند ليکوال، چه دکور به کور يې خپل کورکاته، دخپل زړه وينې څښلې. هرکله به چه زه ورسره مخامخ کېدم، نو به يې په ډېره اندېښمنه لهجه رانه پوښتنه وکړه:

دا وطن به څنګه شي؟

دلته په کابل کښې د اجمل خټک ډېره، د اجمل خټک ډېره وه. دلته به دولتي رجال، حزبي کدرونه، سياسي اجتماعي او فرهنګي شخصيتونه، پوهان، ليکوال، شاعران، سپين ږيري، ځوانان او عادي کسان کښېنا ستل يا څېدل. ګپ شپ به يې لګاوه او عادي او جدي خبرې اترې به يې سره کولې. په هره موقع او مجلس کښې، حتی له هرچا نه به د اجمل خټک د اپو ښتنه وه:

## د اوطن به څنګه شي؟

په دې کښې يې د لته ملګري دوستان آشنايان زيات شول. له هغو سره يې ټک راټک، ناسته ولاړه ډېره شوه. د دوستانو له شخصي ژوند او حالاتو او اجتماعي درېځ او حيثيت نه ښه خبر شو. تل به يې د هغو د روغ رنځور پوښتنه کوله او د هغو په غم ښادۍ کښې يې برخه اخيستله.

اجمل خټک چه د اځل، له دغو پراخو روابطو، علايقو او مناسباتو سره بېرته پښتونستان ته راستون شو، نو په افغانستان کښې، لا د جګړو اور په غرغرو و. هغه هلته به، دوخت په ژېړ و، د خپلو ځينو پېژندګيو افغاني مهاجرينو سره مخامخ شو او د هغو د اقامت او مهاجرت، حضر او سفر د ژوندانه ترمينځ د. زمکې آسمان توپيرونونه يې کتل. يو تر بله سره

په دې ليدنو کتنو، خبرو اترو او د دوستانو د ښځوانو حالاتو او خاطرو د يادولو او تداعيو، بنا په ړندو سترګو د نورو ستونزمنو حالاتو د کتلو په وخت، د بېرحمه د حساس پښتون شاعر او اديب په انساني زړه ډېر غږ راغلی چه کله کله يې په پټه او کله کله يې په چيغو چيغو ورته ژړلي هم دي. د زړه دخوږ ندرا پورته شوې دسترګو د اوښکو د امرغلرې يې کله ناکله د کاغذ پر مخ توې کړې هم دي، چه څو نمونې يې د (افغاني ننګ) په مجموعه کښې لوستی شئ.

نيمه پېړۍ کېږي چه زه د اجمل خټک آثار لولم، او زه پخپله مخامخ، له هغه سره، د ۱۳۲۹ هش کال د سنبلې په نهمه شپه، د افغانستان راډيو په تالار کښې، د رواني مشاعرې په وخت کښې آشنا شوی يم. په هغه وخت کښې زه وينس زلمی وم او دی زلمی خدايي خدمتګار. له هغه د مه تر دې د مه له هغه سره زما دوستي او آشنايي، ورورولي او ملګرتيا د شعر، ادب، وطنپالنې او انساندوستۍ په بنياد ولاړه ده. ما د هغه ډېر آثار مکرر لوستي دي. په ځينو يې ليکنې هم کړې دي او ډېر ځله مې د چاپ نه مخه خپل انتقادي نظر دوی ته اورولی او ويلی هم دی، او په همدې لړ کښې وايم:

دا اجمل خټک د (افغاني ننګ) د مجموعې د هرعنوان لاندې بېل مضمون ، دليکوال يوه خاطره او کله لا د خاطراتو د تداعيو يوه لړۍ ده چې له يوعيني شخص سره د بيا پېژندګلو ليدنو کتنو ، خبرو اترو او مرکو پورې اړه لري. په ليکنه کښې د دغه شخص ، قهرمان يا کردار خپل اصلي نوم کله ښکاره کېږي او کله لا بدلېږي . د ليک طرز او فورم يې د لنډ داستان دی. ژبه يې ډېره ساده ، خوږه ، روانه ، اغېزناکه ، ماهرانه او ساحرانه ده .

ما د مجموعې پنځلس ليکنې لوستې دي . د لوستو په وخت د هغه د ژانر په ټاکلو او پېژندلو کښې حيران وم ، ځکه چه :

- که دې ته وګورو چه دا د عيني کسانو د ژوند سرګذشتونه دي او له هغو سره د مرکو او پېښو تشريحات دي ، نو راديو رپوتاژ ) بېلې ورته ويلی شو .

- که په دې نظر يې ولولو چه دا په خپله د ليکوال ليدلې کتلې پېښې دي ، چه ډېرځله د ده ذات هم پکښې له ډېره برخه لري ، نو بيا يې د ليکوال (ادبي خاطرې) وبولو .

- او که د ليکلو طرز : د کيسې پيل ، بهير ، اوج او پای ته ، د هغې فضا او جوړښت ته او د هغې ژبې او ادا ته په دقت پام

واوروئ، نو به يې بې له شکه، د لنډو داستانونو (شارټ سټوري) په ښو نمونو کښې راولئ.

نو دا اثر د ادبي راپور، تاثر، خاطرو او لنډ داستان يو ښکلی هنري امتزاج دی چه په حقيقت کښې د تاريخ حقيقت يا د حقيقت تاريخ دی او په فورم کښې، لنډ داستان. او د دې فن کمال په دې کښې دی چه سره ددې چه دکيسو زياتره اشخاص اوکردارونه، نه يوازې شخصاً پېژنم هم، مګر په هغو کښې د ليکوال د فنکارۍ، د مهارت د ټولو مزاياوو د پوره شته والي له مخې ضرور بايد د لنډو داستانونو لوړې بېلګې ومنم.

دې خبر وسره هم، د خپل زړه يوه پټه خبر هم رابرسېره کوم:

د دغو داستانونو د مسودو د لوستلو په وخت، د هر ځله زما زړه ډک ډک شو او ومې ژړل. زما پر زړه باندې له دې اغيزې سره، زړه راته وايي چه "ښه شعر" خو هغه کلام دی چه له زړه نه راووځي، زړه ته ننوزي او پر زړه اثر لري. او چه دې کښې دا خصوصيت هم شته، نو ولې يې حتی «ښه شعر» ونه شو ګڼلی؟ نو ځکه نه دا خبره ددې زماني له کتابي مکتبي ادبي تيوريسن نه په پرده کښې ديو ليوني په شان، پټه په زړه کښې کوم او يا که چېرې د دې سندرې دغږولو سعادت بالاستحقاق راته حاصل شو چه ووايم

لېونۍ مينې کړم آشنا له بيابانه سره
پرېږدئ چه کړځم لېونی په غرونو

(سيلاب کامه وال)

بيا به نو د مينې په هغه بيابان کښې، دا خبره د کوم لېونی صاحبدل په حضور کښې، په دا که و وايم - سمدستي دې دا خبره له تاسو سره وي . . . .

د دې ليکنو بل کمال دا دی چه په هغو کښې ژوندی تاريخ، پوره ځلېږي او کولی شو چه نن زمونږ د دې زمانې د تاريخ او ټولنپوهنې د موادو يوه مغتنمه سرچينه يې هم وبولو. ځکه چه دلته که له يوې خوا د پښتو دقهرمانانو شخصي کره وړه، ذاتي اخلاق او روحيات پکښې ځرګند شوي، نو له بلې خوا د ټولنيزې ساپوهنې پرنسيپونو ته، د ليکوال دخيال سانلو سره، ټولنيزه ملي افغاني روحيه، کرکتر، سجيه او خصلت پکښې په داسې اصلي توګه ځلول شوې ده چه ګويا ليکوال غوښتي دي چه په ارادي ډول يې ژونديو اسنادو او شواهدو، د خپل دې کار په کليت کښې د علامه اقبال او نورو پخوانيو او اوسنيو اندېښمنو متفکرانو دې تشويش ته:

میرخیل! از مکر پنهانی بترس!
از ضیاع روح افغانی بترس!

(اقبال)

ځواب او اطمينان ورکړي . او داسې ځواب چې ګواکې يوازې
د مکرجنې زمانې پښتو مکرونو څخه چې د بې رحمې زمانې ترټولو
د نوو مدرنو پر مختللو، بېد ريغه بې اندازې وسلو پراخ
استعمال ، خو ګل وګلزار افغانستان په کنډر او کنډوالو افغانستان
بدل کړ، خلک آواره پرېشان دربه دره سرګردان، وږي تږي
لوڅ لپړ ، بې کوره بې ګوره ، بې اوره ، بې دوا ، بې تعليمه ،
بې کاره او بې روزګاره شو ، مګر دې سره بې هم «افغاني روح»
ضايع نه شو ، بلکه لا يې صيقل او پالش شو.

د « افغاني ننګ » د مجموعې د داستانونو کردارونه، د
مليونونو مليونونو په وطن کښې ميشتو افغانانو په کوډلو او جونګړو
او په نورو ملکونو د مهاجرانو په کيمپونو او کوړونو کښې
زښت ډېر دي . د هغو موندل، کتل، پېژندل، څېړل او
پر هغو څه نظم، نثر، شعر، داستان ، خاطره ، راپورتاژ،
مقاله کتاب يا تاريخ ليکل پکار دي .

که زموږ ليکوال او شاعران د خيالي ليلا د مرمر ينې
مجسمې بتان مات او ځانونه د موهومې محبوبا د زلفو له جاله
آزاد کړي او د مهجورې شاه ليلا يا مهاجرې محبوبا له سپېرو
نه د سفر د سپېرې او ستوغې لارې دوړې وڅنډي او د هغو د ژبو
له قال نه د هغو د زړونو حال يا د هغو له بد او بدترين حال نه د

حقیقت احوال وپوښتي ، نو به یو ، شی ، چه د هغو د زیاتړو دړوند هره سا د مرګ یوه سلګۍ او هره سلګۍ یې یوتراژېدي کیسه ده چه ددې وخت د شعر بهترینه مناسبه موضوع او د داستان واقعي محتوا او د تاریخ مستنده پاڼه او دیولیکوال او شاعر د ملي انساني اجتماعي، ایماني او وجداني او وبهسره دادبي او هنري وظیفې داجراء د اعتبار وړعالي دیپلوم ، بری لیک او د افتخار سند ګڼلی شي . اوکه داسې نه وي ، نو تیرې ډبرې ، کټې ، غوټۍ او غرونه هم کلک دي او هم ښکلي ، خوبې ارادې ددې او د هغې د مجللو ماڼیو تا داوونه پرې ړکیدی شي ، مګر یو ملت نه بیدا رولی شي او نه یو کولی شي .

اګر سخن نګشاید دریچه ای تازه
به سرزمین امید
اګر که شعر نباشد عرای آزادی
سرود صبح سپید
اګر هنر ندهد بال وپر به انسانها
به جستجوی افقهای دور رنګارنګ
زهی خموش سنګ .... (ژاله)

ډیرو ښاغلو دردمندو شاعرانو لیکوالو څه کړي هم دي ، مګر کفایت نه کوي . زمونږ مهمه باشرفه وظیفه بس همدا ده چه دخپل اولس له فرد فرد سره څانونه نور هم نژدې کړو . د ژړونو تل ته یې ننوزو ، د زړونو یې دې یې ولږ زوو ، وېې ګړوو ، د زړه خواله ورسره وکړو ...

او له هغو نه د اخبار خبر، د تبصرې کالم، د منبر وینا، د تاریخ پاڼه، د شعر موضوع، د داستان محتوا او په دې ډول د معاصرو اصیلیو ملي ادبیاتو بهیر جوړ کړو. راځئ! یوازې همدې پسې شو او د زمان داغږ د زړه په غوږو واورو چه:

څه چه وینې د صیاد له بې رحمۍ نه
څه چه اورې له بلبل هزار داستانه
زړه بې ولیکه! هم شعر دی، هم تاریخ دی
وظیفه دې سخته نه ده، نه اسانه

(افغانستان)

زه باور لرم چه د اجمل خټک د (افغاني ننګ) مجموعه د پښتو ادب او لیکوالو په ډېر کښې د تقلید ور یومثالي اثر دی.

ګرانو لیکوالو او شاعرانو!

د بې سره زه تاسو ته د تقلید بلنه نه درکوم. د ادب او هنر اصلي ښایست او اعتبار ابتکار دی. مګر، موضوع څرګنده او مشخصه ده. زمونږ او ستاسې ژوند، د ملت ژوند او د وطن حال کلي اساسي موضوع ده. په دې کښې د نندارې ظاهراً جزئي یا فرعي خبره، د لیکلو د پاره غوره سوژه ده. د لیکنې ژانر، فورم، شکل پرداخت، ادا او پیرایې ابتکار ستاسو ذوق، زیار، توجه، دقت او مهارته پورې اړه لري. د دې ورځې ضروري موضوع دا ده.

نورم او ابتکار آزاد دی. بسم الله الله اکبر. دا ګڼ او دا میدان.
پوه لنه، د پخو لیکوالو او شاعرانو څخه ضرور دابتکار انتظار
لري. نوی لیکوال او ما غوندې بې بضاعته زاړه هم، بې تقلیده
چاره نه لري. خوهمدې تقلید سره د ابتکار خواته حرکت پکار دی.
د اجمل خټک، عبدالروف بېنوا، دحمزه شینواري او قیام الدین خادم،
دګل پاچا الفت او خلیل الله خلیلی، د راحت زاخېلي او محمد حجازي...
غوندې لوی مبتکران هم په لومړي سر کښې مقلدان وو.
دا دبي مکتبونو او سبکونو ایجاد او موجودیت که دیو مشخص
مکتب یا سبک د ټولو هنري عناصرو ابتکاري جنبو پورې اړه
ولري هم د «مکتب» په مفهوم کښې پخپله د تقلید معنا مضمر ده.
که د اجمل خټک "د غیرت چیغه" او دحمزه شینواري «غزونې»
تر اغېز لاندې تقلیدي شعرونو نه سترګې پټې کړو، نو زمونږ
د معاصر شعر لویه ذخیره به زمونږ له پامه وغورځوي.
په داسې حال کښې چه پښتو شعر له امیر کروړ نه نیولې ترماننګ جا نه
پورې د تقلید او ابتکار لویه ذخیره او تاریخ لري او لنډ داستان
په پښتو ژبه کښې زمونږ د زماني پیدا وار دی.
څو ک. چه د ابتکار په مقام کښې دی، ډېر اعلیٰ! مګر زه په
پوره باور ویلی شم چه د اجمل خټک «افغاني ننګ» د دې وخت د
پښتو منثور ادب د تقلید ور مثالي اثر دی. ویې لولئ!

په پای کښې، دلته زه ځان دخپل زړه په حکم، دزړه ديوې
بلې غوښتنې په ترسره کولو هم مجبورګڼم او وايم :

د اجمل خټک (افغاني ننګ) په محتوا کښې، د ژپلو، څوړ پلو،
کړېدلو افغانانو د کرکټر مثبت عالي اړخ ته پوره توجه شوې ده،
او زه هم ورسره اتفاق لرم او همدغه، داکثريت په معيار، افغاني
ملي روحيه او کرکټر بولم. دې سره، دلته چه ما دنوو ابتکاراتو
اوتقليد خبره هم کړې ده، نو ددې موقع نه په استفاده دګرانو
لوستونکو او بناغلو ليکوالو دقت او توجه دموضوع منفي اړخ ته
هم اړوم. د دې اړخ څرګندول، خو دهغه مينې او احترام
له امله چه زمونږ په نسبت داجمل خټک په ذهن او زړه کښې
موجود دی، او هم د هغه دشخصي او اجتماعي دريغ په تقاضا،
که ياسته وي خير دی. مګر مونږ او تاسې د خيبر نه را ډېخوا
ته او سېدونکي ليکوال، بايد د تصوير دواړه اړخونو ته پام
واړوو، هغه داسې چه زمونږ د غيور ملت لږ شمېر کسان
يا له نېستۍ نه يا له مستۍ نه، يا له ډېرې هوښيارۍ نه يا له
ډېرې بې عقلۍ نه، بې غيرته شوي به هم وي او که خودکشي
يې نه وي کړې، نو خود فروشۍ ته خو به يې تن اېښی وي.
او ياکه ځان يې نه وي خرڅ کړی، نو ايمان خو به يې ليلام کړی
وي ! - خدای پاک دې وکړي چه داسې نه وي او يا زما حدس

وګمان په سلوکښې سل غلط وخېژي، اوکه خدای ناخواسته،
داسې وي او چېرته یې مثالونه پیداشي، بیا نو باید دپښتو
دعللو عواملو په پوره شوره څېړنه، یا دخوشحال خټک دسبک
دشعر په تېره توره باید دهغو له مخه هم پردې لیرې شي.
استاد الفت وايي :

دیو سف خیرو جاموکښې څه ګناه ده؟
سپه لباس کښې چه ګناه کړې زلیخا ده

راځۀ خیرې کړه و دابښې جامې رنګینې
پکښې وکوره وخېږې د پرې ننګینې

وَالسَّلَامُ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدٰى .

کابل - خیرخانه
د ۱۳۷٦ د سرطان شلمه
د ۱۹۹۷ د جولای لسمه



# په دې کتاب کې يې لولئ

- دخوشحال خان ختټک پېژندنه او ژوند پېښې
- دخوشحال او اقبال داشعارو مشترکې خواوې
- دخوشحال د ۲۸٦م تلين دسيمينار لنډ راپور
- دخوشحال ختټک طب
- د ډاکټر عارف عثمان دخوشحال پېژندنې څېړنو ته يوه کتنه
  صد پند سودمند خوشحال حکيم
- دخوشحال خان او دهغه دکورنۍ په ادبي ميراث علمي څېړنه
- دخوشحال خان سبک او پر پښتو ادب ددې سبک اغېزی
- دخوشحال رباعيات
- او د ګڼ شمېر نورو ختکو شاعرانو او ليکوالو په باب معلومات.

په بلجيم کې داستوګنو افغانانو
دتفاهم، مرستې او پيوستون ټولنه
دخپرونو لـړ (۱)